د اروابناد سيد مجيب احمد لمر د شهادت د ځلورم تلين په وياړ

د مقالو ټولګه

# د تاريخ ننداره

د اسدالله غضنفر ژباړه

۱۳۸۸ لــمريز لېږديز





## د تاريخ ننداره

| | |
|---|---|
| ژباړن: | اسدالله غضنفر |
| ډيزاين: | سيد عبدالله ولي زی |
| خپرندوی: | په نيدرلند کې افغاني کلتوري ټولنه |
| مالي ملاتړ: | سادات مرستندويه ټولنه |
| د چاپ نوبت: | لومړی |
| چاپ شمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| چاپ ځای: | کابل |
| چاپچاري: | سهر مطبعه |
| چاپ کال: | ۱۳۸۸ لمريز لېږديز |
| ای ايس بی اين: | ISBN 978-9936-21-069-1 |





# د خپرندويې ټولنې يـــادښت

## د لوی څښتن په نامه

درنو هېوادوالو! تاسو ته پته ده، چې زموږ هېواد په وروستيو دېرشو کلنو کې د خپلمنځيو جګړو او د بهرني ښکېلاک ډګر ګرځېدلی، چې دغه غميزې تر ټولو زيات زيان د افغان ولس پوهنيزو او کلتوري ارزښتونو ته رسولی او زموږ ځوان نسل يې د نالوستۍ له ګواښ سره مخامخ کړی او د ناپوهۍ کندې ته يې ورټېل وهلی دی.



د افغانستان د دېرش کلنې غميزې په بهير کې د هېواد ګڼشمېر لوستي خلک يا ووژل شول او يا هم دې ته اړ شول، چې بهرنيو ملکونو ته کډوال شي، د هېواد ټول روزنيز او پوهنيز مرکزونه وران شول، چې د هېواد په ټولنيزه برخه کې يې يوه ستره پوهنيزه تشه رامنځ ته کړه، چې د دغې تشې ډکول به د سلهاوو کلونو په ترڅ کې هم بېرته بشپړ نه شي. د افغان-ولس په ټولنيزې، روزنيزې او پوهنيزې وده کې هر جوت ګام غوره ګټل کېږي، چې د دغه کتاب د ژباړن او ټولونکي هڅې هم د قدر وړ دي او کېدای شي د ځوان نسل په روزنه کې جوتې ټولنيزې او روزنيزې اغېزې ولري.

افغاني کلتوري ټولنه په دې اند ده، چې پښتو ژبه د هېواد ملي او رسمي ژبه ده او د دې ژبې لپاره هر قدم د ستایلو او تقدیر وړ دی، دا چې استاد اسدالله غضنفر د ډاکټر مبارک علي لیکنې ژباړلي او هغه يې په دغه شان يوه ټولګه کې را ټولې کړې دي د هېواد د ټولنپوهنې او فلسفې په ډګر کې يوه ستره لاسته راوړنه ده او ده ته د دغه لوی خدمت د ترسره کولو له کبله مبارکي وایي.

په نیدرلند کې افغاني کلتوري ټولنه په دې اند ده، چې د یو هېواد پرمختګ د وګړو د لوستو او پوهو خلکو په شمېر او کچې پورې په نېغه تړلې ده. د ماشومانو، ځوانانو او وګړو ښوونه، روزنه او پوهونه د پرمختګ بنسټیزه برخه جوړوي، چې د کتابونو لیکل، ژباړل او خپرول د هېواد پوهنیزه پانګه پیاوړې کوي، نو افغاني کلتوري ټولنه افغاني کارپوهانو، ځانګپوهانو او لیکوالو ته وړاندیز کوي، چې د کتابونو په ژباړه او لیکلو لاس پورې کړي، چې په خپرولو يې د هېواد مرکزي او سیمییز کتابتونونه سمبال شي.

په درنښت

په نیدرلند کې افغاني کلتوري ټولنه



# نیولیک

سرلیک ------------------------------------------ مـخـونـه

# یادونه

## د لوی او ښونکي څښتن په نامه

سادات مرستندویه ټولنه ویاړي چې د دغه شان فرهنګي کړنو د مالي ملاتړ له لارې د خپل هېواد په کلتوري، پوهنیزو او روزنیزو چارو کې برخه اخلي. د سادات مرستندویې ټولنې دا دویم کتاب دی چې د اروابناد سیدمجیب احمد لمر په تلین یې چاپوي، لکه څنګه چې نوموړي غوښتل د هېواد د ښوونیزو او روزنیزو چارو په ډګر کې برخه واخلي، خو نیمګړي ژوند د ده دغه هیله پوره نشوای کړی نو اوس سادات مرستندویه ټولنه د دغه شان کتابونو د چاپ مالي ملاتړ د هغه، د ارواح د ښادولو په موخه په غاړه اخلي. دا چې اروابناد لمر څوک دی په لاندو څو کرښو کې به ورسره وپېژني:

د اروابناد سید مجیب احمد لمر ژوند لیک

سید مجیب احمد د سید عبدالاحمد زوی، د سید عبدالواحد لمسی، د سید نور محمد کړوسی، د سید شېر محمد کودی او د سید لعل محمد پردی دی، چې د ۱۳۵۹ لمریز لېږدیز کال د سلواغې د میاشتې په شپږویشتمه نېټه د جوزجان ولایت د شبرغان په ښار کې زېږېدلی دی او د ۱۳۸۴ هـ ش کال د کوچني مبارک اختر په لومړۍ ورځ چې د ۱۳۸۴ هـ ش کال د لړم له ۱۲ سره سمون لري د بلخ ولایت د خلم ولسوالۍ د کفترخانې په سیمه کې د ګاډي د اوښتلو له کبله په حق ورسېد (انالله و انا الیه راجعون).

اروابناد سید مجیب احمد د افغاني دودونو سره سم لومړی د بغدادي قاعدې په زده کړې په کور کې پیل وکړ او په ۱۳۶۵ هـ ش کال د شبرغان ښار د ابن یمین په ښوونځي کې شامل شو، د ژوند د ناخوالو له امله یې د ښوونځي لوستل

هلته سر ته ونه رسېدل او د زده کړو لپاره د پېښور ښار ته کډه شو، چې په پېښور کې یې د ښوونځي تر څنګ د کمپیوټر او انګرېزي ژبې زده کړو ته هم اوږه ورکړه او په پوره بریالیتوب سره یې د ښو پایلو تر لاسه کولو سره ښوونځی او د کمپیوټر مسلکي زده کړې پای ته ورسولې، چې په پای کې د کمپیوټر او انګرېزي ژبې د ښوونکي په توګه وګومارل شو. سید مجیب احمد همدا ډول د ګڼشمېر دیني کتابونو زده کړه له پلاره ترلاسه کړې ده.

سید مجیب احمد د ۲۰۰۲ م کال په پیل کې له مهاجرته بېرته هېواد ته راستون شو او په یوه غیر دولتي پولندي موسسه کې یې د کمپیوټر، اداري چارو او پلان جوړونې دنده پر غاړه واخیسته، چې په هېواد کې د ښوونځیو جوړولو او د ښوونې او روزنې په نورو برخو کې په کار بوخت ؤ. سید مجیب احمد د دغو دندو تر څنګ د کانکور د آزموینې د تر سره کولو وروسته د ښوونې او روزنې پوهنتون د ادبیاتو په پوهنځي کې پوهنپال هم ؤ.

د پولندي موسسې کارونه د افغانستان په ټولو ولایتونو او لرې پرتو سیمو کې تر سره کېدل او اروانباد سید مجیب احمد د زړه له تله د هېواد په بیارغاونه کې او د هېواد د بچیانو د خدمت لپاره ملا تړلې وه او د ښوونې او روزنې په بیا رغاونه کې یې هر اړخیز زیار ګاللی دی. د کارونو د ښه سمبالښت لپاره د هېواد بېلابېلو سیمو ته تللی او د ښوونځیو لپاره یې د سیمو حالات خپله څېړل او همدا ډول یې د ښوونې او روزنې د لا ښه والي لپاره د جاپان هېواد په رسمي غوښتنه هغه هېواد ته سفر هم کړی ؤ.

د سید مجیب احمد په غوښتنه او له پلان سره سم پولندي موسسې د افغانستان په بېلابېلو سیمو کې د ښوونځیو د جوړولو تر څنګ په ښوونځیو کې د څښاک د اوبو د ستونزو د لیرې کولو لپاره د سلهاو ژورو څاګانو په جوړولو لاس پورې کړی، چې افغان ماشومان ترې برخمن شوي دي.

د یادونې وړ ګڼم، چې کله سید مجیب احمد په ۲۰۰۲م کال کې هېواد ته راستون شو، نو د افغانستان د اداري سیستم د چارواکو لخوا ورته د کمپیوټري



چارو په برخه کې د لوړپوړي چارواکي په توګه وړاندیز وشو، خو سید مجیب احمد دغه دندې و نه منلې او داسې یې ویل:

«په هېواد کې د ډېرو زیاتو ناخوالو له کبله ما ونشوای کولی چې ښوونځی په خپل هېواد کې پای ته ورسوم، نو ځکه زه ټولې هلې ځلې د ښوونې او روزنې په برخه کې کوم، چې تر څو د هېواد ټول بچیان په دې وتوانېږي چې ښوونځی په خپل ټاټوبي او خپل هېواد کې پای ته ورسوي او له پوهې برخمن شي.»

درنو هېوادوالو! سادات مرستندویې ټولنې هڅه کړې چې د دغه کتاب د مالي ملاتړ له لارې، د تکړه ښوونکي سید مجیب احمد یادون وکړي او د هغه د هیلو یوه وړه برخه پوره کړي. ټولنه ستاسو څخه یوه هیله لري، چې د دغه کتاب په لوستلو سره ښوونکي سیدمجیب احمد لمر او د نورو وفات شوؤ وګړو روح ته دعا وکړئ!

سادات مرستندویه ټولنه استاد غضنفر او خپروندویې ټولنې ته، د دغه کتاب د چاپېدو له امله مبارکي وایي او د دوی د لا بریاوؤ او کړنو په تمه ده.

أمین

و من الله التوفیق

# د ژباړن خبرې

دا د ډاکتر مبارک علي د مقالو لومړی کتاب نه دی چې په پښتو ترجمه کېږي. د مبارک علي د مقالو ترجمه شو کاله پخوا ښاغلي محمد نويد پيل کړه. د ښاغلي نويد د ترجمه کړيو مقالو ټولګه په کوټه کې صحاف نشراتي موسسې خپره کړې ده. تېر کال دوبی د صحاف نشراتي موسسې مشر د مبارک علي د پښتو شويو مقالو يوه بله ټولګه راوښوده چې د چاپ انتظار يې کاوۀ.

مبارک علي د هندوستان تر خپلواکۍ شپږ کاله پخوا د راجستان ايالت په ټونک کې دنيا ته راغی. نهه کلن و چې کورنۍ يې پاکستان ته کډه شوه. دۀ د لوړو زده کړو لپاره د تاريخ مضمون خوښ کړ، په همدې علم پسې اروپا ته لاړ او په ۱۹۷۶ کال کې يې د جرمني په Ruhr پوهنتون کې دوکتورا واخيسته. د دوکتورا د رسالې موضوع يې په هندوستان کې د مغولو د زمانې مطالعه ده. دۀ وروسته بيا ډېره موده په پوهنتونونو کې د تاريخ معلمي وکړه او د سند پوهنتون د تاريخ څانګې مشر شو. دۀ په لاهور کې د ګويته انستيتيوت د ډايرکټر په توګه او د (تاريخ) په نوم درې مياشتني مجلې د چلوونکي په توګه هم کار کړی دی.

مبارک علي د هند براعظمګي په اوسنو مورخانو او مفکرانو کې د خورا لوی نوم څښتن دی.

د دۀ په فکر کې اعتدال، په بيان کې وضوح، په ميتود کې علمي بې طرفي او په سبک کې ايجاز وينو. دغو او ځينو نورو ځانګړنو زه هڅولی يم چې د هغه ليکنې ولولم او وژباړم.



زموږ په وطن او شاوخوا وطنونو کې له تاريخه معمولاً د قام د ماضي د شانداره کولو يا د ځينو کسانو د ستر ښودلو او يا د مخالفانو د ځپلو لپاره استفاده کېږي. زما په نظر د مبارک علي په ليکنو کې دغسې تمايل نشته. دی د تاريخ د علم لويې موخې ته چې د نن د غوټو د پرانيستلو لپاره د پرون مطالعه ده، خورا وفاداره ښکاري.

دغه راز په افغانستان او شاوخوا سيمه کې تاريخ ته تر ډېره حده د پاچايانو د ماتو او بريو او داسې نورو لويو پېښو د داستان په سترګه کتل شوي دي خو مبارک علي د دې علم په موضوعاتو کې د ډېرې تنوع او وسعت قايل دی. د دۀ په ليکنو کې د تاريخ د نا اشنا او نا متعارفو ساحو له سپړنې سره دلچسپي وينو. د هغه دې دلچسپي هم هڅولی يم چې د ليکنو په ژباړه کې يې برخه واخلم.

په دې کتاب کې راغونډې شوې مقالې مې د ډان ( Dawn ) ورځپاڼې د ميګزين (Magazine) د دوه زره دويم او دوه زره نهم تر منځ کلونو په ګڼو کې لوستې او له همدې ځايه په مختلفو وختونو کې را ژباړلې دي. دغه مقالې د موضوع وحدت نه لري خو څرنګه چې ټولې له تېر وخت او ماضي سره تعلق لري نو (د تاريخ ننداره) نوم مې ورته غوره کړ.

که د ځوان ژباړن او مهربان ملګري سيد عبدالله ولي زي هڅه نه وای نو دا ژباړې به خدايزده چې په کتابي بڼه چاپ شوې او په اوسني شکل ستاسې لاس ته درغلې وای . ښاغلي ولي زي دا ژباړې ټکي په ټکي ولوستې، چاپ ته يې چمتو کړې او ناشر يې ورته وموند. له دۀ څخه د مننې په وخت مې په زړۀ کې دا دعا راګرځي چې کاشکې په وطن کې د دۀ غونډې د کار و ايثار زلمي لا زيات شي.

والسلام ، اسدالله غضنفر

د ۱۳۸۸ شمسي کال د ليندۍ پنځمه ، کابل

# د هند د پخوانو اشرافو د ډوډۍ خوړلو آداب

په اتلسمه پېړۍ کې چې د هند د مغولو له ګوتو سیاسي قدرت ووت او پخوانۍ دبدبه یې ختمه شوه، سردارخېلو یې هڅه وکړه چې د خپل حیثیت د ساتلو لپاره اجتماعي او کلتوري آداب وپالي او په دې ډول ځان تر نورو بر وښيي. دوی د ډوډۍ د خوړلو په برخه کې هم خپل تشریفات لرل چې پوره پام یې ورته کاوۀ.
د ډوډۍ دغه کلتور د مغولو د څو پېړیو اوږدۀ سلطنت په زمانه کې د شاهانه ژوند د تجربو پیداوار و، چې دوی یې ان د سیاسي قدرت له زواله وروسته هم ودې ته ادامه ورکړه. له ډوډۍ او دسترخوان او مېلمستیا سره اړوند تشریفات او دودونه یوازې د مسلمانو اشرافو په کورنیو کې نه وو بلکې هندو اشرافو هم د ډوډۍ خوړلو خاصې نخرې او سامانې لرلې چې دوی یې له عادي خلکو بېلول.
د ( بزم های اخیر ) لیکوال منشي فضل الدین په دې باره کې چې د مغولو وروستي پاچا بهادر شاه ظفر به د خپلې کورنۍ له غړیو سره ډوډۍ څنګه خوړه، جالب معلومات راکړي دي. دی وایي، د شاهي کورنۍ غړیو به تر ډوډۍ وړاندې او وروسته لاسونه د چندڼو په عطرو وینځل. دسترخوان به په غالۍ باندې اوارېدۀ. د کورنۍ غړي به د دسترخوان چارچاپېره پټه خولۀ ناست وو. سترګې غړول او د یو بل د قابونو څارل پکې نه وو.



اشرافو زرین(د سپینو اوسرو)، ډبرین او کلالي لوښي استعمالول. وروسته یې بیا له مسي لوښو هم ډېره استفاده کوله. ډوډۍ په دېګونو کې پخېده. دوی غتې، اوږدې څیمڅۍ لرلې چې په دیګ کې یې د ډوډۍ د مزې د څکلو لپاره کار ورنه اخیست. د هغه وخت په هندوستان کې د ډوډۍ د مېزونو، چوکیو، کاچوغو او پنجو رواج نه و.
که به پاچا چا ته وویل چې پلانی خوراک وخوره، هغه به د مننې لپاره سمدستي پاڅېد، ملا به یې کوږه او سر به یې کوز کړ.
د برټش میوزیم په کتابتون کې د میرزا نامې یوه قلمي نسخه موجوده ده. دغه کتاب چې د لیکوال نوم یې نه شته، د هندوستان د اشرافي کورنیو لاربښود و. په میرزا نامه کې د اشرافو له شان سره د مناسب چال چلند او لوړ کلتور اصول بیان شوي دي. دلته لولو چې د ډوډۍ لپاره باید په باغ کې د فوارې څنګ ته پاک، ستره، ښکلې، ګلداره دسترخوان اوار شي. نوکرانو ته پاکې جامې او روغ صورت پکار دی.
په دې کتاب کې د ټولو مېلمنو لپاره د یوۀ سایز د قابونو او د هر موسم د ډول ډول خوړو لپاره د رنګه کلالي لوښو ذکر راغلی دی.
میرزانامه له باکلتورکسه غوښتنه کوي چې اېښېدلې وریجې تر غوړو هغو بهتره وبولي، ځکه غوړې وریجې ګوتې چټلوي. دغه راز له باکلتوره شخصه غوښتنه شوې ده چې پیاز یا سره مولۍ ونه خوري چې د ټېغونو سبب ګرځي او دغه شی ذهن او روح ناکراره کوي. ښۀ خو دا ده چې ډوډۍ د ګوتو په سرونو وخوړل شي. که اشرافي د چا مېلمه شي نو ورته پکار ده چې تر مړېدو دمخه لاس ونیسي چې کوربه وربادنې د وړ سترګې ګومان ونۀ کړي. د میرزانامې په قول، د اصیل او با سلیقه کس لپاره ضروري ده چې له اروا وړو او معمولي وګړیو

سره چې بدعادتونه لري، او يا له هغو سره چې په غاښونو کې خلال
وهي، او د پان له خوړلو وروسته خبرې کوي او د نورو حساسيت ته نه
ګوري، يوځای ډوډۍ ونه خوري.

يوې انګرېزې، مېرمن مير حسن علي، چې له يوۀ هندي مسلمان سره
يې وادۀ کړی و، ( د هند د مسلمانانو په اړه مشاهدات) په نوم په زړۀ
پورې کتاب ليکلی دی. دې د لکنهو د اشرافي کورنيو د ښځو د
ډوډۍ خوړلو عادتونو ته په دقت کتلي دي. دا ليکي چې د ښځو
حويلۍ ته به تياره پخه شوې ډوډۍ په کلالي لوښو کې چې په
پتنوسونو به ايښي وو، وروړل کېده. دوی چې له کاچوغو او پنجو
استفاده نه کوله، د ډوډۍ په پېلولو کې يې چندان ځنډ نه راتۀ. خورا
خوندورو خوړو او عالي اشپزي نورو کيسو ته ضرورت نه را منځ ته
کاوه. د ډوډۍ تر شروع دمخه به هرې مېرمن ته اوبۀ نيول کېدې چې
لاسونه ووينځي او خولۀ کنګال کړي. که به چا داسې ونۀ کړل هغه په
چټل خورو شمار وه. د مېرمن مير حسن علي دې ته هم ورپام شوی و
چې دغو مېرمنو به چپ لاس لکه شل چې وي، هيڅ شي ته نه
ورتيتاوۀ. دوی به ډوډۍ ته د ګوتو سرونه وروړل چې لاسونه يې غوړ
او ناولي نۀ شي. ترډوډۍ وروسته هرې مېرمنې لاسونه د چنو په
پوډرو وينځل. دغه خلک له صابون سره بلد وو خو استفاده يې ورنه
نۀ کوله.

دا دودونه تر هغو پورې ژوندي وو چې د ډوډۍ خوړلو اروپايي طرز
او کلتور ورو ورو غلبه وکړه. اوس موږ د ډوډۍ کوټه، مېز،
کاچوغې، پنجې او چاړې لرو خو له بده مرغه آداب يې نه لرو.



# د ټولنې بېل شوي او شړل شوي غړي

بنيادم له ډېر پخوا وخته په ټولنه کې د سولې او نظم د ساتلو لپاره
اصول لرلي دي. چې چا به دغه اصول او دودونه تر پښو لاندې کول،
ټولنې به له ځانه شاړۀ چې جزا ووينې. سرغړوونکی به يوازې په دې
شرط معاف کېدۀ چې ژمنه به يې وکړه چې بيا داسې نه کوي. که به يې
ژمنه ونه کړه او يا به يې سرغړاوی د بخښولو نه و نو مجبور به و چې د
يوازې ژوند سختې وګالي. خو له ټولنې بېل په تنهايي کې اوسېدل او
پاييدل ممکن نه وو، همدا وجه وه چې ډېرو لږو کسانو د سرغړاوي
جرات کاوۀ.

تاريخ راته وايي چې ټولنې ځينې ډلې يا کسان په دې وجه له ځانه بېل
کړي او شړلي دي چې سياسي، کلتوري يا اجتماعي نظريات يې د
ټولنې له منل شويو اصولو سره په ټکر کې وو. په شړل شويو کې
سياسي ډلې، ناراضيان، مجرمان، روښاندان، لېوني او کله کله خو ان
لاعلاجه ناروغان شامل وو. د واکمنو سلوک له هغو کسانو سره د
دښمنۍ سلوک و چې د دوی سياسي اقتدار ته يې خطره پېښوله او د
حکومت د نسکورېدو هڅه يې کوله. دغه سياسي سرکښان نه يوازې
د پاچا خپل غليمان حسابېدل بلکې د سلطنت د ثبات لپاره خورا
خطرناک عناصر بلل کېدل. نو، سمدستي به جزا ورکول کېدله. يا به د
ټاکلي وخت په مخه بنديخانې ته لاړل چې په خپلو کړو د پښيمانۍ او

پاچا ته د وفاداری د څرګندولو وخت ومومي او یا به د خيانت په تور
اعدام شول.

يو بل ډول سرکښان هغه کسان وو چې د ټولنې له اخلاقي اصولو،
کلتوري ارزښتونو او دودونو يې انکار کاوۀ. د غسې وګړي هم
غليمان ګڼل کېدل او يوه جزا يې دا وه چې خلکو به ورسره رابطه نه
ساتله. د اکثرو په نظر دوی سم کسان نه وو، دوی بې لارې او
ښويېدلي وو.

يوناني فيلسوف سقراط د دارنګه خلکو يو مثال دی چې د زلمو د
ذهنونو په خرابولو تورن او اعدام شو.

يوه بله ډله د مفرورانو وه، چې غلۀ او قطاع الطريق وو. داسې هم شوي
دي چې دوی د واکمنې طبقې د بې انصافۍ له لاسه د حکومت پر
خلاف بغاوت کړی، ځنګلونو ته تښتېدلي، هلته يې پناه اخيستې،
له هغه ځايه يې د شتمنو شتۀ لوټ کړي او د لوټ مالونه يې کله کله
په خوارانو چې د دوی ملاتړي او ساتندوی وو، وېشلي دي.

په لرغونې زمانه او منځنيو پېړيو کې د جذام ناروغان له اجتماعي
ژونده په بشپړه توګه محرومېدل. له جذاميانو سره به تبعيض کېدۀ او
کليسا به ناولي بلل. د عيسوي دين عالمانو ته جذام د روح ناروغي
ښکارېدله. له همدې کبله جذاميانو اجازه نه لرله چې بازار ته لاړ شي،
سودا واخلي، کليسا ته تګ راتګ وکړي او يا داسې بل ځای ته چې
خلک ورځي، ورشي. د قانون حکم و چې جذامي د ميراث حق نه لري.
د دې لپاره چې خلک جذامي وپېژني، هغه مجبور و چې خاصې جامې
واغوندي. وروسته بيا د جذاميانو بېلې کالونۍ جوړې شوې. له نورو
خلکو سره به د دې کالونيو د اوسېدونکو رابطه غوڅه وه. د خپلو



کورنيو غړيو به هم لکه هغوی چې بېخي ژوندي نه وي، هيڅ تعلق
ورسره نه ساتۀ.

يو بل هغه ګروپ چې له ټولنې بېل و، د لېونيانو و. البته، ټولنې
لېوني زغمل، ځکه ضرر يې نه رسېدۀ. لېوني چې د راتلونکي وخت په
باره کې په غيرواضحه ژبه غږېږي، په هند براغظمګي کې ورته د
بزرګانو او غيبګويانو په سترګه کتل شوي دي. عام خلک به تر لېوني
راتاو وو، ډول ډول پوښتنې به يې ورځخه کولې چې د خپل تقدير په
اړه څۀ ورنه واوري. په اوسنۍ زمانه کې لېوني په لېونتونونو،
روغتونونو او دارالمساکينونو کې ساتل کېږي.

د مجرمانو په باره کې بايد ووايو چې دوی ته د جرم د نوعيت مطابق
ډول ډول سزاګانې ورکول کېدې. لکه اعدام، مريتوب، جلا وطني او
شکنجه. اروپايانو د استعمار په زمانه کې مجرمان مستعمرو ته
استول او هلته يې په جزايي ډول په کانونو او کروندو کې بې معاشه
کارونه ورباندې کول. په دې سلسله کې استراليا ډېره مشهوره وه. د
انګلستان حکومت به د وړو جرمونو مرتکبان په بېړيو کې استراالیا
ته استول، هورې به يې د ارزانه مزدورانو کار ورنه اخيست.

په اوسنۍ زمانه کې په هغو ځايونو کې چې د صنعت او ديموکراسي
ريښې ښې غځېدلي دي، خلکو له خپلو سرکښو غړيو سره سلوک
بدل کړی دی. په دغو ټولنو کې د سرکښو کسانو دود- مخالف نظرونه
زغمل کېږي او د دوی د فکرونو په بيان باندې بنديزونه نه لګېږي. خو
په هغو ټولنو کې چې لا د منځنيو پېړيو سياسي نظام حاکم دی، له
سياسي او اجتماعي مخالفانو سره د پخوا زمانو غوندې وحشيانه
رويه روانه ده.

د جنايت کارو په اړه بايد ووايو چې په اروپا کې په ۱۸۳۰کې د جرمونو د کمولو او د ټولنې په سم غړي د جنايت کار د بدلولو لپاره د بنديخانو عصري نظام تشکيل شو. د بند يخانو د نوي سيستم لومړی مقصد دا دی چې مجرم د زندان د پنجرو شاته واچوي او په دې ډول د بل جنايت د کولو صلاحيت ورنه واخلي. د مجرم د بندي کولو يو مقصد دا هم د ی چې هغهٔ ته جزا بايد حکومت ورکړي، نه د هغهٔ مدعي.

له بده مرغه په دريمه نړۍ کې د محبسونو حال دومره ناوړه دی او له بنديانو سره دومره نا انساني چلند کېږي چې مجرم په سم وګړي نه بلکې په لا بې لارې او بې رحمه وګړي بدلېږي. له بلې خوا په دريمه نړۍ کې ټولنه هم دې ته تياره نه ده چې بندي شوی کس د توبه کړې او سم شوي غړي په حيث ومني. دلته که يو څوک يو ځل مجرم وپېژندل شو، بيا بل هر وخت د مجرم او بې لارې کس په سترګه ورته کتل کېږي.

دا د ټولنې په تاوان ده چې ګڼ کسان او ګڼ ګروپونه له ځانه وشړي او له ټولنيز حيثيته يې محروم کړي. دغسې ټولنه ځان ژوبلوي، ټوک ټوک کېږي، په اجتماعي و سياسي لحاظ شړېږي او کلتوري، اجتماعي نظم يې له منځه ځي. د سرکښو، ناراضو، او مخالفو ډلو د شړلو په ځای پکار ده چې هغوی ته د ټولنې په غېږکې ځای ورکړ شي. دا کار به د ټولنې اجتماعي جوړښت او سټرکچر مظبوط کړي.





# د اکبر پاچا عبادتخانه

په منځنيو پېړيو کې مذهبي تعصب د تقوا او فضيلت نخښه وه. که به چا په دين کې زغم او نرمي کوله، دا کار يې د تقوا کمی بلل کېدهٔ. بوسويه چې د منځنيو پېړيو مشهور ديني عالم وو، په فخر ويلي دي چې په کاتوليک مذهب کې تر بل هر دين ومذهب زغم وتحمل کم دی. په هغه زمانه کې د زغم نشتوالی او تعصب، له هر ډول بدعت او ارتداده د مومنانو د راګرځولو تر ګردو ښه وسيله او د دين د ساتلو تر ګردو ښه طريقه ګڼل کېدله.

دغه حال يوازې هغه وخت بدل شو چې د عقلانيت (رنشنليزم) دوران راغی او نويو فکرونو او نظريو د اروپايانو په ايمان کې شکونه پيدا کړل او عقل ته يې د ژوند په هر اړخ باندې د قضاوت کولو صلاحيت ورکړ. د افکارو تنوير، رنسا نس، د صنعت ودې او د سکيولر نظريو خپرېدا، په شريکه، مذهبي عقايد وګواښل.

ديني عقيدې ته تر ګردو لوی خطر کمونيستي ايديالوژي پېښ کړ. د کمونيزم خطر د ټولو اديانو علما په دې فکر کې واچول چې د خپلو عقيدو د ساتنې لارې چارې ولټوي. دوی وروسته بيا ، له الحاد سره د مقابلې او د ديني عقيدو د حفاظت په نيت د اديانو تر منځ مذاکرات پيل کړل څو په دې ډول د بيلو بېلو دينونو د پيروانو روابط سره نژدې

شي، د ادیانو تر منځ مشترک ټکي راټول شي او د یو بل د زغملو او د
یو بل د پوهېدلو امکان زیات شي.

په هغه زمانه کې چې اروپایان د مذهبي تعصب او نه زغم په لاره روان
وو، په هند کې اکبر پاچا د صلح کل (له ټولو سره سوله) لار خپله کړه او
په خپل نوي پایتخت فتحپورسیکري کې یې په ۱۵۷۵ میلادي کال د
اسلام په بېلو بېلو اړخونو د بحث لپاره د عبادتخانې په نوم یوه موسسه
جوړه کړه.

اکبر پاچا هره پنجشنبه سادات، مشایخ او اشراف په مذهبي بحث کې د
ګډون لپاره عبادتخانې ته دعوتول. مورخ بدایوني په منتخب التواریخ
کې لیکي چې: (د پاچا له هدایت سره سم د لمرخاتۀ خوا ته امرا، د قبلې
خوا ته سادات، سویل ته علما او شمال ته مشایخ کېناستل. پخپله پاچا
به کله په یوه او کله په بله ډله کې ناست و، د دوی خبرې به یې اورېدلې او
د دوی د نظریاتو په اړه به یې پوښتنې ګروېږنې کولې.) که به ریفرینس ته
اړتیا پېښه شوه د سلطنتي کتابتون کتابونه د دوی په خدمت کې وو.

په عبادتخانه کې به د اسلام د تاریخ، فقهي او احادیثو په باب توند وتېز
بحثونه روان وو. علماوو به پر یو بل تور لګاوۀ او پر یوبل به یې د کفر
ټاپې لګولې. دوه کسه لوی علما، ملا عبدالله سلطانپوري او عبدالنبي
صدر چې یو وخت یې په اکبر پاچا ډېر اثر پروت و، له ابوالفضل سره په
مناظره کې پاتې راغلل. ابوالفضل چې د عبادتخانې د جوړېدو په کال
دربار ته راغلی و، په بحثونو کې ډېر تکړه و. دۀ به په بحث کې خپل
مخالفان لاجوابه کول. دۀ دا خبره د ملنډو او تحقیر په نیت لیکلې ده
چې: متعصب علما او معمولي فقها وشرمول شول.)

وروسته بیا د حکیم ابوالفتح ګیلاني او میر شریف آملي په څېر شیعه
علماوو په راتلو سره په عبادتخانه کې د اسلام یو بل ډول تعبیر وړاندې
شو. د علماوو تر منځ په وړو وړو خبرو شورماشوراو های وهوی که څه



هم د اکبر پاچا طبیعت ورخته کړی و مګر په خپله دا د بحث موضوعاتو
ډېر خوند ورکاوۀ.

د بدایوني په قول: دۀ به د پوهانو او مشایخو په ملګرتیا ډېر وخت په
عبادتخانه کې تېراوۀ او په تېره بیا د جمعې شپه خو یې تر سهاره پورې د
دین د اصلي یا فرعي موضوعاتو په اړه په بحثونو او پوښتنو روڼوله.)
اکبر پاچا که دغو متفاوتو تعبیرونو ته حیرانۍ وړی و، دا بلکل طبیعي
وه، دۀ ویلي دي: کاشکي مې د نقلي علومو له ښوونکو د نظریو دومره
اختلاف نه وای اورېدلی، او کاشکي د آیتونو او حدیثونو دومره
متفاوت تعبیر وتفسیر نه وای حیران کړی.)

دی چې د اسلامي علماوو تر منځ بحثونو قانع نه کړ، نو د نورو دینونو د
تعلیماتو په اړه د معلوماتو د حصول لپاره یې عبادتخانې ته د نورو
ادیانو لوی علما راوبلل چې په بحثونو کې برخه واخلي.

دلته د هندو دین علما راغلل. دوی د برهمن ایزم اصول او عقاید شرح
کړل. ورپسې د جین (دا هم په هند کې یو دین دی چې د ژوندو موجوداتو
نه وژلو ته خورا اهمیت ورکوي. له یوې احصاییې سره سم د هند دوه
فیصده خلک د جین دین پیروان دي. ژباړن) علما راغلل چې د هغو تر
اغېز لاندې اکبر په خاصو ورځو کې د مال حلاله منع کړه. د زردشتي دین
عالم، دستور مهرجي رانا هم د خپل دین غوټې پرانیستلې او لکه څنګه
چې بدایوني لیکلي دي، په اکبر پاچا باندې زردشتي عقیدې دومره اثر
وشیندۀ چې: پر ابوالفضل یې امروکړ چې د زردشتیانو له رواج سره سم
باید د ورځې په ټولو ساعتونو کې په دربار کې د مقدس اور د بل ساتلو
بندوبست وشي.)

اکبر د لټون د شوق په حکم په ګوا کې استوګن پادریان دربار ته وروبلل
چې د عیسایت په باره کې معلومات ورنه واخلي. د مسیحي تبلیغیانو
لومړی ډله د پادري اکوا ویوا په مشرۍ فتحپورسیکري ته په ۱۵۸۰ کې

لاړه. د دې ډلې یوه غړي پادري مونسرت د اکبر دربارته د سفر ډېر په زړه
پورې راپور لیکلی دی. ده لیکلي دي چې: پادریانو او د مسلمانانو دیني
مشرانو په ګڼو مسایلو لکه تثلیث، خدای، د خدای زوی، د هغه مرګ... د
حساب ورځ، مرګ، بیا ژوند او نورو مختلفو سیاسي او فلسفي
موضوعاتو پرله پسې بحثونه کول. البته، بې له مبالغې یا کلانکارۍ
وایم چې د خدای په مرسته، پادریانو په بحث کې خپل مخالفان داسې
غلي کړل چې هردم به یې ویل چې که عیسایت حق وي نو معجزه مو کومه
ده.)

که څه هم پادریانو د بحث په وخت خورا ترخه ژبه کاروله خو اکبرپاچا او
درباریانو یې حوصله نه بایلله او اجازه یې ورکوله چې خپلې خبرې په
ازادۍ سره وکړي.

د منځنیو پېړیو په تاریخ کې د عبادتخانې تجربه ساری نه لري. دغه
تجربه له یوې خوا د دیني علماوو وچ تعصب راښیي چې د نورو عقیدې
به یې ردولې او په خپلو عقیدو به یې ټینګار کاوه. له بلې خوا دغو
بحثونو داسې چاپېریال رامنځ ته کړ چې دیني پوهانو به خپل نظریات په
ازادۍ سره پرته له ممانعته بیانول. د دینونو تر منځ دغو خبرو زغم او
تحمل پیدا کړ او له اکبر سره یې مرسته وکړه چې په هندوستان باندې د
حکومت کولو لپاره د صلح کل پالیسي خپله کړي.

دا یو عام سو تفاهم دی چې وایي اکبر پاچا نوی دین جوړ کړ. د (دین
الهي) کلمه محسن فاني په(دبستان مذاهب) کې له ځانه جوړه کړې ده.
دغه کتاب د جهانګیر په زمانه کې لیکل شوی دی. ابولفضل د دین الهي
په ځای د (آیین رهنموني) اصطلاح راوړې ده چې د لارښوونې مقررات
یې معنا ده. د اکبر د مذهبي زغم پالیسي د هند لپاره چې د بېلو بېلو
دینونو خلک پکې اوسېدل، مناسبه وه. اکبر وغوښتل د ټولو خلکو پاچا
واوسي، که د هرې عقیدې او هر توکم خلک وي.



# مناظره

دینونه دوه ډوله دي: یو هغه چې په نړۍ کې د خپلې عقیدې په خپرولو
او د نورو ادیانو د پیروانو په ماتولو باور لري او دې مقصد ته د
رسېدو لپاره خبرې اترې او تبلیغ کوي. بل هغه ادیان دي چې له نورو
سره د خبرو ضرورت نهویني، له خپلو پیروانو بس دا غواړي چې په
خپله عقیده کې کلک واوسي. اول ډول ادیان چې تبلیغي ډلې لري،
له یو بل سره یې رقابت وي. دوی د پیروانو د شمېرد ډېرولو لپاره، د
تبلیغ مختلفې لارې او ستراتېژۍ خپلوي چې هم د کشمکشونو او
ټکرونو او هم د فکري ودې او تحرک سبب ګرځي.

اسلام چې هند براعظمګي ته راورسېد، له هندوایزم سره یې ټکر
رانغی، ځکه په هندوایزم کې د خبرواترو او بحث مفکوره نه وه. خو
کله چې د شرقي هند کمپنۍ د ملاتړ په سیوري کې د عیسوي دین
تبلیغي ډلې هند ته راورسېدلې نو فعالیتونو یې اسلام ته خطره پېښه
کړه چې په نتیجه کې یې د بېلو بېلو دینونو د علماوو تر منځ بحثونه
دود شول. دې دود ته مناظره وایي. په مناظره کې چې یا به د خاصو
کسانو اویا د عامو خلکو په حضور کې وه، د دین پوهانو په بېلو بېلو
دیني مسایلو باندې د خپلې عقیدې په رڼا کې بحث کاوه. چې چا به
خپل مقابل لوری بې ځوابه کړ، هغه د مناظرې ګټونکی و. د دې لپاره

چې مقابل لوری په خپله عقیده کې راګیر شي نو مناظره کوونکي ته
پکار و چې د حریف له دینه خبر واوسي.

په هندوستان کې د داسې مذهبي مناظرو پیل د اکبر پاچا له درباره
هغه وخت وشو چې دۀ په ۱۵۸۰-۱۵۷۹کې عیسوي مبلغانو ته د ورتلو
بلنه ورکړه. په دربار کې په هیڅ ژبه د بايبل (د عیسویانو مقدس
کتاب) نسخه نه وه خو دغو مبلغانو د بايبل عبري، لاتیني او یوناني
نسخې له ځان سره لرلې. مسلمانو علماوو چې بايبل نه وو لوستی نو
سم ورنه خبر نه وو، حال دا چې قران کریم په ۱۱۴۳ میلادي کال کې
لادکیتون رابرت ( رابرت اف کېټون) په لاتیني ژباړلی وو. عیسایي
مبلغانو چې د قران ژباړه ښه لوستې وه، له مسلمانو علماووسره په
بحث کې یې ورنه استفاده کوله. د مسلمانو علماوو د معلوماتو کمی
د دې سبب شو چې هغوی د عیسایي مبلغانو سوالونو ته په ځواب
ورکولو کې پاتې راشي. یو ځل په یوه مباحثه کې دیني عالم شیخ
قطب الدین عیسوي مبلغانو ته وویل چې راځئ اور ته ودانګو، که
هر څوک ورنه روغ راووتل، معنا یې دا ده چې په حقه لار روان دی. خو
اکبر پاچا دوی له دې چارې په دې دلیل راوګرځول چې د اور کار
سوځول وي، نه د حق و باطل معلومول.

عیسایي ډلو د د اکبر د زوی، جهانګیر په زمانه کې دربار ته تګ
راتګ جاري وساتۀ. دوی جهانګیر پاچا ته په ۱۶۰۹ کې د بايبل
فارسي ژباړه ورکړه.

دغه مذهبي بحثونه ښیي چې که څه هم د مغولو امپراطوري په
سیاسي لحاظ د خپل عظمت په اوج کې وه مګر د معلوماتو په لحاظ
د هغه وخت د مسلمانو علماوو مزه نه وه او له تاریخ، فلسفې، منطق



او نورو دینونو ډېر خبر نه وو. دوی د استدالال په نسبت په پټو
سترګو منلې عقیده باندې ډېره تکیه کوله.

کله چې شرقي هند کمپنۍ په سیاسي قدرت بدله شوه، نو د
هندوستانیانو د احساساتو د پارېدو له وېرې یې د عیسوي مبلغانو
په راتلو بندیز ولګاوۀ. خو وروسته په ۱۸۱۳ کې د عیسایانو تبلیغي
ډلو بیا اجازه وموندله چې هندوستان ته راشي او عیسایت خپور کړي.
سرسید احمد خان د ۱۸۵۷کال د بغاوت د علتونو په باب په خپله
مشهوره رساله کې لیکي چې د دې بغاوت یوه وجه په هند کې د
عیسایي مبلغانو تبلیغ و څکه د هند خلک یې د خپلې عقیدې د
ساتلو په برخه کې اندېښمن کړي وو.

هندوستان ته تلونکو تبلیغیانو به عربي، فارسي، اردو او د هند
نورې ژبې زده وې او د اسلام او هندوایزم په اړه به یې مطالعه لرله.
دوی د عیسایت د خپرولو لپاره د نورو دینونو له علماووسره د عامو
خلکو مخې ته مناظرې پیل کړې. په ۱۸۳۹کال کې یو جرمنی مبلغ چې
کارل پفاندر نومېدۀ، د مسلمانانو او هندوانو د عیسایي کولو په
شوق هندوستان ته راغی. دۀ د مسلمانانو په اړه فکر کاوۀ چې اوس
یې د زوال وخت دی او نور نو شیمه پکې نه ده پاتې. مېرمن اورل پاول
په خپل کتاب (تر بغاوت دمخه هندوستان کې د مسلمانان او د
عیسایانو تبلیغي ډلې) کې لیکي: کارل پفاندر چې د اسلامي نړۍ
بدې ورځې او د اروپایانو سیاسي- اقتصادي قدرت ته وکتل نو دا
نتیجه یې واخیسته چې مذهبي ارزښتونه به هم د اروپایانو زورور
وي.)

پفاندر ګومان کاوۀ چې د مسلمانانو اشراف، ملایان او عادي خلک
چې د زوال په حالت کې دي، په خپل دین به یې باور کم شوی او په
اسانه به عیسایت ته واوړي.
دغه وخت چې په هندوستان کې سیاسي قدرت د عیسوي مبلغانو
پرخوا وو، د دوی ګواښ تر پخوا پیاوړی وو. خو له بلې خوا مسلمان
علما په دې پوه شوي وو چې باید د خپل دین دفاع د دلیل په مټ
وکړي نه د احساساتو په زور. نو دوی د بایبل له هغو ژباړو چې
عیسوي مبلغانو د خپل دین د خپرولو په نیت کړې وې، پوره ګټه
واخیسته. هغه څوک چې په دې زمانه کې د مناظرو د میدان اتل شو،
هغه یو ملا نه بلکې یو ډاکتر وو چې وزیر خان نومېده. وزیر خان له
عیسوي مبلغانوسره د مقابلې لپاره په اروپا کې چاپ شوي کتابونه
چې د عیسایت په اصولو یې نیوکې کړې وې، لوستي وو. دی چې په
نوې پوهه پوره سمبال و، کارل پفاندر ته یې په څو بحثونو کې ماته
ورکړه. په اخر کې مات شوی پفاندر له هندوستانه ووت.
د نولسمې پېړۍ د مذهبي مناظرو یو اهمیت په دې کې دی چې د دغو
بحثونو په نتیجه کې ځینو مسلمانوعلماوو په تېره سرسیداحمدخان او
مولوي چراغ علي، له نویو ارزښتونو سره د اسلام د تعلیماتو د تطابق
لپاره د اسلام نوی تفسیراو تعبیروړاندې کړ. سرسیداحمدخان او
مولوي چراغ علي د عیسوي مبلغانو په وړاندې د خپل دین د دفاع په
څنګ کې، اسلام ته له مترقي لید لوري وکتل. خو د دوی نظریاتو د
مسلمانانو د اکثریت توجه جلب نه کړه او د دیوبند علماوو له خپلو
دودیزو او رواجي مفکورو سره ډېر ژر د هند په مسلمانه ټولنه کې نفوذ
وکاوۀ، چې په نتیجه کې زموږ دیني علما یو ځل بیا د اکبر پاچا په زمانه
کې خپل دریځ ته ستانۀ شول. د نړۍ په باره کې د دوی لید محدود شو او
دلید محدودیت دوی د نوې زمانې د غوښتنو له درکه عاجز کړل.



# د پیل تر پښو لاندې

د براعظمګي په تېر تاریخ کې د اعدام جزاګانې له لویه سره په دوه
ډوله وې: یو د قتل، غلا، زبرزما ( د جبر زنا )او یا اختطاف په څېر
اجتماعي جرمونو لپاره او بل د بغاوت لپاره د اعدام جزا وه.
هر هغه چا ته چې د واکمن پرخلاف به یې اقدام کاوۀ، د واکمن د وژلو
هڅه به یې کوله او یا به یې د حکومت د نسکورولو دسیسه جوړوله،
سخته جزا ورکول کېده. د اجتماعي جرم د جزا ټاکل د قاضي کار و.
قاضي به په محکمه کې په دوسیه باندې له غوره وروسته یوه فیصله
وکړه. خو د واکمن پر خلاف د جرم دوسیه به واکمن پخپله څارله،
ځکه دغسې کس د واکمن شخصي دښمن ګڼل کېده. د بغاوت جزا
معمولا اعدام وه. البته کله کله به د درباریانو یا لویو اشرافو شفاعت
د باغي د بخښنلو سبب شو.
د سلطنت د زمانې (د ۱۲۰۶ او ۱۵۲۶ تر منځ) او د هند د مغولو د
زمانې(له ۱۵۲۶ څخه تر ۱۸۵۷ پورې) تاریخي شواهد راښیي چې
باغیانو او مجرمانو ته جزا څنګه ورکول کېده. د اعدام حکم به د سر
غوڅولو، په دار کولو، حلالولو، سا تربتولو، ژوندي ښخولو، د کلا
له بامه د راخطا کولو او یا د هاتي تر پښو لاندې اچولو په بڼه اجرا
کېده. دا دود هم وو چې د محکوم د بدن غړي دې په ژوندوني غوڅ او
تر هغه وروسته دې ووژل شي. که به محکوم د سلطنتي کورنۍ غړی و
نو ممکنه وه چې په زهرجنو خوړو باندې په اسانه ختم شي.

د حکومت یا پاچا پرضد باغیانو یا دسیسه جوړوونکو ته خورا سختې جزاوې ورکول کېدلې. د داسې کسانو خپلوانو به د اعدام شوي د ښخولو ا جازه نه لرله. د محکوم مړی به په ورځو ورځو د ښار په چوک یا داسې بل معلوم ځای کې تر هغو ځړېدلی وو چې غوښې به یې وشړېدې اویا به ځناورو او مرغانو وخوړې. په ځینو مواردو کې د محکوم مړی په ښار کې ګرځول شوی دی.

سیاسي بندیان د واکمن مخې ته اعدامېدل. په پاچهي ماڼۍ کې به هاتیانو ته روزنه ورکول کېده چې د واکمن په یوه اشاره باندې محکوم چخنې کړي. محکوم به میدان ته لاس و پښې تړلی راوستل شو. هالۀ به روزل شوی پیل محکوم ته مخامخ ودرېد او د واکمن په اشاره به یې پر محکوم باندې پښه کېښوده. دا دردوونکې جزا وه خو د هند براعظمګي په تېر تاریخ کې ډېره تکرار شوې ده.

همدا جزا د جلال الدین خلجي په دورکې( له ۱۲۹۰ تر ۱۲۹۶ پورې) سیدي مولا ته ورکړه شوه چې د واکمن پرخلاف یوه دسیسه کې د لاس لرلو شک ورباندې و. علاوالدین چې په جلال الدین پسې له ۱۲۶۹ تر ۱۳۱۶پورې پاچهي وکړه، د چنګېزي مغولو د یرغل له تمبولو وروسته ټول جنګي اسیران د پیلانو تر پښو لاندې چخنې کړل. د دې پېښې په اړه د دغه سلطان د زماني مورخ ضیاالدین برني لیکلي دي چې سلطنتي تخت د وینو په دریاب کې ډوب شو. چنګېزي لښکرې چې له دا رنګه جزا وېرېدلي وې، پر هند باندې له حملې منصرفې شوې.

جلال الدین محمد اکبر(۱۵۵۸-۱۶۰۶) د خپل رضاعي ورور ادهم خان په اړه چې په قتل متهم وو، حکم وکړ چې د ماڼۍ د دیوال له سره دې



لاندې راګوزار شي او دا عمل دې تر هغو تکرار شي چې سا یې په تن کې وي.

کله چې د جهانګیر پاچا زوی، خسرو، ناکام بغاوت وکړ نو جهانګیر خپل زوی اوټولو هغوکسانو ته جزا ورکړه چې ملګرتوب یې ورسره کړی وو.

د لاهورد ټکسلي دروازې د باندې د دارونو یو قطار جوړ شو او ټول باغیان د خلکو مخې ته په دار شول. د شهزاده خسرو دوه ملاتړي، حسین بېګ او عبدالرحیم د خرۀ او غویي په پوستکو کې وګنډل شول او د لاهورښار په بازارونو کې په خرو سپاره وګرځول شول. د خرۀ د پوستکي د ژر وچېدو په وجه د حسین بېګ سا تربت شوه، ومړ، خو هغه بل چې د غوايي په پوستکي کې و، د خپلو ملګرو په مرسته وژغورل شو.

د حیوان په پوستکي کې د محکوم ګنډل، د چنګېزي مغولو دود و. د بابر اولادې (هندي مغول) دا جزا له هغوی زده کړې وه. البته له همدې خاص مورده وروسته موږ بل داسې سند نه لرو چې د بابر د اولادې بل پاچا دې د دا رنګه جزا حکم کړی وي.

اورنګزېب پاچا د خپل ورور داراشکوه او د داراشکوه د زوی د حلالولو حکم وکړ. د حکم له اجرا وروسته د داراشکوه مړی د پیل په شا د ډیلي په بازارونو کې وګرځول شو. د هغۀ وخت د مورخ خافي خان په قول د ډیلي خلکو د داراشکوه د مړي په لیدو ژړل او د هغۀ پر قاتلانو یې لعنت وایۀ.

د بابر د کورنۍ د وروستیو پاچاهانو په زمانه کې واکمنو د اعدام عصري طریقې خپلې کړې. مثلا په ځینو مواردو کې به محکومان د توپ خولې ته تړلي ودرول شول او توپ به ډز وکړ. دا طریقه انګرېزانو

هم خوښه کړه او په هند کې يې د خپل حاکميت په دوران کې ډېرځله
ورنه کار واخيست.

د هند په تاريخ کې دا هم وينو چې مجرمانو ته د اعدام نه بلکې د يوې
قلعې په زېرزمينۍ کې د بندي کېدو او تدريجي مرګ سزا ورکول
شوې ده. بنديان به په دغو زېرزمينيو کې د ناوړې تغذيې، د تازه هوا
د نشتوالي او د بدو صحي شرايطو په علت ورو ورو په زجر مړهٔ کېدل.

يو ايټاليايي سيلاني، منوچي، چې د ۱۶۵۸ او ۱۷۰۳کلونو تر منځ
هند ته تللی و، ليکي چې د هند د مغولو پاچايانو دا عادت دی چې
سياسي بندي ته داسې زهر ورکوي چې صحت يې ورو ورو خراب شي
او په اخر کې ومري.



# جرم او جزا

د قانون غوښتنه دا ده چې که څوک له قانوني مقرراتو يا د ټولنې له
اصولو غاړه غړوي، جزا يې پکار ده. جرم په هره ټولنه کې له جزا سره
غوټه وي.

جزا له وهلو ټکولو، جريمې، جلا وطنۍ او د محکوم له مريي کولو
رانيولې تر اعدام او عمري قيده پورې بېلابېلې بڼې لري. په لرغونې
زمانه او منځنيو پېړيو کې منظمې بنديخانې نه وې. مجرمان به يا په
کورونو کې حبس وو، يا به په داسې ودانيو کې ساتل کېدل چې د
سرکار پيرې به پې ولاړې وې او دا امکان به ډېر کم و چې بنديا ن
وتښتي يا د باندې ووځي.

په پخواني يونان کې موږ د دا رنګه قيدوبند يو مثال د سقراط په
قضيه کې وينو چې د اعدام د فيصلې له اعلانېدو وروسته بندي شو.
که څهٔ هم د سقراط ملګرو د هغهٔ د تېښتې پلان جوړ کړ خو دهٔ تېښته
ونه منله، دا يې غوره وبلله چې قانون ته د وفادار تبعه په توګه ومري.

مورخانو په لرغوني مصر کې هم د بنديخانې د يوډول سيستم نخښې
ليدلې دي. په دې هېواد کې د بنديانو د چارو د بندوبست لپاره
مديران، کاتبان او پيره داران مقرر وو. بنديانو به کار کاوهٔ. د بندي
تېښته لوی جرم و او تېښتېدلي ته سخته سزا ورکول کېده.

په لرغوني روم کې پوروړکوونکي حق درلود چې پوروړي بندي کړي، ويې وژني يا يې د مريي غوندې په بل چا وپلوري. د روم د وطن مالکانو کورنۍ بنديخانې لرلې. دوی به خپل نوکران اوغلامان بنديانول چې سم وچلېږي.

په انګلستان کې پاچا ويليم (۱۰۶۰ – ۱۰۸۶ ) د لندن برج د سلطنتي کورنۍ د قيدي غړيو لپاره جوړ کړ. دغه برج څو پېړۍ د سلطنتي کورنۍ د غړيو، د لويو باغيانو او مشهورو شخصيتونو د قيدېدو ځای و. دلته مثلا والټر رالي او ملکې ان بولين د بند ورځې شپې تېرې کړې دي. له دې برج سره متعلقه يوه جالبه کيسه د دورهام د بيشپ ( اسقف ) ده. دغه سړی د مالي فساد په تور دلته بندي و. د دۀ وخت په برج کې ښۀ تېرېدۀ ځکه د پيرې کسانو ته يې رشوت ورکاوۀ او هغوی په مقابل کې ورته هر ډول اسا نتياوې برابرولې. يوه ورځ بيشپ (اسقف، عالي رتبه روحاني) پيره داران مېلمانۀ کړل، ښۀ خوندوره ډوډۍ يې ورکړه او بېتوله مشروب يې ورباندې وڅښل. چې دوی سم نشه شول، بيشپ د رسۍ په ذريعه له برجه راکښته شو، وتښتېد.

دويم هانري د خپل قلمرو په ګوټ ګوټ کې بنديخانې جوړې کړې. له مقرراتو سره سم، بندي مکلف و چې د ځای، ډوډۍ او سونګ پيسې ورکړي. که به بندي بېوزلي و، خيريه اداري يې د محبس لګښت ورکاوۀ. ويل کېږي چې اتلسمه پېړۍ په اروپا کې د عصري محبسونو د نظام د زېږېدو زمانه ده.

د منځنيو پېړيو په هند کې د بنديخانې نظام نه و. مجرمان به وهل کېدل، جريمه به يې ورکوله، اعدامېدل به او يا به په کوتوالۍ کې د لنډ وخت لپاره توقيف کېدل. د هند د مغولو په دور کې د شاهي



کورنۍ غړي او امرا په ګواليار قلعه کې حبس کېدل. جهانګير په تزک کې ليکلي دي چې دۀ، مذهبي عالم او صوفي احمد سرهندي ګواليار قلعې ته واستاوۀ چې په خپلو نظرياتو کې تغيير راولي. اورنګزېب هم شهزاده مراد په ګواليار کې بندي کړ. په هند کې څو نورې قلعې هم د اشرافو د حبس او قيد لپاره پکارېدلې.

داسې ښکاري چې د بغاوت په قضيه يا د لويو اشرافو په مورد کې، له کورونو څخه د محبس کار اخيستل کېدۀ. شهزاده دارا شکوه په يوۀ کور کې قيد و او په همدې کور کې د اورنګزېب په حکم ووژل شو. شيوا جي له اورنګزېب سره له ملاقاته وروسته په کور کې نظربند و چې وروسته بيا په يوۀ لوی زنبيل کې پټ شو او ځان يې وايست.

يو بل دود دا و چې بنديان به ځينو اعتباري اشرافو ته وسپارل شول چې ويې ساتي. د سپارل شوي کس د تېښتې مسووليت د نومړي اشرافي په غاړه و. پاچا ته به ځواب دۀ ورکاوۀ.

شهزاده خسرو د خپل پلار جهانګير پر خلاف د بغاوت په جرم په قصر کې بندي شو. چې جهانګير به چيرته سفر کاوۀ، دی به هم ورسره و. وروسته بيا شهزاده خسرو شهزاده خرم ته وسپارل شو. هغه ته چې خسرو د تخت په نيولو کې خپل سيال ښکارېدۀ نو دکن ته د لښکر لېږد په وخت يې په پټه زهر ورکړل. په هند کې د بنديخانو او محبسونو نوی نظام انګرېزانو رواج کړ.

# د ټولنې دوه کلتورونه

بکهتي او دليت غورځنگونه که څۀ هم په ښېځي ښېلو وختونو کې وو، خو په دواړو کې له مسلط او لاسبري کلتور سره د سيال او حريف کلتور د مبارزې او مقابلې زور او شور وينو.

د ولسونو په عام پسنده کلچر کې د مسلطو طبقو د بې رحميو، استثمار او بې انصافيو د افشا کولو لپاره د کيسو د مجلسونو غونډې جالبې وسيلې پيدا کولای شو. د دې کيسو اصلي اتلان باچهان، جنرالان او يا نور لوی مقامات نه وو، بلکې هغه کسان وو چې له حاکم نظام سره يې مخالفت او د هغۀ په مقابل کې يې بغاوت کاوۀ. د د غو کيسو اتلان به د عوامو زامن وو او د عوامو په گټه به له ظالمانو سره جنگېدل چې عدالت راولي. دغه راز په ولسي کلچر کې ټوکيان، ټگماران او خندوونکي ممثلان وينو چې د خپلو چلونو او هنرونو په مرسته به يې د عادي خلکو د ژوند په تيارو کې د څو شېبو خوشحالي او رڼايي راوسته.

ډاکوان او مسلح غلۀ چې د حکومت د قدرت پروا يې نه لرله، د عوامو په کلچر کې سمدستي په اتلانو بدل شول.

دغه کسان د خلکو د ځواک او د دوی د ارزوگانو سمبولونه وو. له سيا سي اقتدار سره د د دغو کسانو مقابله او مبارزه نه يوازې په کيسو کې بيان شوې بلکې په سندرو کې راغلې او په خورا شوق و



جذبه ويل شوې ده. د هند په شمال کې سلطانه ډاکو عادي خلکو ته د روحيې ورکولو الهه شوه. په پنجاب کې نظام لوهار تر اوسه پورې په فولکوريک ادب کې د هيرو غونډې ستايل کېږي. په سند کې چې قطاع الطريق پرو چانديو ووژل شو، گڼ خلک يې جنازې ته ورغلل او ډېر وستايل شو، ځکه دۀ د مظبوط مرکز او دولتي ادارو پر خلاف بغاوت کړی و. دغه ادارې او موسسې د سند عوامو ته ظالمې ښکارېدې. موږ دا رنگه مثالونه، لږ يا ډېر، د هند براعظمگي په بل هر ځای کې موندلی شو.

په يو بل مثال کې وينو چې خلکو د اوازو په وسيله د حاکمې طبقې د شرمولو هڅه کړې ده. د اوازو او گونگوسو کلچر يوه ډېره زوروره وسله ده چې اوس هم د پخوا په څېر په پراخه پيمانه استعمالېږي. په سرکاري رسنۍ او رسمي تبليغاتو کې واکمن، جنرالان او مقامات شريف، سخي او ديندار معرفي کېدل خو د خلکو په اوازو کې به دا معرفي سرچپه شوه. د عوامو اوازو، گونگسو او پسپسي به دوی مستبد، زنا کار، بد اخلاق او بې رحمه انځورول.

ايټاليايي سيلاني منوسي، چې د شاه جهان پاچا په زمانه کې هند ته تللی و، په خپل کتاب ستوريا ډو مگور کې داسې گڼې اوازې ثبت کړې دي چې په هغو کې شاه جهان ډېر عياش او بد لمنی راپېژندل کېږي او سلطنتي حرم د فساد ځاله انځورېږي. دغو اوازو او گنگوسو د سلطنت حيثيت له خاورو سره خاورې کاوۀ.

په ولسي نکلونو لکه هير رانجها، سسي پنو، سوهني ماهيوال او ميرزا صاحبان کې اصلي خبره د ټولنې له منل شويو دودونو او رسمونو سرغړاوی دی. چې نکلچيانو به دغه نکلونه په مجلسونو کې ويل او يا به د سندرو په بڼه اورول کېدل خلکو به ورنه الهامونه

اخيستل او د هغو نارينه وو او مېرمنو مېړانه او زړۀ ورتيا به يې ستايله چې د سر په بيه يې د ټولنې له مسلطو ارزښتونو سره مبارزه کړې وه.

شاعري هم د عوامو د کلچر يوه اثرناکه وسله وه چې مذهبي تعصبات يې کمول او په خلکو کې يې زغم پيدا کاوۀ. د شاعرۍ په کاٰبو ټولو ډولونو کې په ملايانو، برهمنانو، شېخانو او زاهدانو ټکونه شوي او ريا کار او دنيا پرسته معرفي شوي دي. د ولس د کلچر ټولو دغو عناصرو د ټولنې ورځني ژوند ته لاره کوله او په پټه خولۀ يې د ټولنې نړۍ ليد بدلاوۀ.

مورِ مېلې، لمانځنې او قسم قسم مذهبي و کلتوري غونډې او اجتماعات هم د عوامو د کلچر برخه بللای شو. د دغو غونډو او اجتماعاتو يو مهم اړخ دا و چې طبقاتي توپيرونه يې نه پېژندل. برخه والو به يې له ا جتماعي خنډونو پرته په جوش او جذبه سندرې ويلې او نڅاوې کولې. د لته دخان وغريب يا زورور و کمزوري فرق نه و. ټول به سره يو ځای وو او د جشن خوشحالۍ به يې له يو بل سره شريکولې.

سيال او حريف کلچر د بې وسو او بې واکو پرګنو کلچر و. د خلکو پرګنې د موزيک، ادب، تياتر، داستانونو او فستيوالونو د عام پسنده ډولونو د خپلولو له لارې په ټولنه کې د خپل ځای د پيدا کولو او د زورورو د زور د اوبۀ کولو لپاره له حريف کلتوره استفاده کوي. دغه کلتور دوی ته شعور ورکوي او د ژوند د ربړو د زغملو حوصله وربخښي.

کلتوري ارزښتونه او دودونه ټولنه کنټرولوي او د اجتماع د چلند، آدابو، لرليد او رويې په جوړېدو او دغه راز د سياسي و اقتصادي



غورځنګونو په زېږېدو او جوړېدو کې برخه اخلي. ټولنه، مادي کلچر چې له ټکنالوژي سره کلک تړلی دی، د معنوي کلچر په نسبت چې له سلوک او آدابو سره تړاو لري، په آسانۍ مني. ځکه معنوي کلچر د ټولنې له اخلاقي يا ملي پېژندګلوۍ سره غوټه دی.

د تاريخ په بهير کې سياسي، اقتصادي او اجتماعي ځواکونه د ټولنې جوړښت بدلوي چې ورپسې نوي کلتوري ارزښتونه او دودونه زېږي. د ټولنې لوړې طبقې د خپلې برلاسۍ د ادامې لپاره د کلتور په دغه نوي حالت کې هغه څۀ خپلوي چې دوی له عادي خلکو بر او بېل کړي. د ټولنې نتلې او ځپلې خلک عوامي کلتور ته مخه کوي چې په ټولنه کې بهتري راولي، البته دوی د لاډېرو خلکو خير په نظر کې ساتي.

# د پاچایانو مېلمستیاوې

خلکو ته ډوډۍ ورکولو همېشه سیاسي او اجتماعي مقصدونه لرلي دي. واکمنو او اشرافو له مېلمستیاوو څخه د وسیلې کار اخیستی او په دې ډول یې نورو ته خپل سخاوت ورښکاره کړی دی. د دې لپاره هم مېلمستیاوې شوې دي چې نور د دربار له بې مثاله آشپزۍ خبر شي. په مېلمستیاوو کې به په ډوډۍ سربېره ساتېري اوتفریح هم وه. نه یوازې نڅا او موسیقي بلکې شعرویل، د مداریانو لوبې او علمي بحثونه په دغو محفلونو کې دود وو.

اشرافي به خپل مېلمه ته پوره بندوبست کاوه، د ډول ډول خوړو په برابرولو به یې ډېرې پیسې لګولې. که به مېلمه پاچا و، نو کوربه به قیمتي سوغاتونه ورکول، چې د ده بلنه یې منلې او د ده سر یې لوړ کړی دی. کله کله نورو مېلمنو ته هم سوغاتو ورکول کېدل.

د پاچایانو له خوا پرله پسې مېلمستیاوې د هغوی لپاره ضروري وې. نظام الملک په خپل کلاسیک اثر(سیاست نامه) کې لیکي چې اشرافو ته ضیافت د پاچایانو دستور و. په تېره بیا د سلطان طغرل (۱۰۳۶-۱۰۶۳) عادت و چې هر سهار به یې په درباریانو او ملازمانو خوندوره ډوډۍ خوړله. ده به د سفر په وخت او یا که به په ښکار وتی و، هم، دغه مېلمستیاوې ورکولې. د دې ډوډۍ به دومره ښه انتظام شوی و او دومره به پریمانه وه چې په درباریانو سربېره، له پاچا سره د لارې ملو عادي خلکو ته هم رسېده. د نظام الملک په قول د ترکستان



واکمن په دې پوهېدل چې خلکو ته د ښې مېلمستیا د ورکولو په ذریعه څنګه پر هغوی حکومت وکړي.

په هندوستان کې د سلطنت په زمانه اود مغولو په دور کې،واکمنو خپلو درباریانو اوپردو مېلمنو ته تل مېلمستیاوې ورکولې. د تاریخ فیروز شاهي لیکوال ضیا الدین برني لیکي چې دا د ډیلي د سلاطینو رواج و چې له علماوو سره به یې ډوډۍ خوړه. اشراف هم په دغو مېلمستیاوو سرلوړي کېدل. برني د اشرافو ترمنځ د ډوډۍ کولو په سر سیالي یاده کړې او کښلي یې دي چې دا د دوی لپاره د حیثیت او پرستیژ خبره وه. دغه مورخ لیکلي دي چې که به یوه اشرافي واورېدل چې سیال یې پنځه سووه کسه مېلمانه کړي نو ده به زرو کسانو ته مېلمستیا وکړه چې تر هغه یې واړوي. د اشرافو ډېرې پیسې په مېلمستیاوو لګېدې او د مصارفو د پوره کولو لپاره یې له سودخورو او ملتاني سوداګرو په ډېره ګټه پیسې پورولې. د بدخرڅیو نتیجه به د دوی بېوسه کېدل او هغه د چا خبره د پولۍ ټک ته کېناستل وو.

تاریخ د هغې مېلمستیا جزییات ثبت کړي چې کیقباد(۱۲۸۷-۱۲۹۰) خپل پلار بغرا خان ته کړې وه. په دې مېلمستیا کې زر ډوله خواړه پاخه شوي وو. په دې سربېره قسم قسم وچې ډوډۍ، کلچې او میټایانې هم د مېلمنو مخې ته ایښې وې.

ابن بطوطه چې د محمد تغلق (۱۳۲۵-۱۳۵۱) په وخت کې هند ته راغلی و، لیکي چې په دربار کې دوه ډوله ډوډۍ وه. یوه د اشرافو او بل د عامو خلکو لپاره. سلطان به له خپلو نژدې امراوو، اشرافو او لوړرتبه مقاماتو سره ډوډۍ خوړه. کله کله به ده د خپلې خوښې اشرافي ته د خاص قسم ډوډۍ ست وکړ چې دا هغه ته لوی ویاړ او

عزت و. له یوۀ اټکل سره سم، د محمد تغلق د پخلنځي ډوډۍ کابو شل زره کسانو ته رسېده. هره ورځ لږ تر لږ دوه زره غوايي او دوه نیم زره اوزې او پسونه حلالېدل، چې خلکو ته ډوډۍ ورسېږي. غواګانې نه حلالېدلې.

نورو سلاطینو هم د مېلمستیاوو دود پاللی دی. سکندر لودي(۱۴۸۹-۱۵۱۷) دیني علما او پوهان مېلمانۀ کول، خو دغو مېلمنو د سلطان مخې ته د ډوډۍ خوړلو اجازه نه لرله. دوی به خپله برخه کورونو ته ورسره وړه. سلطان به د دوی مخې ته یوازې په ډوډۍ ناست وو.

د مغولو په زمانه کې چې سلطنت په امپراطورۍ بدل شو، سلاطین او اشراف لا شتمن شول او مهمانۍ یې لا شانداره شوې. د ډوډۍ د ډولونو په لست کې هغه خواړۀ هم راغلل چې مغول ورسره په منځنۍ اسیا کې بلد وو. وروسته بیا له ایراني خوړو سره بلدتیا دسترخوان لا رنګین کړ. د ډوډۍ د پخولو او برابرولو نظافت ته به خاصه توجه کېدله. د چاپېریال د جذابیت لپاره به عطرونه پاشل کېدل. لا ډېرو خوندورو خوړو اشتهاوې لا زیاتې پارولې او ځینې اشراف د ډېرې اشتها په لرلو مشهور شول. ویل شوي دي چې د اکبر پاچا نژدې ملګری او مورخ ابوالفضل، په متنوع خوراکونو عادت و. ابوالفضل چې به ډوډۍ خوړه، زوی به یې چې د دۀ د پخلنځي د چارو مسوول و، د پلار څنګ ته ناست و، څار به یې کاوۀ چې پلار یې کوم ډول خواړۀ خوښ نه کړل. هغه خواړۀ به بیا نه پخېدل. له ابوالفضله پاتې شوې ډوډۍ به د رتبې په لحاظ راټیټو اشرافو خوړه. عادي خلکو ته په حضر او سفر دواړو کې کېچړې ورکول کېدۀ. د نورجهان ورور اصف خان هم د ډېرې اشتها په لرلو مشهور و.



د مغولو د امپراطورۍ له زواله وروسته د لکنهو او دکن حکومتونو د مېلمستیاوو دغه دود وپالۀ او د ډوډۍ د کلچر د غوړولو لپاره یې پوره پوره هڅه وکړه.عبدالکریم شرر په خپل اثر( ګذشته لکنهو )او نصیرالدین هاشمي په خپل اثر ( دکني کلچر ) کې د دکن او لکنهو د دربارونو د ډوډۍ د خاصو او بې نظېرو ډولونو ذکر کړی دی.

مېلمستیاوې یوازې د مېلمنو د خوشحالولو لپاره نه وې، بلکې له مېلمنو څخه د ځان د خلاصولو لپاره هم وې. واکمنو به کله کله خپل مخالفان مېلمانۀ کړل او په ډوډۍ کې به یې زهر ورکړل. نظام الملک په سیاست نامه کې لیکلي دي چې انوشېروان د مزدک لارویانو ته مېلمستیا وکړه. کله چې دوی د ډوډۍ او شرابو له څښلو وروسته پوره بې حاله شول، ټول یې تر تېغ تېر کړل. اورنګزېب(۱۷۰۷-۱۶۵۸ ) هم د خپل ورور شهزاده مراد د وژلو لپاره همدا کار وکړ. مراد یې د ماښام ډوډۍ ته مېلمه کړ. کله چې مراد په مېلمستیا کې د ډېرو شرابو له څښلو وروسته پوره نشه شو، اورنګ زېب یې د نیولو حکم وکړ او ګوالیار قلعې ته یې واستاوۀ. مراد هلته د قتل په تور محاکمه او اعدام شو. د بنګال واکمن علي وردي خان، مرهټه لیډر بهاشکر او د هغۀ ملګري مېلمانۀ کړل او ووژل.

# په پخوانۍ اروپا کې اعدامونه

جنایت کارو، باغیانو، ناراضیانو او مرتدانو ته د دې لپاره سخته سزا ورکول چې نورو ته عبرت شي، په منځنیو پېړیو کې عام وو. ډېره بوږنده جزا د اعدام وه. په هغه زمانه کې حتی د اعدام په سزا کې هم طبقاتي توپیر ته پام کېدۀ. د منځنیو پېړیو اروپایانو په سرغوڅېدا کې عزت او په دار کېدا کې بې عزتي لیده. ځکه خو اشراف د سرغوڅولو او عادي خلک د په دار کولو لایق بلل کېدل. ښځې نۀ په دار کېدلې. د هغوی به یې ساه ورتربتوله.

په اعدام کې دغه تبعیض د فرانسې انقلاب په زمانه کې چې ډاکټر جوزوف ګیولتین د اعدام نوې وسیله اختراع کړه، ختم شو. دا وسیله چې د خپل مخترع په نوم ده، د هرې طبقې د محکوم لپاره وکارېدله. په فرانسه کې انقلابي حکومت د انقلاب د برابرۍ د اصل په اساس په ۱۷۹۱ کې اعلان وکړ چې د هر چا د اعدام جزا به د سر غوڅولو په بڼه عملي کېږي.

د اروپا په منځنیو پېړیو کې د اعدام لپاره داسې بندوبست کېدۀ لکه تماشه چې وي او خلک یې باید سمه ننداره وکړي.

پتر پیرنبرګ په خپله لیکنه کې چې (د معاصرې اروپا په اوایلو کې وګړي او دولت) نومېږي او په ۱۹۹۸ کې چاپ شوې ده، په پخوانۍ اروپا کې د اعدام د مراسمو او د دغو مراسمو په مقابل کې د خلکو د غبرګون په اړه په تفصیل غږېدلی دی.



دۀ په دې باره کې چې په اعدام محکوم به څنګه د خلکو په جلوس کې د اعدام ځای ته بیول کېدۀ، بشپړ جزییات بیان کړي دي. د اعدام په ورځ به په ټول ښار کې د کلیسا زنګونه ووهل شول. د سړک دواړو غاړو ته به خلک ولاړ وو چې د اعدام ځای ته د مجرم د وړلو ننداره وکړي. کله کله به خلکو د مجرم په خلاف خپل قهر څرګنداوۀ، کنځلې به یې ورته کولې او په تېږو به یې ویشتۀ. خو یو نیم ځل به د غم چوپتیا خپره وه.

د اعدام په ځای کې به دار ولاړ و، قاضیانو او څارنوالانو به رسمي چپنې اغوستې، په خپلو چوکیو ناست وو. خلکو معمولا د اعدام د حکم له اعلانېدو سره سم د خوشحالۍ چیغې سورې او چکچې شروع کولې. له مجرمه توقع کېده چې حکم ومني او ندامت څرګند کړي. خو کله کله به مجرم د اعدام حکم غیر عادلانه بالۀ، قاضیانو او دا نورو خلکو ته به یې سپکې سپورې ویلې او د ځان د بې ګناهۍ دلایل به یې راوړل. دغسې کس سرکښ او نافرمانه بلل کېدۀ.

د اعدام د مراسمو په وخت روحانیونو مذهبي مراسم تر سره کول چې محکوم د خپل روح ژغورنې ته چمتو کړي او قاضیان له چوکیو دم په دم راولاړېدل چې خلک د اعدام دایرې ته له ننوتو منع کړي.

د اعدام ځای په هر ملک کې فرق کاوۀ. په فرانسه کې مجرم معمولا ټیک په هماغه ځای کې په دار ځوړندېدۀ چې جنایت یې کړی و. په نورو ملکونو کې بیا د اعدام خاص ځایونه وو. مثلا په انګلستان کې د لندن ټایبورن غونډۍ د اعدامونو ځای و.

میشل فوکو په خپل کتاب (انظباط او مجازات) کې لیکي چې: د خلکو مخې ته اعدامونه یوازې قضایي نه بلکې سیاسي معنا هم لري.

دغسې اعدامونه، حتی په وړو قضیو کې، له داسې مراسمو سره
غوټه وي چې د حاکمیت مخ روښي وربانديز کېږي.

البته، په ځینو مواردو کې د خلکو مخې ته اعدامونو جنجالونه جوړ
کړي دي. خلکو ته که محکوم بې ګناه ښکاره شوی او د هغهٔ د اعدام
فیصله یې ناسمه بللې نو توند غبرګون یې ښودلی دی.دوی هڅه کړې
چې محکوم د اعدام کوونکو له لاسه راوباسي. فوکو د دغسې پېښو
یوځو مثالونه ورکړي چې د خلکو بهیر د اعدام په مامورینو ورمات
شوی او محکوم یې ورنه ژغورلی دی.په دغسې پېښو کې خلکو نه
یوازې له قانونه سرغړونه کړې بلکې په عدالت او حاکمیت پورې یې
هم ملنډې وهلې دي.

ځینې وختونه داسې شوي چې د اعدام شوي مړی د دې لپاره چې
خلک وویرېږي او په اینده کې قانون مات نه کړي او د حکومت له
اطاعته غاړه ونه غړوي، د څو شپو لپاره د دار په سر ځوړند پاتې
شوی دی. په انګلستان کې جراحانو د انسان د بدن د سپړلو او د خپلو
معلوماتو د زیاتولو په نیت د اعدام شوي د مړي غوښتنه کوله، خو د
اعدام شوي خپلوانو او دوستانو د مړي په عزت سره خښول غوښتل
او د جراحانو تقاضا یې غندله.

د ښکاره اعدامونو په مقابل کې د خلکو رویه وار په وار بدله شوه.
ښکاره اعدام که په منځنیو پېړیو کې خلکو ته تفریح او ننداره وه نو د
قانون د قوت د ښرګندولو وسیله او ذریعه هم وه.

خو، په اتلسمه پېړۍ کې خلکو په اعدام محکوم شوي ته رسېدل،
هغهٔ ته د احترام د ښرګندولو لپاره ملا لیندۍ کول او د مرګ د منلو په
خاطر د هغهٔ د زړهٔ ورتیا ستایل، پیل کړل. په همدې پېړۍ کې د خلکو
مخې ته په درو وهل او اعدامول پای ته ورسېدل. اوس اعدامونه د



بندیخانې د دیوالونو په منځ کې د محبس د مامورینو مخې ته د
خلکو له نظره چپ تر سره کېږي. ځینو ملکونو خو ان د اعدام سزا منعه
کړې ده. په ځینو نورو کې لا د اعدام جزا موجوده ده.

د منځنیو پېړیو خلکو ښکاره اعدامونو ته ولې د تفریح په سترګه
کتل؟ دا ځکه چې د هغې زمانې د هر وګړي په روح کې د خشونت
ښامار پروت و. دوی له دا رنګه هرې پېښې خوند اخیستلای شوی.
لکه رومیانو چې د ګلادیاتورانو د خونړۍ مقابلې ننداره په خوند
خوند کوله.

او شاید هم دا به د جنایت او جنایت کارو په مقابل کې د دوی د کرکې
د ښرګندولو او قانون ته د دوی د اطاعت د اظهار لاره وه.



# تر ۱۸۵۶ کال د مخه شاه جهان آباد

کله چې شاه جهان پاچا په ۱۶۳۹کې دیوۀ نوي ښار بنسټونه اېښودل، د مغولو امپراطورۍ په خپل اوج کې وه. سلطنتي خزانې تر خولې ډکې وې او په خارج یا داخل کې داسې څه لویه خطره نه وه چې حکومت دې ورته اندېښمن وي. د مغولو دربار چې تر ګردو لایق کسان راغونډ کړي وو، کلچر یې په مهارت او نزاکت کې تر نورو بر و. موږ دا ټولې ځانګړنې د شاه جهان د عصر په معمارۍ کې له ورایه وینو. د اکبر د زمانې د ودانیو جلال او عظمت خپل ځای د دې زمانې د ودانیو ښکلا، نزاکت او ظرافت ته ورکړ او دا د کلچر د بلوغ یوه نخښه وه.

شاه جهان پاچا د داسې ښار د جوړولو په فکر کې و چې د مغولو د امپراطورۍ د قوت او ښکلا، دواړو، نمایندګي وکړي او د دې ستر واکۍ له غوړېدلي کلتور او د دې کلتور له آدابو او دودونو سره سمون وخوري.

نوی ښار شاه جهان آباد ونومول شو. د سلطنتي کورنۍ د استوګنې لپاره په شاه جهان آباد کې لال قلعه (سره کلا ) جوړه شوه چې په رسمي اسنادو کې یې نوم ( قلعۀ مبارک ) و. په سره کلا کې د امپراطورمخې ته هم د عوامو او هم د خواصو د حاضرېدو لپاره ځایونه ودان شول. دلته د عوامو د شرفیابۍ لپاره څو هالونه وو. د سلاکارو لپاره بېل هال جوړ شوی وو. جهاروکا درشن (د عامو حضارو لپاره کړکۍ)،



نقارخانه(د موسیقۍ خونه)، برجونه، موتي مسجد (د ملغلرو جومات) ، او د حرم لپاره کوټې د کلا مهم ځایونه دي. سره کلا چې د شاهي ځواک و اقتدار سمبول وه، د د یوالونو په منځ کې ژوند یې له خلکو پټ و. خلک ډېر نه پوهېدل چې دلته څۀ کېږي. دوی چې د کلا له منځه نۀ خبرېدل نو د سلطنتي کورنۍ په باره کې یې اوازو ته مخه کړه. ځینو اروپایي سیلانیانو ته دا اوازې رشتیانۍ تاریخي پېښې ښکاره شوې او په خپلو سفرنامو کې یې په دې نیت راواخیستې چې لوستونکو ته په زړۀ پورې رسوا کوونکي مطالب برابر کړي.

د جامع جومات عظیم الشانه ودانۍ چې له کلا د باندې ولاړه وه، دین ته د وفادارۍ او د زهد و دینداریۍ څرګنده نخښه وه. راوروسته بیا مختلفو مغولو امراوو او شهزاده ګانو د خپلې تقوا د یادګار به توګه جوماتونه ودان کړل لکه فتحپوري جومات، اکبرآبادي جومات، اورنګ آبادي جومات او سنهري مسجد. سربېره پر دې په بېلو بېلو بازارونو او ځایونو کې د خلکو د جماعت د لمانځۀ د اسانتیا لپاره جوماتونه جوړ شول.

په منځنیو پېړیو کې بازار یوازې د سودا اخیستلو ځای نه و، بلکې د تفریح ځای هم و. په شاهجهان آباد کې فیض بازار، اردو بازار، خانم بازاراو خاص بازار مشهور بازارونه وو. په دې ښار کې د ځینو خاصو مالونو لکه د جواهرو، بوټانو او یا مثلا د بنګړیو لپاره هم خاصې راستې وې . په ټولو کې ښکلی بازار، چاندني چوک و. هغوی چې چاندني چوک یې د برم او پرتم په زمانه کې لیدلی، ډېر یې ستایلی دی.

د چاندني چوک په زړۀ کې یو جنتي نهر بهېدۀ. د دغه بازار دواړو غاړو ته ونې قطار ولاړې وې چې چاپېریال یې سوړ او پر سکون ساتۀ.

سرسيد په خپل کتاب آثار السناديد کې ليکي چې د چاندني چوک د ښکلا له بيانه ژبه عاجزه ده. مازديګرو ماښام به اشراف او شهزاده ګان دغه بازار ته راتلل چې وګرځي او تفريح وکړي.

د وخت په تېرېدو سره شاه جهان آباد بشپړ او نفوس يې زيات شو. د دې ښار واټونه، کوڅې او محلې د خپلې خاصې جاذبې په وجه مشهور شول. هنرمنو، سازنده وو، شاعرانو، خطاطانو، نڅاګرو، نکلچيانو، صنعتګرو، دوی ټولو، شاه جهان آباد ته نوی ژوند او نوی کلچر ورکړ.

ډېره موده نه وه تېره چې شاه جهان آباد د کلچر او ادب مرکز شو. په رسمياتو کې شاه جهان آباد پاتې شو خو عامو خلکو ډيلی بالهٔ.

کله چې د مغولو امپراطورۍ زوال ومونده، نو خارجي يرغلګرو لکه نادرشاه افشار په ډيلي باندې حملې وکړې چې د مغولو راټول کړي ثروتونه وتروړي. دوی په دې حملو کې وينې وبهولې او پيسې يې يووړې.

خو دغو حملو د ډيلي اوسيدونکي نه يوازې له پښو ونه غورځول بلکې په پياوړې روحيه او قوي جذبه يې د ښار د ماضي مخ په زوال جلال بيا راژوندی کړ. دې ښار د مرهټه وو استيلا هم وليده. مرهټه وو په ښار باندې له غلبې او حکومت کولو سره سره، د سرې کلا د څښتن درناوی کاوهٔ.

کله چې په ۱۸۰۳کال کې لرډ لېک ډيلی ونيو، نو امپراطور د شرقي هند کمپنۍ په ګوډاګي بدل شو. امپراطور سياسي واک او اقتدار له لاسه ورکړ او په مالي لحاظ کمپنۍ ته محتاج شو. دغه نوي حالت د سرې کلا په اړه د خلکو په نظر کې تغيير راووست. نور نو سره کلا د



سياسي واک سمبول او علامه نه بلکې د کلتوري فعاليتونو مرکز او منځی شوه.

د ښار د اوسېدونکو لپاره کلا د ماضي ميراث، پخوانۍ مېنه او زړه خزانه وه. سترواکۍ د سياسي تحولاتو په وجه زوال کړی و خو کلچر يې له ټولو رنګونو او جلوو سره ژوندی پاتې و. دغه کلچر د خپلې غنا او ځلا په برکت د سياسي بايلات خلا ډکوله.

بهادر شاه ظفر هم د مالي امکاناتو له لږوالي سره سره، چې د شرقي هند کمپنۍ ورکول، د دربار آداب او تشريفات وساتل. درباريان مکلف وو د ټولو هغو دودونو اوآدابو خيال وساتي چې د اکبر پاچا په زمانه کې پيل شوي وو. امپراطور ته هم پکار وه چې خپل وظايف په منظم ډول اجرا کړي. دهٔ بايد د خپلې فوق العاده لوېې کورنۍ د غړيو خرڅ ورکړی وای چې شمېر يې له يوهٔ اټکل سره سم، درې زره کسانو ته رسېدهٔ. البته د امپراطورۍ د زوال په ورځو کې به د شاهي کورنيو غړي مجبورېدل چې په بېوزلۍ کې واوسي ځکه د دوی خرڅ به شاهي خزانې په منظم ډول نه شو ورکولای. له بلې خوا د سلطنت د کورنۍ کسانو اجازه نه لرله چې له کلا د باندې ژوند وکړي. نو دوی به خپل وخت په بې فايدې تفريحي چارو او شوقي کارونو تېراوهٔ.

د سياسي واک له لاسه ورکولو وروسته، د امپراطور ډېر وخت په مختلفو فيستوالونو لکه نوروز، ديوالي، هولي، محرم، اخترونو، دسهرا او د ګلونو په خورا محبوب جشن تېرېدهٔ. د (داستان غدر) د ليکوال ظهير دهلوي په قول، دهٔ داسې جشنونه بيا په ټول ژوند کې ونه ليدل.

د سرې کلا ژبه د اهل ادب لپاره د معیارژبه شوه. په کلا کې به همیشه
مشاعرې کېدلې. په دغو مشاعرو کې به غالب، مومن او ذوق هم
ناست وو.
له کلا د باندې هم کلتوري فعالیتونه روان وو. لوړې او غورې طبقې
په دغو فعالیتونو کې د ګډون لپاره په کافي اندازه امکانات لرل. د
ښار کلتوري ژوند متحرک و. ښار حتی د سیاسي زوال په ورځو کې
لوی شاعران، قصه ویونکي، خطاطان، طبیبان، نڅاګر او سازیان
وزېږول. ډیلی د براعظمګي د نورو ښاورنو لپاره یو ماډل او اعلی
مثال و.
په هاغو وختونو کې دا د فخر خبره وه چې څوک ځان د ډیلي وبولي.
ژوند په کراره روان و. وروسته بیا یوه حادثه پېښه شوه. داسې حادثه
چې د ښار هیڅ اوسېدونکي یې توقع نه لرله خو ورسره د هندوستان د
تاریخ لوری بدل شو.
(په وروستیو کرښو کې لیکوال له سرې کلا څخه د مغولو د وروستي
پاچا بهادر شاه ظفر ایستلو او د بریتانیا امپراطورۍ د یوې برخې په
توګه د هند اعلانېدلو ته اشاره کوي. ژباړن)



# په پرونۍ اروپا کې پاکي

کله چې د روم امپراطور کنستانتین مسیحیت ومانهٔ نو د کلیسا
موسسه د امپراطورۍ یوه برخه وګرځېده او عیسوي روحانیونو د
تېرې زمانې له اثراتو څخه د ټولنې د را ایستلو په نیت، په پوره شوق
او ولوله، د ټولو هغو دودونو، رواجونو او آدابو د ختمولو کوښښ
وکړ چې دوی ته د کفر د زمانې یادګارونه ښکارېدل.
په دې سلسله کې د عمومي حمامونو دود ته هم صدمه ورسېده، ځکه
دا شی د کافرو رومیانو یادګار ګڼل کېدهٔ، د هغو خلکوچې د
عیسویت مخالف وو او روحانیونو د هغوی د کلتور د نهٔ ادامې لپاره
تبلیغات کول.
عیسوي روحانیونو د انسان بدن د ګناهونو کور او فنا کېدونکی شی
بالهٔ. دوی د بدن په پاکېدو بې باوره خو د روح په تطهیر او تذکیې
باورمن وو. دوی به تبلیغ کاوهٔ چې بنیادم باید د بلې دنیا سفر ته ځان
چمتو او د سفر توښه یې برابره کړي.
ورو ورو داسې فکر عام شو چې که څوک ځان خیرن ساتي نو ګویا د
تقوا څښتن دی او په دې توګه د وخت په تېرېدو سره ، د ځان وینځلو
او حمام کولو ته د ایمان خاوندانو په ښه سترګه ونهٔ کتل. د کلیسا
مقاماتو به په هغو کسانو بد ویل چې په حمام کې یې ډېر وخت تېراوهٔ
خو په کلیسا کې لږ.

د کليسا د غندنو او مخالفتونو نتيجه دا راووته چې پاکي د ګناه او د شهواني شوق يوه نخښه وګرځېده. ناپاک او خيرن حالت وقدرول شو، ارزښت وبلل شو او نۀ يوازې د معنويت منبع بلکې د جراثيمو په مقابل کې د ډال او سپر په سترګه ورته وکتل شو.

د اروپا په ډېرو سړو وطنونو کې عادي خلکو ته دا سخته او په اقتصادي لحاظ مشکله وه چې د ځان د وينځلو لپاره اوبه تودې کړي. نو کله چې به د يوې کورنۍ غړيو د ځانونو د وينځلو پروګرام جوړ کړ، په ټب کې به يې تودې اوبۀ واچولې او اول کس به د کورنۍ مشر و چې ټب ته به ورغی. بيا به د کورنۍ د نورو غړيو نوبت و. وروستی کس به د کورنۍ ماشوم و چې په هماغه اوبو کې وينځل کېدۀ. تر دې وخته به دغه اوبۀ بې حده ناولې شوې وې. د ټولنې تر ګردو ښېوزلې طبقه د بزګرانو وه. د دوی لپاره حمام کول د هوس او تجمل کار و او په ژوند کې يې ډېر لږ دا وس او امکان پيدا کاوۀ چې حمام وکړي.

ځينو مورخانو ليکلي دي چې بزګرانو په کال کې دوه ځله ځان وينځۀ. ځينو نورو ليکلي دي چې د بزګرو مخ د باران له څاڅکو پرته نور په عمر کې اوبۀ نۀ ليدلې. يو شمېر نورو ويلي دي چې د بزګر بدن په عمر کې درې ځله اوبۀ ليدلې. يو د زوکړې په وخت، بل د وادۀ په ورځ او دريم چې وبه مړ. د دغو دريو وينځنو مقصد هم تر ډېره حده د رواجونو او شعايرو تر سره کول وو، نه د ځان پاکول.

د پاکۍ او نظافت په اړه نظر په هره طبقه کې بېل و. د اشرافو دا عادت و چې تر ډوډۍ وروسته او وړاندې لاسونه ووينځي. خو جالبه دا ده چې انګرېزانو دا کار نۀ کاوۀ. دوی به د لاس له وينځلو پرته په ډوډۍ کېناستل. څرنګه چې د هغه وخت په اروپا کې د ځان وينځل عام



عادت نۀ و نو شتمنو به زېرجامې اغوستې او عطرونه به يې استعمالول چې د بدن د بد بويي مخه ونيسي.

کله چې صليبيان د بيت المقدس د نيولو لپاره فلسطين ته لاړل او عرب يې وليدل چې پاکۍ او ځان وينځلو ته يې خاصه توجه کوله، نو په اروپايانو کې هم د نظافت په اړه نوي فکرونه پيدا شول. په ختيځ کې صليبي فاتحانو د ګرمو، ارام بخښونکو، معطرو حمامونو مزه وليده او د غه کلچر يې اروپا ته ورسره يووړ.

تاودۀ، معطر حمامونه وار په وار د اروپا د شواليه وو په طبعه ولګېدل او استحمام ورته د مود او فيشن حيثيت پيدا کړ. شواليه وو د لومړي ځل لپاره لرګين ټبونه جوړ کړل. دغه ټبونه به له تودو اوبو ډک وو. داسې هم کېدل چې شواليه به په ټب کې و چې مېلمه به يې راغی. دۀ به مېلمه ومانۀ خو له ټبه ورته نۀ پاڅېدۀ، د پردې له شا به يې خبرې ورسره کولې.

د وخت په تېرېدو سره استحمام د شواليه توب په آدابو او دودونو کې مهم ځای پيدا کړ. کله چې به يوۀ ځوان ته د شواليه رتبه ورکول کېده، دی له څو پړاوونو تېرېدۀ او د تېر ژوند له شرارتونو د پاکېدو لپاره به يې تشريفاتي غسل کاوۀ.

خو له دې سره سره، د ځان وينځلو په خلاف د کليسا مخالفت ادامه وموندە، ځکه د عيسوي روحانيونو په نظر، ځان وينځل د مسلمانانو او غير مسيحي خلکو رواج و. کله چې مسلمانه اسپانيا عيسايي ځواکونو ونيوله نو فاتحانو له مسلمانانو او يهودو وغوښتل چې يا عيسايت ومني او يا اسپانيا پرېږدي. دغه وخت ځينې مسلمانان د ځان د ژغورلو په نيت په ظاهره مسيحيان شول. د کليسا مقاماتو د داسې کسانو د حقيقت د معلومولو لپاره د هغوی څار پيل کړ او هره

جمعه به یې کتل چې ایا ځان خو یې نه دی وینځلی. که به ولیدل شول
چې ځان وینځي یا یې ځان وینځلی دی، جزا ورکول کېده.
البته د وخت تېرېدو او د وبا او طاعون بیا بیا خپرېدو د نظافت او
استحمام په اړه نظر بدل کړ.
له بلې خوا د طب علم ثابته کړه چې اوبهٔ مضرې نهٔ دي بلکې د ډېرو
ناروغیو شفا ورسره کېږي. د نظافت او روغتیا په اړه نوي شعور
خلک وپوهول چې نظافت د وباوو او ساري ناروغیو په مخنیوي کې
مرسته کوي. نو خلکو د بدن د پاک ساتلو لپاره له صابون او نورو
شیانو استفاده پیل کړه او ځینې چینې د خپلو اوبو د روغتیایي
خاصیت په خاطر مشهورې شوې.



# د نابرابرۍ اغېز

تمدنونه له هماغه پیله د تغییر او بدلانهٔ په حال کې وو. په هغو ډېرو
تغییراتو کې چې دوی یې اوسني حال ته راوستي دي، یوه هم دا خبره
ده چې متمدنو ټولنو څنګه ځانونه په لوړو او ټیټو طبقو باندې
ووېشل.
اجتماعي مقام د ثروت، قدرت، او وینې په اساس ټاکل کېدهٔ. خلکو
کله کله خپل قدرت او ثروت د خپلو کورنیو لپاره د روښانه تاریخ د
جوړولو لپاره پکاراوهٔ او له اشرافو او درنو ټبرونو سره به یې د تعلق
لرلو خبرې په دروغو جوړولې.
د اجتماع له اغېزمنې طبقې سره تعلق نه یوازې د ویاړ او عزت سبب
و، بلکې د دې طبقې غړیو ته یې حق ورکاوهٔ چې د ټولنې په بې وسه او
بې مقامه عادي خلکو باندې باداري وکړي او حکم ورباندې وچلوي.
دلته همېشه داسې لاره وه چې یو څوک له ټیټې څخه لوړې طبقې ته
لاړ شي. که څه هم دې شي به وخت اخیست چې لوړه طبقه یو څوک په
خپله غېږ کې ومني خو بیا هم ځینې کسان له ټیټې طبقې لوړې طبقې
ته ختل او ځینو بیا قدرت له لاسه ورکاوهٔ.
هغه کورنۍ چې له غوریزو سره یوځای کېدلې هڅه یې کوله چې د
نوي طبقاتي موقف د ساتلو لپاره شجرې جوړې او په دې ډول خپل
اصیل والی ثابت کړي. که به اصیلې کورنۍ بې وسه او بې شتو هم

شوې، دغه شجرې د دوی د اجتماعي حیثیت د ساتلو لپاره وروستۍ وسله وه.

كله چې د نادرشاه افشار زوی له یوې مغولې شهزادګۍ سره وادهٔ وكړ، د وادهٔ په مراسمو كې قاضي د مغولو له دود سره سم، له زومه د شجرې پوښتنه وكړه. نادرشاه افشار خپله توره راوایستله او ویې ویل: نادرشاه، د تورې زوی، د تورې لمسی او د تورې كړوسی.

د دې خبرې له كولو وروسته نادرشاه افشار خپلو مېلمنو ته وكتل، ورته ویې ویل چې د كورنۍ په باب مې نور معلومات هم غواړئ؟ خو چا د بلې پوښتنې جرءات ونكړ.

لوړو طبقو له عادي خلكو ځان په كلتوري بنیادونو بېل ساتهٔ. د دوی د ژبې، جامو، د معاشرت د آدابو، د ژوند د طریقې او د دودونو سویه تر معمولي خلكو دومره لوړه وه چې هغوی یې پیروي نه شوای كولی. دغو كلتوري توپیرونو د ټیټې طبقې خلك نالوستي، ناخبره، لټ او بې اهمیته ساتل. یوه مشهوره خبره ده چې پاچا باید خلك په نس ماړهٔ كړي خو د ذهني ودې اجازه دې هیڅ وخت نهٔ وركوي. دی باید د هغوی بدن پیاوړی خو د هغوی شخصیت كمزوری وساتي.

د هندو مذهب د عالمانو په نظر د عادي خلكو تر منځ ډول ډول شخړې چې په ټولنه كې یې ګډوډي او انارشي راوسته، د سلطنت د پیدا كېدو اصلي وجه ده. خدایانو فیصله وكړه چې د زور په وسیله د سولې د ساتلو او د پرګنو د كنټرولولو لپاره پاچایان راواستوي. څرنګه چې هر كاست په ټولنه كې له خپل موقفه خبر و او په دی موقف یې ایمان درلود، نو د كاست د بدلولو ضرورت نه احساسېدهٔ. ځكه خو د هند په تاریخ كې د ټیټې طبقې هیڅ غړي د لوړې طبقې په خلاف قیام نه دی كړی. د هرچا طبقه د تولد له ورځې معلومه وه او دغه شي



چې طبقاتي نظام مظبوط ساتهٔ، له یوې طبقې یې بلې ته تګ ناممكن ګرځاوهٔ.

د ارتشاسترا مولف واكمنو ته نصیحت كوي چې عالي رتبه مقامات باید همېشه له اشرافي كورنیو او لوړو طبقو انتخاب كړي. كه ساري ناروغي، یا وچكالي یا كاختي عادي خلك مړهٔ كړي، د دوی په مړینه ویر نه دی پكار ځكه دوی د مځكې په اوږو د یو بار حیثیت لري، خو اشراف او با كلتوره كسان دې نهٔ مري ځكه د دوی مړینه ملك و نظام ته لوی تاوان دی. د ارتشاسترا د مولف په نظر اشراف باارزښه دي ځكه پوهه یې حاصله كړې او دا نور خلك بې ارزښه دي ځكه نالوستي دي او كلتوري و اجتماعي شعور نه لري.

په میسوپوتامیا (بین النهرین) كې ټولنه په دریو طبقو وېشل شوې وه: روحاني، پاچا او عام ولس. له روحاني سره خدایي قدرت مل و. دغه شي د دهٔ اهمیت تر پاچا زیات كړی و. دعا كول د روحاني امتیاز و. دهٔ له خدایانو څخه د خلكو د خیر غوښتنه كوله خو د ځان لپاره یې د بل چا دعا ته ضرورت نهٔ درلود. عادي خلكو ته دا اجازه نهٔ وه چې دعا وكړي یا د روحاني له لارې پرته نیغ په نیغه خدایانو ته ورنژدې شي.

مسلمانه ټولنه هم په بېلو، بېلو طبقو وېشل شوې وه. د عباسي دوران د یوهٔ برمكي وزیر په قول، تر ګردو لوړ مقام خلیفه و چې د قدرت، شان وشوكت، ذكاوت او پوهې سمبول ګڼل كېدهٔ. ورپسې د وزیر مقام و چې د حكومت او پوهې نماینده ګي یې كوله. په دریمه طبقه كې شتمن اشراف وو. د منځنۍ طبقې تعلیم یافته كسان په ورپسې پوړۍ كې ولاړ وو او تر دوی را لاندې د ټولنې عادي وګړي وو، چې تر ګردو ټیټه طبقه یې تشكیلوله. په نهٔ سووه دریم میلادي كال كې ابن

الفقه اسلامي ټولنه په څلورو طبقو وېشله: پاچا، د هغهٔ وزيران او
اشراف چې قدرت او ثروت ورسره و، لومړۍ درې پوړۍ وې او دا نور
خلک چې وروستۍ طبقه يې جوړوله، بې اهميته وو ځکه بې فايدې
ګڼل کېدل.
په راوروسته زمانو کې سيدانو ته چې د پيغبر اولاد وو، درناوی پيل
شو. د عثماني سلطنت په زمانه کې د هر ښار او ولايت د سيدانو
نومونه ثبتيدل او دوی ته په نورو خلکو ترجيح ورکول کېدله. دغه راز
په هندوستان کې واکمنو، سيدانو ته قيمتي سوغاتونه، مځکې او
جايدادونه بخښل او دوی يې په لوړو چوکيو مقررول.



# بغاوت په تاريخ کې

د تاريخ مطالعه راښيي چې شورش او بغاوت په منځنيو پېړيو کې،
په شرق او غرب دواړو کې، د استثمار او بې عدالتۍ پر خلاف د
مبارزې او غږ اوچتولو لپاره د ناراضو کسانو خورا اغېزمنه ذريعه
وه. خو د شورش ماهيت او سببونو وخت په وخت او له ځايه تر ځايه
توپير لرلی دی. مثلا د سلطنتي کورنۍ غړيو د قدرت د نيولو لپاره د
حکومت نسکورولو ته متې رانغښتې دي او يا اشرافو او نجباوو د لا
ډېرو طبقاتي امتيازونو د ترلاسه کولو په نيت شورش کړی دی. په دې
منځ کې تر ګردو ګواښونکي بغاوتونه د بزګرو وو چې سياسي اقتدار
ته يې ګواښ پېښاوهٔ او د دولت په جوړښت کې يې د خپلې طبقې په
ګټه د ريفورم غوښتنه کوله. ځکه خو واکمنو په دغسې بغاوتونو کې
لوی خطر ليد او سمدستي يې د هغو د ځپلو اقدام کاوهٔ.
مورخانو د شلمې پېړۍ په سر کې د بزګري شورشونو له مطالعې سره
ډېره دلچسپي پيدا کړه او د رسمي اسنادو، د ادارو د مدارکو، د
قضايي جريانونو او ولسي ادب په مرسته يې د دوی غورځنګونه د
تاريخ له پټو ګوټونو څخه رڼا ته راو ايستل. دغو مورخانو د بزګرانو
په اړه، چې د بېسوادو او په سياسي مسايلو کې بې تجربې کسانو په
حيث معرفي شوي وو، ډېرې اسطورې ناسمې ثابتې کړې. اسنادو
وښودله چې بزګرانو د ليکو د منظم کولو، د خپل منځي اختلافونو د

غوځولو، خبرواترو ته د کېنا ستلو، او مبارزې ته د خپلو ملګرو د
هڅولو وړتيا لرلرلې ده.

په رسمي تاريخونو کې کله کله د بزګرو د شورشونو هيڅ ذکر نه وي،
لکه دوی چې پرته له مقاومته په اسانۍ سره ځپل شوي وي، خو ژور
مطالعات ښيي چې د دوی د شورشونو په نتيجه کې واکمن طبقات او
سياسي قدرتونه مجبور شوي چې خپلې ستراتيژۍ بدلې کړي او په
ځينو مواردو کې خو بغاوت د ټول نظام او د هغه د موسسو د بيا
جوړېد و سبب ګرځېدلی دی. دا ځېړنې مو په دې هم پوهوي چې دا يو
ناسم تاثر دی چې عادي خلکو د تاريخ په جوړولو کې برخه نه ده
اخيستې. برعکس، د دوی برخه لويه ده. دوی هسې پسيف نندارچيان
نه وو، بلکې د تاريخ د بهير فعال برخه وال وو.

مورخ وېن ټې، بريک په خپل کتاب کې چې ( د تاريخ جوړېدا: له
۱۵۰۰ تر ۱۷۰۰ کال پورې د اروپا په سياست کې عادي خلک )
نومېږي، د بزګرانو بغاوتونه او په دولت او ټولنه کې د دغو بغاوتونو
غبرګونونه، څېړلي دي. دځ په خپل کتاب کې هغه بغاوتونه ځيرلي چې
په شپاړلسمه او اوولسمه پېړۍ کې د اروپا په بېلو بېلو هېوادونو
کې د پاچايانو او لويو فيوډالانو پرخلاف شوي دي. دغه بغاوتونه ښهٔ
تنظيم شوي وو او برخه والو ته يې پياوړې انګېزه ورکړ شوې وه.

پاځون کوونکو بزګرانو به د ځان لپاره داسې ليډران ټاکل چې
لښکرې جوړې کړي، لام وترې او له سلطنتي پوځ سره مقابله وکاندي.
دغو مشرانو به بزګرانو ته چې اکثرو يې حربي تجربه نلرله، د جګړې د
مهارتونو روزنه ورکوله او د بې عدالتۍ پرخلاف مبارزې ته يې
هڅول. دغه راز مشرانو به د شورشيانو د مختلفو ګروپونو د متحد
ساتلو هڅه کوله. د بغاوتونو په دوران کې د بزګرو اعلاميې او



مانيفستونه د هغوی د سياسي بصيرت او له خپل مقصد سره د هغوی
د ژمنتيا او تعهد ښووندوی دي. په دغو مانيفستونو کې چې د
واکمنو د اقتدار د کميدا او د دولت د ادارې د ريفورم غوښتنه شوې،
د داسې ايندې انځور وينو چې هر څوک پکې خپل حق او سهم لري. په
دغو اعلاميو کې تر ګردو جذابه مفکوره په ټولنه کې د برابرۍ
مفکوره وه او دا يوه داسې رويا وه چې ټولو محرمو طبقو يې ارزو
کوله.

د دغو شورشونو يو خصوصيت دا و چې له مذهبه دواړو غاړو په خپله
ګټه کار اخيست. د واک خاوندانو بزګران هڅول چې پاچا ته وفاداره
واوسي او د پاچا د اقتدار له انکاره لاس واخلي. دوی به د مقدس
کتاب خبره کوله چې عيسی له خلکو مينه، صبر او تسليم غواړي. له
بلې خوا دهقانانو هم مذهب په خپله ګټه کاراوهٔ. په ۱۵۲۶ کې د
جرمني په سوابيا کې بزګرو د بغاوت په وخت د خپلو غوښتنو په
څنګ کې دا هم وويل چې: د مالکانو دا عادت دی چې دوی ته د خپل
مال په سترګه وګوري او دا بده خبره ده. ځکه عيسی په خپلو قيمتي
وينو زموږ د ګناهونو کفاره ورکړه او موږ يې ټول، که هغه خورا
بېوزله شپون دی يا لوی ملاک، پرته له استثنا ازاد کړو. نو مقدس
کتاب دا ثابتوي چې موږ ازاد يو او موږ غواړو چې ازاد واوسو.

کله چې لوتر د پاپ او کليسا پر خلاف بغاوت وکړ، دې شي کليسا په
دوو څانګو ووېشله: پروتستانت او کاتوليک. د دې وېش او بغاوت
په نتيجه کې دواړو فرقو د خپلو سازمانونو اصلاح ته توجه وکړه څو
په دې توګه د ورپېښو ستونزو او خطرونو مقابله وکړای شي.
کاتوليکې کليسا چې اقتدار يې کم شوی او پيروان يې له ګوتو وتي
وو، له ريفورماسيون سره په مخالفت کې ځان دوباره سمبال او ترميم

کړ. د کليسا پر خلاف دغه بغاوت بزګرانو ته په ګرده اروپا کې الهام ورکړ چې د خپلو حقونو لپاره پاڅون وکوي. دوی ته دا فکر پيدا شو چې که کليسا د پاڅون په نتيجه کې اصلاح کيدای شي نو دولت ولې اصلاح نه شي؟ دغه استدلال په ټوله اروپا کې د بزګرانو شورشونو ته لارپرانيستله. په جرمني کې لوتر چې مذهبي بغاوت يې د محلي واکمنو په مټ کامياب شوی و، د واکمنو په ګټه د بزګرو پاڅون وغاندهٔ. دهٔ له واکمنو وغوښتل چې دغه پاڅونونه په شدت سره وځپي. لوتر اعلام وکړ چې د دولت اقتدار ډېر مهم دی. که دولت د شورشونو په وجه کمزوری او له خطر سره مخامخ شي نو ټولنه به وشړېږي.

شورشونو په تاريخ کې ډېر مهم رول لوبولی دی. شورشونو د ټولنې ولاړ حالت ختم کړی او ځينې اقشار يې منظم کړي چې د تاريختېرو استبدادي دودونو او اجتماعي سياسي موسسو د بدلولو لپاره متې راونغاړي.

که څه هم اکثره دغه بغاوتونه وځپل شول خو په ټولنه کې بې تاثيره نه وو. واکمنو ان د شورشونو له ناکامولو وروسته هم ځانونه مجبور وليدل چې ريفورم راولي. که د ټولنې واکداران ځان ونه خوځوي او د تغيير له راوستلو انکار وکړي، نو ټولنه خو يا له بيا بيا بغاوتونو او اختلافونو سره مخامخ کېږي او يا راکده او له پرمختګه محرومه پاتېږي.



# د منځنيو پېړيو په هندوستان کې بغاوتونه

د هندوستان د منځنيو پېړيو په تاريخ کې چې د ډيلي د سلطنت دور او د مغولو دور پکې شامل دی، د واکمنو کورنيو پر خلاف څو ډوله بغاوتونه وينو. دلته هم د بزګرو پاڅونونه وو او هم د ځينو افرادو او ګروپونو د سياسي جاه طلبيو بغاوتونه. دغه زمانه له شورشونو مالاماله ده. د دا دومره ډېرو شورشونو تر ګردو لوی سبب دا و چې دولت هيڅ ډول اپوزيسيون نهٔ زغامهٔ او هيچا ته يې اجازه نه ورکوله چې د واکمنو له غوښتنو سرغړاوی وکړي.

د شورشونو يو بل عامل چې البته د سلطنت د وخت له هند سره تعلق لري، دا و چې د سلطنت د دور په هندوستان کې (له ۱۲۰۶ تر ۱۵۲۶ پورې) کابو ټولو واکمنو لړيو له پوځي قدرته پرته بل مشروعيت نه درلود. د قدرت د استعمال پرنسيپ، ټولو په سياسي لحاظ جاه طلبو کسانو ته الهام ورکاوهٔ چې د واکمن پاچا په پل، پل کېږدي او د هغه لرې کېدل او د قدرت غصب کېدل وغواړي. د داسې هڅو کاميابو مثالونو به دوی هڅول چې ريسک ومني او د حکومت نسکورولو ته متې راونغاړي. موږ د سلطنت د زمانې په تاريخ کې دا رنګه ګڼ مثالونه موندلی شو.

جلال الدين خلجي (۱۲۹۶-۱۲۹۰) د بلبن له کورنۍ څخه واک وتروړۀ. له بلې خوا د جلال الدين ورارۀ علاوالدين (۱۳۱۶-۱۲۹۶) د ترۀ پر خلاف بغاوت وکاوۀ او د هغۀ له تروره وروسته يې سلطنت تر لاسه کړ. دی هم له يوشمېر بغاوتونو سره مخامخ شو او دغو بغاوتونو مجبور کړ چې ځينې سياسي او اجتماعي تغييرات راولي. مثلا په شرابو يې بنديز ولګاوۀ، د پاچا له اجازې پرته يې د اشرافي کورنيو تر منځ ودونه منع کړل، د اشرافو د ژوند ځارنه يې لازمه وبلله او د يو شمېر کسانو جايدادونه يې ضبط کړل.

د مغولو په دور کې (۱۸۵۷-۱۵۲۶) د بغاوتونو ماهيت بدل شو. دا ځکه چې د مغولو لړۍ خپل اقتدار ته د خپل سياسي واک د ټينګولو له لارې قانونيت ورکړ. د دې دور شورشونه دوه ډوله وو: يو ډول يې محلي او ځايي بغاوتونه وو چې مځکه والو يا مغولو اشرافو به په اداره کې د تغييراتو د راوستلو لپاره کول او بل ډول يې د سلطنتي کورنۍ په منځ کې د سياسي قدرت د تر لاسه کولو لپاره بغاوتونه وو. لکه جهانګير، خسرو، شاه جهان او د شاه جهان زامنو چې د سلطنت مقام ته د رسېدو لپاره شورشونه وکړل.

د هند د منځني پېر د بغاوتونو يو جالب اړخ دا و چې د لښکر د پيدا کولو او د وګړيو د جذبولو کار يې مشکل نه و. چې څنګه به باغي ليډر د بغاوت اعلان وکړ، خلکو په تېره بيا بزګرو به د هغه په خوا کې جنګېدلو ته تياری وښود. ليډرانو د جنګ لپاره مقصد درلود خو جګړه مارو بزګرو مقصد نه درلود. کليوال د کار د نشتوالي او بې روزګارۍ په خاطر او د لوټ په هيله له بغاوت کوونکو سره ملګري کېدل. دغو جګړه مارو ته د منظم معاش ورکولو سيستم نه و. باغي ليډرانو به کله کله د لښکرلېږد او لام ترلو په وخت لښکريانو ته



معاش ورکاوۀ خو چې معاش به نه و نو ليډر ته تعهد او ژمنتيا به هم نه وه. همدا علت دی چې دغه عسکر د ټينګښ نه وو، چې څنګه به يې د جنګ په ميدان کې د ماتې نخښې ولېدې، سمدستي به تېښتې ته تيار شول. د باغيانو لښکرو به نه د سلطنتي عسکرو هومره ښې وسلې لرلې او نه به يې د هغو په اندازه حربي مهارتونه لرل، ځکه خو يې اکثره وخت ماتې په نصيب کېدله.

دغو بغاوتونو چې سلطنتي کورنۍ ګواښله، د نظام په استحکام باندې ګوزارونه کول. مثلا محمد تغلق (۱۳۲۵- ۱۳۵۱) له دومره ګڼو شورشونو سره مخامخ شو چې ستومان يې کړاو په ځپلو کې يې پاتې راغی. ځکه خو مورخ ضيا الدين برني د دۀ په مړينه وليکل چې: (دی له خلکو خلاص شو او خلک له دۀ خلاص شول.)

که به واکمن نظام د بغاوتونو په ځپلو کې کامياب شو او وبه يې ځپل نو دا به ثابته شوه چې نظام د دا رنګه زلزلو تاب لري.

جلال الدين اکبر چې ځان خوندي احساساوۀ، ډېر ځله يې باغيانو ته د جزا ورکولو په ځای هغوی معاف کړي دي. دغه مثال راښيي چې د مغولو امپراطوري دومره مظبوطه وه چې شورشونو يې موجوديت ته خطر نه پېښاوۀ. ان په وروستيو وختونو کې د فرخ سير په زمانه کې (۱۷۱۹-۱۷۱۳) مغول په داسې موقف کې وو چې د سيک باغي، بانډه بهادر بغاوت وځپي. خو، نادرشاه افشار او احمد شاه ابدالي، مغول دومره بې سېکه او قدرت يې دومره ورکم کړ چې د مرهټه وو او د شرقي هند کمپنۍ په لاسونو کې په مازې ګوډاګيانو بدل شول.

څرنګه چې واکمنو ټول قدرت په خپل لاس کې راغونډ کړی و، نو دوی ته باغيان خپل شخصي دښمنان ښکارېدل. له ماتې وروسته به باغيان چټ وپټ اعدام او يا به د دربار د بانفوذو کسانو د شفاعت او

عذرونو په برکت وبخښل شول خو پالیسي دا وه چې باغیانو ته باید
مثالي جزا ورکړه شي چې بیا بل داسې ونکړي. مثلا کله چې په ۱۲۷۹
میلادي کال کې په بنګال کې طغرل د بلبن پر خلاف بغاوت وکاوۀ نو
بلبن له زړبودن سره سره پخپله پسې ورغی او ویې ځاپۀ. دۀ د باغیانو
د سپکاوي په منظور د لکناوتي بازار په دواړو غاړو کې د دارونو د
درولو امر وکړ او د طغرل ملګري یې ورباندې له یو مخه وځړول. دۀ د
دوی ټولو له اعدامولو وروسته خپل زوی بغرا خان ته چې د بنګال
والي یې مقرر کړ، وویل چې که هر شیطان صفت او دسیسه بازه سړي
لمسولې او ډیلي ته یې ستا وفاداري کموله نو په بازار کې په خپلو
سترګو لیدلی انتقام درياد کړه.
په ۱۶۰۶ میلادي کال د جهانګیر په خلاف د هغه د زوی شهزاده
خسرو په بغاوت کې شاملو کسانو ته په بې رحمۍ سره جزا ورکړه
شوه. د شهزاده دوه ملاتړي حسین بېګ د غویي او عبدالرحیم د خرۀ
په تازه پوستونو کې وګنډل شول. حسین بېګ د ساه د ډوبېدو په وجه
ومړ خو عبدالرحیم د ځینو مقتدرو اشرافو خواستونو او زاریو له
مرګه وژغورۀ. په دې سربېره کابو پنځه سوه عسکر ونیول شول او په
ښکاره اعدام شول. خسرو ته امر وشو چې د دارونو د لړۍ په منځ کې
تېر شي او د خپلو ملګرو د انجام ننداره وکړي.
دا د تاریخ یو درس دی چې واکمنان او حکومتونه باید د خلکو
شکایات واوري، ریفورم راولي او د دولت جوړښت د وخت له
غوښتنو سره سم بیا ورغوي. دا شی دولت با ثباته ساتي.کنه نو د واک
ښتنان مجبورېږي چې خپل امکانات د مخالفو قوتونو د ځپلو لپاره
ولګوي چې په نتیجه کې به ځانونه کمزوري کړي.



# انتخابات او استازیتوب

په دیموکراتو ټولنو کې انتخابات معمولا د دې لپاره کېږي چې رایه
ورکوونکي د حکومت د کار د ادامې یا د بل حکومت د لرلو په باب د
نظر د څرګندولو فرصت ومومي.
که د واکمنې ډلې یا ډلو کار و چلند د خپل حکومت په موده کې ښۀ
وي نو دوی د خپلې واکمنۍ د عمر د اوږدېدو لپاره د خلکو ملاتړ تر
لاسه کوي او که دوی په خپلو پروګرامونو کې ناکام وي نو خلک حق
لري چې واکمنه ډله له واکه لرې کړي. دغه بهیر د خلکو حاکمیت،
اقتدار او برلاسي زېږوي چې د دموکراسي بنیادي اصل دی.
د انتخاباتو سیستم د تمدن په تاریخ کې له ډېرو پړاوونو تېر شوی او
د انتخاباتو په سټرکچر او میتودونو کې د وخت شرایطو ته په پام
سره بدلون راغلی دی. مثلا په ابتدا کې د رایې اظهار یا په خولۀ کېدۀ
او یا د لاس د جګولو له لارې و. په دواړو ډولونو کې رایه ورکوونکو
ته مشکلات پېښېدای شوی. په تېره بیا د انګلستان د اتلسمې پېړۍ
د فیوډالي ټولنې په څېر ټولنه کې چې ملاکانو به بزګران ویرول او تر
اغېز لاندې راوستل چې دوی ته رایه ورکړي. له بلې خوا د رایه
ورکولو په سیستم کې درغلي ډېره وه. هغه وخت په انتخاباتو کې د
خپلې رایې د استعمالولو لپاره د نوم راجستر کول مفته نه وو.رایه
ورکوونکی مجبور و چې د نوم د ثبولو په خاطر یو شلینګ ورکړي.
کاندیدانو معمولا له دې فرصته د ځان په ګټه استفاده کوله او رایه

ورکوونکو ته يې د نوم د ثبتولو پيسې ورکولې. د درغلۍ بل ميتود
دا و چې کانديد شوي به له رايه ورکوونکي سره ژمنه وکړه چې د رايې
په بدل کې به دۀ ته کار پيدا کړي، يا به يې په حکومت کې مامور
کړي، يا به د کومې ټيکې امتياز ورته وګټي او که به نور څه نۀ وو نو د
انتخاباتو په ورځ خو به يې د يو ګيلاس بيرو وعده ورسره وکړه. دغه
راز په پيسو باندې د رايې اخيستلو رواج هم و. له اسنادو سره سم، په
۱۸۳۰ کال کې په ليورپول کې د يوې رايې بيه پنځلس پونډه وه چې
وروسته بيا يو سلو پنځوس پونډو ته وخته.

همدا علت و چې په انګلستان کې د انتخاباتو د سيستم د اصلاح
غوښتنه وشوه. د يوټيليټريانيزم د فلسفې ملاتړي جرمي بنتهام په
۱۸۱۷ کې يو پامفليټ خپور کړ او په هغه کې يې د پټې رايې، کال په
کال انتخاباتو او د رايه ورکولو لپاره د لږ تر لږه يو ويشت کلونو عمر
غوښتنه وکړه. په هاغه وخت کې دا غوښتنې خورا راديکالې او
افراطي ښکارېدې مګر دا رنګه وړانديزونو د پارلماني اصلاحاتو
لپاره مبارزه پياوړې او غښتلې کړه. له کالنيو انتخاباتو څخه مقصد
دا و چې د حکومت د بدلولو په چاره کې د رايه ورکوونکو دريځ
پياوړی شي او دوی د واکمن ګوند کار په اغيزمن ډول وڅاري.

د انتخاباتو په چاره کې کاغذي رايه په لومړي ځل په ۱۶۲۹ کې په
شمالي امريکا کې وکارېده خو په عمومي نه بلکې د يوې کليسا په
انتخاباتو کې. وروسته بيا په نورو انتخاباتو کې هم د کاغذي رايې
استعمال ته توجه وشوه.

د رايو د صندوق ايډيه په لومړي ځل د لندن له يوې کافي څخه
واخيستل شوه. داسې چې کافي والا يو صندوق کېښود او له خپلو



مشتريانو يې وغوښتل چې د سياسي او اجتماعي مسايلو په باب
خپل نظرونه په کاغذ وليکي او کاغذ صندوق ته واچوي.

د پټو رايو دود په ۱۸۵۰ کال په استراليا کې پيل شو او په دې ډول د
رايه ورکوونکو لسټ، کاغذي رايې، پټې رايې او د رايو صندوقونه
ورو ورو د انتخاباتو لپاره په معياري ميتودونو بدل شول. دغه راز د
درغليو او په بيه باندې د رايو د رانيولو د مخنيوي لپاره د کانديدانو
د مصارفو لپاره هم اصول او مقررات جوړ شول.

په اوله کې د انتخاباتو د عموميت مفکوره نه وه. په کابو ټولو
ديموکراتو هېوادونو کې د رايو حق محدودو خلکو ته ورکړ شوی و.
ښځې، کارګران او بزګران د رايه ورکولو له حقه بې برخې وو. څرنګه
چې د قوانينو د پاس کولو واک د پارلمان او شورا په لاس کې و، نو
نتيجه دا وه چې د بې برخې شويو له استازو خالي شورا کې به ټول
قوانين د شتمنو او ممتازو طبقو په ګټه تصويب کېدل. دغو څنډې ته
پورې وهل شويو او ځپ وهل شويو ګروپونو د استازيتوب د لرلو
لپاره د مبارزې اړتيا احساس کړه او دا مبارزه د امريکا له مستعمرو
پيل شوه. د مستعمرو اوسېدونکو د بريتانيا د پارلمان له خوا د
ټکسونو د لګولو سره مخالفت وکاوه او دا شعار يې وچت کړ چې: له
استازيتوبه پرته ټکس نه شته. د امريکايانو د دې غوښتنې ملاتړ د
انګلستان سوداګرو، کسبګرو، صنعت کارو او نورو ټولو هغو
اقشارو وکاوۀ چې د رايې حق يې نه و او غوښتل يې چې د بريتانيا په
پارلمان کې خپل استازي ولري. دغو انګرېزانو د امريکايانو شعار د
خپلو غوښتنو لپاره خورا مناسب وباله.

په نولسمه پېړۍ کې په بريتانيا کې د استازيتوب د لرلو غورځنګ لا
پياوړی شو. ښځو د رايو د لرلو لپاره خپل کمپاين وچلاوۀ ځکه دوی

پوره پوهيدلې وې چې له استازيتوبه پرته به سياسي او اجتماعي حقونه تر لاسه نه کړي. دوی په دې لاره کې شکنجې وليدې، بنديانې شوې او مظاهرې يې وکړې.

دغه وخت د لومړۍ نړيوالې جګړې اورونه بل شول. دې پېښې ښځو ته د خپل هويت د څرګندولو لازم فرصت برابر کړ. کله چې اکثره نارينه د جګړې محاذونو ته لاړل، ښځې فابريکو ته لاړې، په عمومي فعاليتونو کې يې برخه واخيسته او د ژوند په هر ډګر کې يې خپله وړتيا ثابته کړه. د دې نوي حالت نتيجه دا راووته چې له جګړې وروسته ښځو په امريکا، انګلستان او نورو اروپايي هېوادونو کې بالاخره د رايې حق تر لاسه کړ.

د صنعتي کېدو په نتيجه کې په انګلستان کې د کارګرو شمېر زيات شو. په اوله کې دوی په کارګري اتحاديو کې تنظيم شول او د معاشونو د زياتېدو، د کار د ساعتونو د کمېدو، د رخصتيو او نورو اسانتياوو لپاره يې سخته مبارزه وکړه. خو څرنګه چې په پارلمان کې يې استازي نۀ لرل نو خپلو حقونو ته په رسېدو کې ناکام شول. نو دوی د خپلې سياسي ډلې د جوړولو فيصله وکړه او له دې لارې يې پارلمان ته د خپلو استازو د استولو هڅه وکوله. په دې ډول په انګلستان کې د اوسني کارګر ګوند اساس کېښودل شو.

په هند براعظمګي کې د انتخاباتو سيستم په اول ځل د انګرېزانو د اقتدار په زمانه کې مخې ته راغی او د استازيتوب د ادارو د جوړولو لپاره بېل بېل قانوني ريفورمونه وشول. مثلا په ۱۹۰۹ کال کې د مورلي- مينټو ريفورم، په ۱۹۱۹ کې د مونټاګ- چلمسفورډ ريفورم او په ۱۹۳۵ کې د هند د حکومت قانون، هنديانو ته د رايه ورکولو محدود حق ورکړ. حتی د ۱۹۴۶ کال انتخابات چې وروسته يې بيا د



براعظمګي د وېش په ګټه فيصله وکړه، د عمومي رايو د حق په اساس نۀ وو. په دغو انتخاباتو کې د خلکو يوازې يوۀ محدود ګروپ ته، هغوی ته چې جايداد يې درلود او يا يې ټکس ورکاوۀ د رايې حق ورکړ شوی و. په هند او پاکستان دواړو کې د عمومي رايو حق له استقلاله وروسته خلکو ته ورکړ شو.

که موږ په پاکستان کې سياسي وضعيت او د تر اوسه شويو انتخاباتو نتايج تحليل کړو نو دې نتيجې ته رسېږو چې ملي او صوبايي شوراګانې د فيوډالانو او ملاکانو تر سلطې لاندې دي. د دې ملک په شوراګانو کې د کارګرو او بزګرو استازي نه شته او چې د دوی استازي نشته نو قوانين هم د دوی په ګټه نه تصويب کېږي. که په استازيتوب کې کوم تغيير رانۀ شي نو دا تمه نه کېږي چې څنډې ته پورې وهل شوې ګروپونه او اقشار به خپل بنيادي حقونه تر لاسه کړي. دغه ډول انتخابات دوی يوازې د رايه ورکوونکو په توګه ساتي خو دا وس نۀ ورکوي چې قانون جوړوونکي شي او خپل وضعيت بدل کړي.

# دوی په شریکه وده وکړه

د تاريخ د انل مکتب (دا د تاريخ ليکنې د يوهٔ مشهور مکتب نوم دی چې په شلمه پېړۍ کې په فرانسه کې وغوړېد. د دغه مکتب پيروانو د تاريخ د سياسي او نظامي اړخونو په ځای د تېر ژوند اجتماعي اړخونو ته ډېر اهميت ورکړ. د ليډرانو په نسبت يې عادي خلکو ته ډېر پام واړاوهٔ او د زراعت، تجارت، ترانسپورت، آب وهوا او دا رنګه نورو مسايلو بيان ته يې توجه وکړه. دوی همدا راز د ټول تاريخ په ځای د يوې وړې سيمې مثلا د څو کليو د تاريخ ليکلو ته مټې راونغښتلې. ژباړن) نامتو مورخ برادل استدلال کوي چې د اروپا د بخت لمر هله راوخوت چې دغه لويه وچه د هونانو ، مغولو او عربو په څېر پردو يرغلګرو له حملو څخه خوندي پاتې شوه.
د برادل په نظر د صليبي جګړو په دوران کې چې اروپايانو ته د امنيت احساس ورپيدا شو او د مديترانې سمندرګي له منابعو څخه يې استفاده وکړه نو دوی وتوانېدل چې خپلې ټولنيزې موسسې په پښو ودروي او د خپلو اصلي تاسيساتو جوړولو ته مټې راونغاړي.
له اتمې تر لسمې پېړۍ پورې چې وايکنګانو (د سکاندنېويا سوداګر او سمندري غلهٔ) په لويديځې اروپا يرغلونه وکړل، د اروپا د تاريخ لوری ورسره بدل شو.
وايکنګان نهٔ يوازې لويديځې اروپا ته ورغلل بلکې نوې دنيا (د امريکا لويې وچې) ته هم ورسېدل. د بلجيمي مورخ پرن په قول،



اروپا په هاغه وخت کې نوې دنيا ته چندان اهميت ورنه کړ او د هغې کشف يې ژر له حافظې وايست. وايکنګانو په لويديځې اروپا باندې د بلوسو په موده کې شوکې وکولې، قتلونه يې وکول ، او په کليسا ګانو کې په پېړيو پېړيو زېرمه شوې شتمنې يې ولوټله.دوی دغه ثروت بازار ته وايست چې په نتيجه کې يې په اروپا کې اقتصادي تحرک راغی.
د برادل په نظر په نهمهٔ او لسمه پېړۍ کې په اروپا کې د تاريخ توره شپه وه. د دې وخت اروپا په اقتصادي لحاظ دومره کمزورې وه چې د لويو امپراطوريو د درنو مصارفو د پوره کولو وس ورسره نهٔ و. شارلمان لويه امپراطوري جوړه کړه خو لنډه موده وروسته په ۸۱۴ کې وشړېده او په وړو وړو حکومتونو ووېشل شوه. دې شي په اروپا کې فيوډالي کلچر وزېږاوهٔ چې تر معاصرې زمانې پورې يې عمر وکړ.
د اروپا په تاريخ کې دوو عنصرو مهم رول لوبولی دی. لومړی عنصر د يووالي روح دی چې دغه لويه وچه يې له کورنيو شخړو سره سره متحده وساتله. دوی هنر، معماري، ادب، نڅا ، موزيک او فلسفې ته په شريکه وده ورکوله او له دې لارې د هر هېواد خپل بېل هويت، بېله ژبه او بېل کلتور هم غوړېدل. مثلا که به په ايټاليا کې يو فلسفي حرکت پيل شو او يا به په جرمني کې په موزيک يا معماري کې څهٔ نوښت راغی، دغه نوښت او حرکت به نورو اروپايي هېوادونو د خپل ګډ کلچر په توګه سمدستي ومانهٔ. دې ګډون يو مشترک اروپايي تمدن رامنځ ته کړ چې د دې لويې وچې هېوادونه يې له يوبل سره وتړل، اروپا يې د چيلنجونو په وړاندې له دننه مظبوطه کړه او دا وړتيا يې ورکړه چې د ټولو خارجي مداخلو مقابله وکاندي.

فردي ازاديو ته اهميت ورکول د اروپايي تمدن بل خاص عنصر و.
فردي ازادي ان د مطلقه سلطنت په وخت کې، د کليسا د غلبې په
زمانه کې او د فيوډاليزم د استبداد په مهال، د اروپايي ژوند يوه
مهمه ځانګړنه وه. د اروپا خلکو د ذکر شويو موسسو په خلاف په
پېړيو پېړيو مبارزه وکړه. فردي ازادۍ ته د اهميت ورکولو د يو
شاخص او ښووندوی په توګه د بزګرانو پاڅون يادولی شو چې د ځپلو
لپاره يې ډېرې هڅې وشوې مګر ادامه يې ومونده شو بالاخره د
فرانسې په انقلاب کې د فردي حقونو اعلاميه خپره شوه او پاڅون
نتيجه ورکړه. دې اعلاميې د فرد ازادي په رسميت وپېژندله او وګړي
يې د قانون په مقابل کې برابر وبلل.

د اروپا د تاريخ په اول دور کې ډلو او ټولنو کله کله او په وړه پيمانه د
ازادۍ لپاره مبارزه کوله خو ورو ورو او وار په وار د ازادۍ غوښتنه د
مبارزې اصلي خبره شوه. د فکر دې بهير د يوه کس يا يوې ادارې په
لاس کې د قدرت تمرکز له سوال سره مخ کړ او قضاييه او مقننه
موسسې يې پياوړې کړې چې په نتيجه کې د ليبرالو اساسي قوانينو
تدوين ته لار پرانيستل شوه. دغو قوانينو د وګړو اساسي حقونه
تضمين کړل. براډل په خپل کتاب (د تمدنونو تاريخ) کې ليکي چې:

خو څوک به دا ثابته کړي چې ليبرليزم، چې له روان سياسته ايستل
شوی او ارزښت يې کم شوی، نن واقعا مړ دی؟ ليبراليزم په کوم
ځانګړي سياسي دور پورې محدود نه دی او نه د کومې خاصې طبقې
وسيله و دسيسه او د تېر ايستلو ذريعه ده. د لويديځ تمدن لپاره
ليبراليزم يو لوړ ايډيال دی. له دې ايډيال سره به خيانت شوی وي، دا
ايډيال به کمزوری شوی وي، خو تر اوسه لا زموږ د ميراث برخه ده او



زموږ دويم فطرت دی. په فردي ازاديو هر ګوزار د ځان لپاره سپکاوی
احساسوو او په غصه کوي مو. )

د ازادۍ روح اروپا فعاله او له نورو تمدنونو ځانګړې وساتله. په
داسې حال کې چې د اروپا خلکو د ازادۍ لپاره مبارزه کوله د اسيا
خلکو د مستبدو رژيمونو تر تېغ لاندې سلګۍ وهلې او د ابتکار و
نوښت اراده يې وژل کېدله. ان په لرغونو زمانو کې د لرغوني يونان
مورخ، هيرودوتس، د يونان او فارس تر منځ جګړه د ازادۍ او
استبداد تر منځ مقابله بللې وه.

براډل وايي چې سياسي حقونه وګړي هڅوي چې خپله شخصيت و
هويت ولري او همدا وجه ده چې خلک د استبدادي ادارو په خلاف
مبارزې ته دانګي.

ځينو نورو مورخانو ويلي دي چې د قانون په جوړېدو او په تطبيق کې
تفاوت د لويديځ او ختيځ د تمدنونو د انکشاف د توپير سبب شوی
دی. په ختيځ کې کابو ټول قوانين له حامورابي او جوديزمه رانيولې
تر مسيحيت او اسلامه پورې په خدايي لارښوونه ولاړ دي. خو
برعکس په لويديځ کې کابو ټول قوانين بشري دي. د ليکرګوس،
سولون او د روم د قانون سيستم د هغه وخت د ضرورت مطابق وضع
شوي و. ځکه نو شرقي او غربي ټولنو په بېلو ډولونو وده وکړه. خدايي
قانون بدلېدلای نه شي، حال دا چې بشري قوانين نه يوازې بدلېږي
بلکې چې ضرورت يې نه وي، الغا کېږي. دې شي لويديځ تمدن د
زمانې له پرمختګ سره سم، په خپلو اقدارو او دودونو کې بيا کتنې
ته تيار کړې دی.

# د شيانو تاريخ

د تاريخ د علم يو نوى ژانر چې د شيانو د تاريخ نوم ورکړ شوى دى، د ټولنې د هغو اړخونو د سپړلو هڅه کوي چې معمولا ورته پام نۀ کېږي. موږ له ځان سره مختلف شيان ساتو او په ورځني ژوند کې ورنه کار اخلو خو په دې به شايد نه يو خبر چې دا هر يو، خپله بېله ماضي و مخينه لري. موږ ته دا شيان بې روحه، بې تاثيره ښکاري مګر داسې نۀ ده. د دې هر يوۀ تر شا، اوږده او په زړۀ پورې ماضي پرته ده چې سپړنه، پلټنه او شننه غواړي څو په دې ډول د ټولنې په کلتوري، سياسي، اقتصادي او اجتماعي اړخونو باندې د دې ماضي په اثر او اغېز پوه شو.

ارکيالوجي په پخوانو کنډوالو، لرغونو ځايونو او نسکورو ډېريو کې د لټون په برکت، د تېرو زمانو د خلکو په لاس د جوړو شويو شيانو اهميت او فايده رابرسېره کړه. چې ليکلي اسناد نۀ وي نو د ليکنو ځاى هم په لاس جوړ کړي اشيا نيسي چې د حال په ژبه د تېر وخت کيسه راته تېره کړي. له تېرو تمدنونو راپاتې جواهر، کلالي لوښي، کار افزار، وسلې او د لوبو سامانونه په هغو زمانو کې د ژوند کيسې راته کوي. دغه شيان د تاريخ د يوې منبع په توګه ماضي له حال سره وصلوي، له موږ سره مرسته کوي چې د بشر د تحول بهير وپېژنو او بل، په دې مو پوهوي چې يو تمدن له کومو کومو پړاوونو تېر شوى دى.



شيان موږ د پخوانو خلکو له مهارتونو، د ابتکار له وړتياوو او د ښکلا له ذوقه خبروي، ځکه خو له پخوانو راپاتې شيان په موزيمونو کې ساتو.

په دې سربېره، شيان او وسايل له يوې سيمې بلې ته د کلتوري ارزښتونو په خپرېدو او د ولسونو په نږدې کېدو کې لويه ونډه لري. په تېرو پېړيو کې ارتباطات کم او انتقالات ورو و. خو کله چې به د دنيا له يوۀ کونجه بل ته يو نوى شى ورسېد، نو دې واقعې به د خلکو د ژوند طرز بدل کړ. په مثال کې به اور او ارابه راواخلو چې په ټوله دنيا کې خپارۀ شول او د ژوند په عادي بهير کې يې انقلاب راوست.

د تاريخ معرفت مو د شيانو په هغه اهميت خبروي چې زموږ په ژوند کې يې لري.

تر هر څه ړومبى شايد په دې باندې خبرېدل پکار وي چې شيانو څنګه د بشر په چلند او سلوک باندې اثر کړى دى. د مثال لپاره به وو ايو چې د ختيځ خلک تر دې وروستيو وختونو پورې د کورنۍ له غړيو يا مېلمنو سره په فرش باندې کېناستل. څرنګه چې په غالۍ يا ګېلم باندې د کوچ و چوکۍ په نسبت ډېر کسان ځايېدلى شي نو ويلى شو چې له فرشونو سره، د ګڼ اوسېدلو عادت پياوړى کېدۀ. زموږ مشران چې په فرش کېناستل، په ازادو جامو کې به خوشحاله وو خو نن سبا دغسې جامې له موده وتلې دي. اوس په چوکيو او کوچونو باندې له درېشي او پطلون سره ناسته غوره بولو. د وسايلو دې بدلېدا زموږ په سلوک او د بدن په حرکاتو باندې اثر کړى دى.

په دې وروستيو کې يوه سروې ښيي چې په هندوستان کې ځوانې نجونې د پخوانو په اندازه سارۍ نۀ خوښوي، دوى کميس و پرتوګ ورباندې ښۀ بولي ځکه حرکت پکې اسانه دى.

د نويو اختراعاتو او د خلکو د اړتياوو د بدلېدو له کبله زاړهٔ شيان په نويو هغو بدلېږي. د اوسنو ښارونو اوسېدونکو د کليو د پخلنځيو پخواني وسايل بېخي هېر کړي دي. د عصري پخلنځيو وسايلو د پخلي په طريقو کې پوره بدلون راوستی دی.

له بلې خوا، شيان او وسايل د ماهرو کسبګرو يوهٔ ګروپ ته هويت وربخښي او يا د يوهٔ ښار و سيمې د پېژندګلوۍ په سمبول بدلېدلی شي. په ډاکه کې توليد شوي مازلين ټوکر د لطافت و ظرافت په خاطر مشهور و او په بنارس کې د وريښمينو ساړيواوبدونکي د خپل مهارت په برکت په ټول هندوستان کې نوم لري. په اوسني پاکستان کې د سند صوبې هاله او د پنجاب صوبې چينيوټ ښارونو د فرنيچر جوړولو په کاروبار کې د ماهرو کسانو د لرلو په وجه ښل اهميت موندلی دی.

شيان د يوهٔ کس د حال په بيان کې هم مرسته راسره کوي. شتمن ممکن قيمتي زېورات ولري او خواران شايد په ارزان بيه مصنوعي پسول قناعت وکړي. جامې هم، همداسې درواخله. په لرغوني چين کې يوازې شتمنو ته اجازه وه چې وريښميني جامې واغوندي. د اروپا په منځنيو پېړيو کې وسله ګرځول او په لوکسو بګيو کې سپرېدل، د اشرافو د امتياز په ذريعو کې حساب وو. د نن سبا خلک ممکن په دې باندې وويارې او وغتېږي چې وروستی ماډل موټر لري، يا يې د وروستني مود بوټونه په پښو دي يا مثلا تر ګردو نوی ډول ساعت يې په لاس کړی دی.

دغه راز په تېره زمانه کې د تخت، تاج او امسا په څېر وسيلې د پاچايانو د څواک نخښې وې او په پوځي دفترونو کې د ډنډې ساتل د اقتدار سمبول و. په اوسني وخت کې د دا رنګه سمبولونو ځای د



مهمو شخصيتونو په موټرو باندې بېرغ لګولو، په غونډو کې د مهمو کسانو خاصو چوکيو او داسې نورو علايمو نيولی دی.

څرنګه چې شيان، اجتماعي تفاوتونه زېږوي او خلک د امتياز په خاوندانو او عادي کسانو وېشي نو ځينو راديکالو حرکتونو او ځينو انقلابونو چې د مثال لپاره د فرانسې، روسيې او چين انقلابونه يادولای شو، له دې سره مخالفت کړی دی چې شيان دې د اقتدار او برلاسۍ د سمبولونو په توګه وکارول شي، خو دا مخالفتونه بې اثره وو. د زور او ثروت خاوندان لا تر ننه پورې په عادي خلکو باندې د برلاسۍ او د ځان د ممتاز ګرځولو لپاره له خاصو شيانو استفاده کوي.

# د ګلونو کلتور

په هر ځای او هرې خوا کې د ګلفروشیو له غرفو او دوکانونو رامعلومېږي چې نن سبا د ګلونو کلچر ډېر عام شوی دی. دا اوس یو دود ګرځېدلی چې د مینې یا احترام د څرګندولو په خاطر یو چاته د ګلو ګېډۍ ورکړو یا په غاړه کې د ګلو امېل ورواچوو.

خو په تېرو زمانو کې هم له درې لویو سامي ادیانو، یهودیت، عیسویت او اسلامه پرته، نور نو په کابو ټولو تمدنونو کې، ګل د مینې د سمبول په توګه کارېدلی دی. ګل له خورا لرغوني وخته بیا تر ننه پورې د محبت علامت و. روڼاندي، شاعران او هنرمندان د ګلونو رنګونو، لطافت او ښکلا دومره ورجذب کړي چې ډېر ځله د خپلو باطني عواطفو او احساساتو بیان د طبیعت د دې نازکې لوربینې په ذریعه کوي.

د ګلونو د کلتور د تاریخ په لټون کې موږ ان لرغوني مصر ته رسېږو. لرغونو مصریانو نېلوفرګل مقدس بالۀ او مذهبي جشنونو ته به یې د خپل ایمان او درناوي د نخښې په توګه نیلوفر او نور ګلونه راوړل.

مګر په روم او یونان کې د ګلونو استعمال تر ډېره حده دنیایي او غیر دیني مقاصد لرل. د دغو خلکو د خوښې ګل، ګلاب و چې په هر مناسبت کې به یې وړاندې کاوۀ. د روم او یونان د خلکو په ورځنیو خبرو او عباراتو کې دې ګل ته زیاته اشاره کېدله (مثلاً د ګلابو د بستر عبارت) او وجه یې دا وه چې دغه ګل د دوی ژوند ته ډېره لاره



کړې وه. په لرغوني روم او یونان کې د ګلابو د مینه والو ورځ په ورځ زیاتېدا، سوداګر او کاروباریان وهڅول چې د ګلابو باغونه کېږدي. د ښارونو په هره څنډه او ګوښه کې د ګلانو دوکانونه پرانیستل شول او ګرځنده پلورونکو په لارو، کوڅو او مارکېټونو کې د ګلونو خرڅلاو پیل کړ. په دې منځ کې یو بل لوی تغییر دا راغی چې خدایانو ته د انسان د قربانۍ ځای د ګلونو نذرانې ونیو. دا پېښه د انسان په خونکار خوی کې د بدلانۀ نخښه بللی شو.

چې د روم امپراطوري زوال وکړ، د ګلونو کلچر هم زوال وموند. چې د روم اختیار مسیحیانو ته په ګوتو ورغی، په روم کې د ګلونو له کلچر سره مخالفت وشو. د کلیسا پلرونو د ګلونو کلچر د کفر دود وبالۀ، ویې غاندۀ. رومیانو به پخوا خپلو خدایانو ته د ګلونو تاجونه جوړول، خو د کلیسا پلرونو وویل چې د دوی د دین پېشوایانو نۀ د ګلونو تاجونه په سرونو ایښي وو، نۀ یې په ګلونو باندې محرابونه ښکللي وو او نۀ یې په مذهبي مراسمو کې ګلونه کارولي وو. په روم کې د مسیحیت د اقتدار په اول پړاو کې مذهبي مقاماتو نه یوازې د طبیعت د دې رنګینو پاڼو استعمال منع کړ بلکې د عطرو غندنه یې هم په دې دلیل وکړه چې د کافرانو عادت دی.

خو ورو ورو له عطرونو او ګلونو سره تعصب کم شو او په نهمۀ میلادي پېړۍ کې ګلونو کلیساګانو او صومعو ته د ورتلو اجازه وموندہ. مختلف ګلونه د مختلفو ایډیو سمبولونه شول. مثلاً زیتون د سولې او ګلاب د شهید د وینې سمبول او ښووندوی شو.

د رنسانس په زمانه کې د ګلونو کلچر په زیاته پیمانه وغوړېد. ګل د قلم د خاوندانو او د انځورګرو د خوښې مضمون شو. په دې زمانه کې د ګلونو شوق دومره ډېر و چې ننداړتونونه به یې په سیالۍ جوړېدل

او د ښۀ کيفيت ګلونو د توليد او تکثير لپاره قوريې او نرسرۍ جوړې
شوې. د ګلونو د توليد په زياتېدو سره د ګلبازۍ کلچر د اشرافو له
انحصاره راووت، عوامو هم د ګلبازۍ وس وموند. نور نو هغه وخت
رارسېدلی و چې دعام سړي د کور په تراس و بالکون و برنډه کې يا د
دوکان مخې ته ګلبوټي ليدل کېدل.

په ۱۵۵۴ کال کې د استريا سفير په عثماني دربار کې غاټول ګلونه
وليدل. سفير ته غاټول ډېر ښکلي ښکاره شول، ويانا ته يې ورسره
يووړل. په ۱۵۶۰ کې غاټول په جرمني، هالنډ او بلجيم کې وکرل شول.
په ۱۷۷۸ کال کې په هالنډ کې غاټول ګلونه دومره عام وو چې د دغه
هېواد په ملي سمبول بدل شول.

په انګلستان کې د ګلونو کلتور هغه وخت صدمه وليده چې د کرامول
تر اثر لاندې پارلمان د قدرت واګې په لاس کې واخيستې. د
مسيحيت پيوريټن فرقې په کليساګانو کې د ګلونو او عطرو استعمال
منع کړ. په ۱۶۶۰ کې د پارلمان له خوا يوۀ تصويب شوي قانون ښځې
د عطرو او ګلونو له کارولو منع کړې. خو د سلطنت له اعادې او د دين
او سياست له بېلوالي سره په انګلستان کې د ګلونو کلچر يو ځل بيا
وغوړېد. وروسته بيا صنعتي انقلاب له دغه کلچر سره نوره مرسته هم
وکړه او دغه دود يې د عصري ټولنې د ورځنې ژوند په يوې مهمې
برخې بدل کړ.

جک ګوډي په خپل کتاب کې چې (د ګلونو کلتور) نومېږي، په هندي
کلچر کې د ګلونو په اهميت غږېدلی دی. دی ليکي چې: د يوې جذابې
ښځې سينګار له شګوفو، له غونچو، له ګلونو او د ګلونو له تاج او
پېچکه پرته نيمګړی و. د هندو مذهب په مشهوره حماسه رامايانا کې
لولو چې سيتا (د رامايانا د کيسو د اصلي اتل راما مېرمن ده. د دې



مېړۀ د هندو خدای ويشنو مظهر دی. ژباړن) د ګلونو د ټولولو شوقي
او د نيلوفرو لېواله وه. دې به نيلوفر ګلان په خپلو زلفو کې ټومبل.
په هند کې نارينه هم ګلبازه وو، په تېره بيا د خوب د وخت لپاره د
ګلونو سينګار خورا خوند ورکاوه. دوی نه يوازې ځانونه بلکې خپلې
بګۍ، لارې، کورونه، ځايونه او ان ښارونه په ګلونو سينګارول. د
ګلونو د ګېډۍ ډالۍ له مينې او واده سره رابطه لرله. )

نيلوفر د مصر په څېر په هندو ټولنه کې مقدس ګڼل کېږي. دا د
ويشنو، کريشنا او لاکشمي د خوښې ګل و. (اوس هم د بي، جې، پي
ګوندې سمبول دی. )

د هند مسلمانان د هندوانو د ګلونو د کلچر تر اغېز لاندې راغلل. مغولو
له ګلونو سره ډېره دلچسپي لرله او لکه څنګه چې جهانګير په خپل تزک
کې ليکلي، د ګلابو عطر په اول ځل د نورجهان مور توليد کړل. په
نولسمه پېړۍ کې د مسلمانانو او هندوانو ګډ کلچر د مغولو په دربار
کې د ګلونو جشن (پهولون والون کي سير) پيل کړ چې د ډهلي د دربار په
ملاتړ هر کال جوړېدۀ. (ميرزا فتح الله بيګ په دې اړه خورا عالي ليکنه
کړې ده. ) خو په همدې وخت کې مذهبي افراطيونو د روم د کليسا د
پلرونو په شان هم د دين او هم د دنيا په چارو کې ګلبازي وغندله.
سيد اسماعيل شهيد په خپلو اثارو تقوية الايمان او صراط المستقيم
کې د وادۀ په وخت د زوم په غاړه کې د ګلونو د امېلونو اچول ناروا وبلل.
جالبه دا ده چې د صوفي بزرګانو په قبرونو باندې مريدانو او مخلصانو
په خلاص مټ ګلونه اينبودل او په زيارتونو کې په لويه پيمانه ګلبازي
روانه وه. تاريخ راته وايي چې مذهبي افراط د ګلونو د کلتور مخالفت
کړی خو سکيولر مفکورو دا دود غوړولی دی. نن هم کيسه همدا شان ده.

# لمر نهٔ ډوبېږي

د مختلفو تمدنونو د طلوع و غروب مطالعې مورخان پوهولي دي
چې د هر تمدن د زیږېدو، ودې او زوال لاره بېله ده. د یوهٔ تمدن د
ظهور و زوال یون د خاص قانون پیروي نهٔ کوي. مورخانو ته، چې د
ټولنې د پېژندلو او د هغې د پټو رازونو د معلومولو په لټه کې دي، د
دغو غوټو د سپړلو کار ورپه غاړه دی.

هغه مورخان چې د لویدیځ تمدن د ظهور په مطالعه بوخت دي، په دې
اړه یې بېل بېل نظریات وړاندې کړې دي. په دغو کې یوه نظریه د
ایروسنټریزم ده چې دغه تمدن له نورو هغو بلکل بېل بولي. د دې
نظریې پلویانو ته لویدیځ تمدن یوه داسې معجزه ښکاري چې د
اروپایانو له توکمیزو ځانګړنو سره رابطه لري. د ایرو سنټریزم له
نظریې سره سم، لویدیځ تمدن د اروپا د اقلیم، جغرافیایي موقعیت
او د اروپایانو د توکمیزو ځانګړنو په وجه وده وکړه اوبلکل بېل
هویت یې پیدا کړ. د دې نظریې یو شارح او مفسر ډېوید لینډیز دی
چې همدا لید یې په خپل کتاب (د ملتونو ثروت او فقر) کې په
تفصیل بیان کړی دی.

لینډیز په سر کې د اروپا د اقلیم په امتیاز غږېږي. دی وایي د
لویدیځې اروپا په خورا سړه هوا کې میکروب و جراثیم یخ وهي او
ناروغۍ په اسانه نهٔ خپرېږي. خو د مدیترانې د سواحلو په پسته هوا
کې چې اروپایان په جسماني لحاظ کمزوري او د ناروغیو په مقابل



کې ډېر خوندي نه وو، ساري مرضونو ډېره تباهي راوسته. نو دغو
خلکو د طب علم ته انکشاف ورکړ چې د وبا چاره وکړي او
روغتونونه یې ودان کړل چې د ناروغانو علاج وکاندي. دغو هڅو له
دوی سره د ناروغیو په کنټرول کې او د ساري مرضونو په مخنیوي
کې مرسته وکوله.

د لویدیځ او ختیځ تر منځ بل توپیر دا و چې په ختیځ کې اوبهٔ
حکومتونو کنټرولولې او دې شي د داسې حکومتونو جوړېدو ته لاره
اواره کړه چې د قدرت تږي وو. په مقابل کې په لویدیځ کې اوبهٔ
پریمانه وې، خلک اړ نه وو چې د اوبو لګولو د نظام د جوړولو لپاره
په حکومتي بیروکراسي تکیه وکړي.

د مورخانو په نظر خواړهٔ یو بل هغه عامل دی چې په پرمختګ کې
برخه لري. اروپایانو کوچ، شیدې او غوښه خوړله چې دوی یې روغ او
پیاوړي ساتل او د سختو کارونو د تر سره کولو وس یې ورکاوهٔ.

په دې سربېره په اروپا کې د ناوخته وادهٔ رواج د نفوسو له کنټرول سره
مرسته کوله. دلته ماشوم نعمت نهٔ بلکې پېټی حسابېدهٔ.

لېنډیز وایي چې شرق او غرب له ابتدا لا، له کابو هر پلوه بېل قطبونه
وو. کله چې یونان مستقل ښار_ دولتونه جوړ کړل، د یونان رقیب
یعنې فارس د استبداد په منګولو کې و. په لویدیځ کې شخصي
ملکیت خوندي و خو په ختیځ کې ټوله مځکه د واکمنو په واک کې
وه.

د لویدیځ تمدن په پېژندلو کې دا هم د یادولو ده چې اروپایانو له
کلیسا سره څنګه چلند وکړ. لینډیز د کلیسا د هژموني او برلاسي په
خلاف د یو شمېر نهضتونو یادونه کوي، لکه لولارډانو چې په ۱۳۷۶
کې او مارتین لوتر چې په ۱۵۱۴ کې د کلیسا د تعلیماتو او

اقتصادي استثمار په خلاف ناره اوچته کړه. د دې اعتراض يوه
نتيجه دا راووته چې مقدس کتاب په ځايي ژبو ترجمه او عادي خلکو
ته د فهم وړ شو. دې شي د کليسا نفوذ کم کړ. د دين له نوي تفسير سره
سم، خداى مطلق قدرت او پاپ په مځکه باندې د هغه خليفه او په
مذهبي مسايلو کې د واک څښتن و خو سياسي قدرت د پاچا په لاس
کې و. په دې ډول وينو چې قدرت نۀ په يوۀ لاس کې پاتې شو اونۀ په
يوې ادارې کې راټول شو بلکې وويشل شو.

د غرب تمدن بله ډالۍ د داسې ښارونو ظهور و چې صنفي اتحاديو
يې کاروبار اداره کاوۀ. د دغو ټولنو او اصنافو يو مهم مسووليت د
سوداګرو او کسبګرو د حقونو تحفظ و. ښارونو خپلو ښاريځو
(شهروندانو) ته ازادي ورکوله او واکمنو، سوداګر وکسبګر په شا
ټپول چې عوايد يې زيات شي او د فيوډالانو په مقابل کې يې پياوړي
کړي. واکمنو د فيوډالانو د زور د کمولو لپاره ښارونو ته امتيازات
ورکړل او د سوداګرو ملاتړ يې وکاوۀ.

په ۱۰۹۶ کال کې د صليبي جګړو پيل داخلي جنګونه ختم او اروپايان
يې د خپل مشترک غليم په مقابل کې متحد کړل. خو چې صليبي
جګړې ختمې شوې نو له يوځونو څخه د استفادې سوال راولاړ شو او
په دې ډول اروپايانو د اسيا او افريقا د خاورو لاندې کولو ته توجه
واړوله. اروپايانو د خپل ثروت د زياتولو لپاره د سرو زرو، ورېښمو
او مساله جاتو سوداګرۍ پيل کړه. دوی د ځان لپاره د ازادو زميني و
بحري لارو د لرلو په منظور د مسلمانانو د کنټرول د ختمولو هڅه
وکړه. په نتيجه کې پرتګال او اسپانيا د لويو قدرتونو په توګه
راڅرګند شول. د نويو سمندري لارو په لټون کې نوې دنيا کشف شوه.
اسپانيا او پرتګال دواړو، د فتوحاتو لپاره له دين څخه پوره پوره



استفاده وکړه او د مفتوحه ملکونو منابع او شتمنۍ يې لوټ کړې.
دوی نه يوازې د مفتوحه ملکونو خلک د عيسايت منلو ته اړ ايستل
بلکې د هغوی د شتمنۍ د ترلاسه کولو لپاره يې د هغوی سرونه
ورېبل او د کليسا روحانيونو د دوی دغسې کارونو ته دليلونه اختراع
کړل.

بريتانيا او فرانسې د استعمار په لاره کې د اسپانيا او پرتګال په پل،
پل کېښود. دوی کارابين ټاپوګانو ته افريقايي غلامان وروستل چې
هلته په کروندو کې کار وکړي. دغو ټاپوګانو ته په دريو پېړيو کې
کابو لس ميليونه غلامان وروستل شول. هغه ثروت چې د غلامانو د
کار په برکت راغونډ شو په انګلستان کې يې صنعتي انقلاب راوست
چې په تکنالوجي کې يې نوی پېر پرانيست.

نورو اروپايي هېوادونو هم په همدې لاره مزل وکاوۀ او خپلې ټولنې
يې له فيوډالي پړاوه صنعتي مرحلې ته ورسولې.




# مذهب او سیاست

مذهب او سياست دواړه يو مشترک مقصد لري. دواړه غواړي چې
قدرت يې په لاس کې وي او خپلو مقصدونو ته د رسېدو لپاره
استفاده ورنه وکړي. البته، مرام ته په رسېدو کې د دوی میتودونه
بېل دي. مذهب د ځان د حمایت لپاره د خپلو پیروانو مذهبي
احساسات پاروي خو سیاستوال له چل، سازباز او ډیپلوماسي کار
اخلي. سیاستوال په ډیموکرات سیستم کې د خلکو د رایو په خپلولو
پسې ګرځي او که ټولنه وروسته پاتې وي نو د لښکرو په زور واک ته
رسېدا هم نا مناسبه نهٔ ګڼي.

د قدرت د حصول په کشمکش کې سیاست و مذهب د یو بل د تخریب
هڅه کوي. مذهب چې سیاسي اقتدار يې ملګری وي، اسره يې دا
وي چې دغه اقتدار د اسماني او غیردنیایي مقصد لپاره وکاروي.
مذهب وايي چې اقتدار يې له خدايه منشا اخلي او په همدې وجه يې
د روحاني لارښوونې په رڼا کې د ټولنې د سمون مقصد مقدس دی.
خو، سیاست برعکس، له هر ډول ارزښته بېل، د ټولنې د اړتیاوو
مطابق خپلې پالیسۍ جوړوي او د اړتیاوو په اساس د دولت سیستم
او قوانین بدلوي.

د مذهب او سیاست په طریقو کې يو بنیادي فرق په دې کې دی چې د
مذهب واک او اقتدار د خدايي قوانینو په حدودو کې وي چې بشر
پکې لاس نه شي وهلی خو د سیاست په پراګماتیکه او عملي طریقه



کې ټولنه باید وخوځي، په مخ لاړه شي او د وخت له نویو چلینجونو
سره په ځان کې بدلون راولي. په سکیولر او غیر مذهبي لاره او روده
کې بنیادم پخپله د خپل تقدیر د ټاکلو مسوول دی. دی د اسماني
قدرت په کنټرول کې نهٔ دی چې مطیع واوسي. بلکه برعکس، له دهٔ
تقاضا کېږي چې د خپل لید او ارزو مطابق د ټولنې د جوړولو لپاره
پلان ولري او نوښت وکاندي.

د مذهب او سیاست په اړه په تاریخ کې درې ماډله وینو: په دا یوهٔ کې
مذهب او سیاست د قدرت د انحصار لپاره يو بل ته لاسونه ورکړي
دي. په بل ماډل کې سیاست په مذهب باندې له برلاسه کېدو وروسته
هغه د ځان دګټو لپاره استعمالوي. په دریم ماډل کې سیاست او
مذهب په ټکر کې وي چې په پای کې سره بېلېږي.

د ادیانو د ابتدا او خپرېدا مطالعه راښیي چې هر دین په خاص
چاپېریال او خاصه زمانه کې ظهور کوي او په همدې وجه يې
لارښوونې تر ډېره حده د هاغه وخت او چاپېریال موجودو پرابلمونو
ته متوجه وي. خو چې زمانه واوړي او پرابلمونه بدل شي نو دین د
خپلې بقا لپاره د دغو نویو پرابلمونو د اوارولو هڅه هم کوي. په دې
بهیر کې دین له نویو حالاتو سره د خپلو تعلیماتو د برابرولو ضرورت
محسوسوي. د وخت په تېرېدو سره داسې مرحله راځي چې دین د
عصر پرابلمونو ته په ځواب موندلو کې له مشکلاتو سره مخ شي او له
نویو شرایطو سره ځان عیارول ورته ګرانه واېسي. د مثال لپاره به
اسلام رااخلو. د اسلام د مطابقت بهیر کابو دوه نیمې پېړۍ
واخیستې خو کله چې د ودې دا بهیر بشپړ شو نو راسخ العقیده
خلکو ته دا بیا ناممکنه واېسېده چې نویو او نورو افکارو او نظریو
ته لار پرانیزي. د دوی دا باور راغی چې د اسلام په اړانه کې هر ډول

بدلون به د هغهٔ اساس ورکمزوری کړي او په همدې پلمه د هر ډول نوي
څهٔ له اضافه کولو پرته د پخوانۍ اډانې په ساتنه باندې ټينګار وشو.

د خپل ژوند په بهير کې هر دين له دريو انتخابونو سره مخ کېږي: يو
انتخاب خو دا دی چې د دين په اډانه کې له هر ډول بدلانهٔ سره
مخالفت وشي او د ديني تعليماتو دهر نوي تعبير او تفسير هڅه د
حکومت په زور او يا د مذهبي حکم په مټ ( چې په اسلام کې يې فتوا
بولي) شنډه شي. په دغسې حالت کې هغه کسان چې د مذهبي
افکارو د بيا رغېدو ادعا کوي د دين غليمان ګڼل کېږي او د ايمان له
خاوندانو غوښتنه کېږي چې له داسې کسانو سره بايد اړيکې غوڅې
کړي.

په دويم انتخاب کې د مذهب غېږه نويو نظرياتو ته پرانيستې وي او
دا ورته د منلو وي چې تعليمات يې د وخت له غوښتنو سره سم له سره
تفسير او تعبير شي.

کله چې مذهب د نويو مشکلاتو په اوارولو کې پاتې راشي او ځان نا
امنه ووينې نو دغه وخت د مذهب لپاره دريم انتخاب هم شته او هغه
دا چې له فعال ژونده څنډې ته شي او خپل فعاليت يوازې په روحاني
مسايلو پورې محدود کاندي.

په اوسنو شرايطو کې چې ساينسي او تخنيکي ايجادات په سرعت
سره دنيا بدلوي او په تېره بيا د پوهې او سياسي و اقتصادي علومو
په خپرېدو سره ټولنه ورځ په ورځ پېچلې او ماشيني کېږي نو مذهب
نهيلی وينو. ساينس او د معرفت نورې څانګې اوس د يوې بېلې
هستۍ فکر کوي چې د تخصص په ذريعه اداره کېدای او کارېدلی
شي. مذهبي علما په دې دريځ کې نهٔ دي چې د دې مهارتونو
پېچلتياوې وپېژني او له مذهبي لارښوونو سره سمون ورکړي. همدا



علت دی چې په ځينو ټولنو کې مذهب له سياسته بېل شوی دی او په
ټولنه باندې نور هاغسې غلبه نه لري لکه په منځنيو پېړيو کې يې چې
لرله.

په هره ټولنه کې داسې کسان شته چې په خپل عملي ژوند کې د بدلون
پلويان دي خو له دينه بېلېدل هم نهٔ غواړي. دغه ډله کسان د دين د
نوي تعبيرو تفسير تقاضا کوي، داسې چې د دوی د ژوند له طريقې
سره سمون وخوري. دغه شی د نويو مذهبي فرقو او نظريو د پيدا
کېدو سبب ګرځي. موږ په هر دين کې د خلکو د يوې ډلې د غوښتنو د
ځواب لپاره نوې فرقې مومو چې يو وخت وي او بيا ختمې شي. خو
ځينې فرقې په پايېدو ټينګار کوي او پايېدونې وي. مثلا کله چې په
مسيحي ټولنه کې بورژوازي د سود لپاره د مذهب اجازه وغوښته نو
مذهبي ريفورميسټ و سمونپال کالوين(د ۱۵۹۴ مړ) د مذهب په
اساس د سود اجازه ورکړه. دغه شي تجارتي خنډونه لرې کړل او د
صنعت کارو او سوداګرو کاروبار ورسره وغوړېد. آر. ايچ تاوني
(۱۸۸۰-۱۹۶۲) په خپل کلاسيک اثر(مذهب او د کاپيټاليزم ظهور)
کې سم ويلي دي چې: کالوين د شپاړلسمې پېړۍ د بورژوازۍ لپاره
هغه څهٔ وکړل چې مارکس د نولسمې پېړۍ د پرولتاريا لپاره وکول.

# د فرانسې انقلاب

اتلس سوه اتۀ څلوېښت ميلادي کال په اروپا کې د انقلاب کال و. د انقلاب لمبې نۀ يوازې په فرانسه کې بلکې په جرمني او استريا کې هم بلې وې او په هر ځای کې يې برلاسي مخور پرېشانه کړل. دوی ته وېره ورولوېده چې د ټيټو طبقو راديکاليزم يې هسې نۀ د قدرت او امتيازونو ختمېدو ته لاره اواره کړي.

يو جرمن مورخ کارل وان روټيک چې د بدلانۀ څپو په شوق راوستی و، د فرانسې د ۱۷۸۹ کال د انقلاب په باره کې وليکل چې د اروپا تاريخ درې لويې پېښې ليدلي دي: عيسويت، مطبعه او د فرانسې انقلاب. په دغو دريو کې عيسايت او مطبعې په اروپا او نوره دنيا کې په پټه خولۀ او ورو ورو بدلون راوست خو د فرانسې انقلاب هرڅۀ په توندی، په چټکی او نابېره بدل کړل. ځکه خو دغه انقلاب د هغو کسانو لپاره يو مثال او ماډل شو چې د خپلو ټولنو د چټک بدلون غوښتنه يې کوله.

د اي. ايل. هابسباوم په قول، د فرانسې انقلاب، هغو کسانو ته چې په ټولنه کې يې بدلون غوښت، الهام ورکړ، ادبيات يې ورکړل، اصطلاحات يې ورکړل، د هغوی مخې ته يې يو ماډل کېښنود او د هغوی په لاس يې د پرتلنې يو مقياس ورکړ. دی د دې انقلاب د سياسي اغېزو په اړه ليکي چې: د اروپا د نولسمې پېړۍ د ټولو هېوادونو د سياسي اصطلاحاتو يوه لويه برخه له همدې انقلابه



راوتلې او دغه اصطلاحات يا له فرانسوي ژبې پور شوي يا د فرانسوي په تقليد جوړ شوي دي.

هغه څۀ چې په ۱۷۸۹ کې په فرانسه کې واقع شول، د انقلاب کلمه يې په زړۀ پورې او قدرمنه وګرځوله. اوس دا معمول ده چې د ټولنيز ژوند په بېلو بېلو اړخونو کې مثبتو تحولاتو ته د اشارې په وخت د انقلاب کلمه وکاروو.

يو جالب ټکی دا دی چې د بېلو بېلو انقلابونو له ماهيت سره بېل بېل رنګونه غوټه شوي دي. مثلا د روسانو انقلاب سور دی. زراعتي انقلاب زرغون دی. د ايران پاچا خپل انقلاب سپين وبالۀ. پاچا په دې ډول دې ته اشاره کوله چې د دۀ انقلاب د نورو انقلابونو برخلاف چې کسات يې اخيست او خونړي وو، سوله ايز ماهيت لري. خو له دې نومونې سره سره د هغۀ ريفورمونو د ايران خلک قانع نۀ کړل او د دۀ ملاتړ يې ونۀ کاوۀ. امريکايان که څۀ هم له هر انقلاب سره مخالفت کوي خو د خپلې ازادۍ جګړه يې د انقلاب په نوم پېل کړه چې دا نومونه به شايد د خپل محافظه کار ماهيت د پټولو او مترقي ګروپ ته د ورنژدې کېدلو په خاطر وه.

د فرانسې د ۱۷۸۹ کال انقلاب د ۱۸۳۰ او ۱۸۴۰ انقلابونو ته لار پرانيستله. دغو انقلابونو د اروپا برلاسي طبقې وګوابنلې او مجبورې يې کړې چې د خلکو د پرګنو په ګټه په تغييراتو فکر وکړي. د دوی سرونه په دې خلاص شول چې د پخوانو رژيمونو ورځې نورې تېرې دي او دوی ته پکار ده چې په نويو تغييراتو او د دولتي نظام په نوي جوړښت باندې غور وکوي.

مور دغه ډول فکر د جرمني د صدراعظم بسمارک په خبرو کې لولو. هغۀ په ۱۸۶۶ کال کې ويلي وو: که انقلاب خامخا راځي نو تر دې چې

موږ یې قربانیان واوسو، بهتره ده پخپله یې راولو. د بدلون د راتلو فشار په اروپا کې سیاسي، اجتماعي او اقتصادي تحولاتو ته لاراواره کړه څو په دې توګه د انقلاب څپې له کنټروله ونه وځي. دا یو تاریخي حقیقت دی چې د فرانسې انقلاب د نړۍ سیاسي، اقتصادي او اجتماعي ژوند ته ډېر څۀ ورکړي دي او په تاریخ، ژبه او سمبولونو یې ژور اثر پروت دی. دغه انقلاب د دولت موسسې ته ځینې آلې او وسیلې لکه تور، سپین اوشین درې رنګه بیرغ او د مارسي سرود په طرزملي سرود ورکړل. دغه انقلاب د اساسي قانون یو ماډل چې د بشري حقونو اعلامیه، د خلکو حاکمیت او د قانون په مقابل کې مساوات پکې شامل وو، وړاندې کړ.

د دې انقلاب په پېرزوینو کې قانوني نظام، متریک سیستم، په سیاسي فعالیتونو کې د ښځو ګډون، مذهبي زغم او د بندیانو او غلامانو په ګټه انساني ریفورمونه هم یادولی شو. په دې سربېره دې انقلاب د ځان د دفاع لپاره د یرغلګرو لښکرو په خلاف د ولسي پوځ ایډیه مطرح کړه. دغه راز په سیاسي ژبه کې د ښي او چپ اصطلاحات چې سیاسي تمایلاتو ته اشاره کوي، د همدې بدلون پیداوار دي.

دې انقلاب له پیل پیله د اجتماعي حیثیت د برابرۍ لپاره د ځپل شویو خلکو د هیلو پوره کولو ته متې راونغښتې. د انقلاب معروف شعار یعنې ازادي، برابري او مساوات، په ټولنه کې د تفاوتونو د ختمیدا ارزو بیانوي. د خلکو اجتماعي موقف ته له پامه پرته د هېواد هر وګړی د ستیزن (وطندار) په نوم یادول سمدستي دود شول. وروسته بیا د روسیې په انقلاب کې د همدې دود پیروي وشوه او یو بل ته (ملګری ) ویل پکې رواج شول. د فرانسې د انقلاب بله ځانګړنه دا وه چې د نورو ورپسې انقلابونو په شان یې اتلان تولید نکړل. د



انقلاب ټول مخکښان او سرلاري د انقلاب په بهیر کې بې اعتباره او د انقلاب تر تېغ تېر شول او په پای کې داسې څوک پاتې نه شو چې د انقلاب د اتل په توګه راڅرګند شي.

فرانسویان وایي چې دوی د انقلاب د کامیابۍ په لار کې ډېرې قربانۍ ورکړې دي او څرنګه چې د ې انقلاب د نړۍ د خلکو د سیاسي شعور په بیدارۍ کې لویه برخه اخیستې ده او په نړۍ یې نورې ډېرې پېرزوینې کړې دي نو نړیوال باید د فرانسویانو احسان ومني. خو د زوړ پالو او تندروو کسانو د فکرونو د تفاوت په اساس د انقلاب متفاوت تعبیرونه کېږي. د انقلاب د راتلو مخالفان وایي چې انقلابونه د انارکي او ګډوډې د مخنیوي لپاره جوړې شوې پولې او پیدا شوي رواجونه له منځه وړي چې په نتیجه کې دیکتاتوري ته لاره پرانستل کېږي، لکه د فرانسې په انقلاب کې چې همداسې وشول او په اخر کې قدرت ناپلیبون ته په ګوتو ورغی چې د زور حکومت یې وچلاوۀ. خو د دې استدلال مخالفان وایي چې د یوۀ انقلاب لپاره دا ضروري چاره ده چې له ماضي سره رابطه غوڅه کړي او په ټولو ماضي دودونو چلیپا وباسي.

دریم نظر دا دی چې هره ټولنه په خپله ماضي کې ژورې رېښې لري او د نوي پیل لپاره د ټولو پخوانو اړیکو غوڅېدا اسانه خبره نۀ ده. ماضي په هر ډول شرایطو کې پایېدونې ده او په هر ډول حالاتو کې د ټولنې د یوې برخې په توګه ژوندۍ پاتېږي.

د انقلابونو تجربې سیاستوال او روڼاندي له دې سوال سره مخامخ کړي دي چې ټولنه باید د انقلاب په ذریعه بدله شي که د ریفورمونو په ذریعه؟ دا یوه مهمه پوښتنه ده. موږ باید په دې پوښتنه غور وکړو.

# د ډوډۍ خوړلو آداب

د ډوډۍ خوړلو آداب د تمدن له بهیر سره نژدې تعلق لري. د خلکو د خوراک په طریقه کې د دوی د کلتوري سلوک انعکاس وینو.

د انساني تمدن په ابتدا کې چې د آدابو مفهوم نهٔ و او د حفظ الصحې ضرورت نهٔ احساسېدهٔ، خلکو د ډوډۍ پخولو یا خوړلو په وخت پاکۍ او نظافت ته پام نهٔ کاوهٔ خو چې تمدن مخ په وړاندې ګام واخیست، په دې سلسله کې هم بهتري راغله.

په اروپا کې د لرغوني وخت او منځنیو پېړیو د خوړلو آداب تر شپاړسمې پېړۍ پورې په خپل قوت پاتې وو. رنسانس د خلکو د فکر لوری بدل کړ او د دوی په دود بایدهٔ کې یې تبدیلي راوسته. هالنډي عالم اراسموس په ۱۵۳۰ کال کې د آدابو په باب یو جالب کتاب ولیکهٔ. دغه اثر سمدستي د اروپا تر ګردو ډېر خرڅېدونکی کتاب شو او مطبعو په خورا کمه موده کې یوسلو دېرش ځله له سره چاپ کړ. د دې کتاب د محبوبیت یوه وجه دا وه چې اراسموس اروپایانو ته د دوی هغه آداب وروپېژندل چې یو وخت په نادودو کې حساب وو او نامناسب ګڼل کېدل. اراسموس په داسې وخت کې دغه کتاب ولیکهٔ چې د اشرافو په څنګ کې له بورژوا طبقې سره اړوندو خلکو هم په ټولنه کې د حیثیت لرلو احساس پیدا کاوهٔ او غوښتل یې چې ظاهري بڼهٔ او خویونه یې د باکلتوره او مهذبو کسانو په شان وي.



اراسموس د خوړو نامناسبو طریقو ته په ژور نظر وکتل او دا یې وښودله چې دا طریقې باید د نویو ارزښتونو په رڼا کې څنګه بدلې شي. مثلا دهٔ وویل چې ډوډۍ باید په لاس ماته نه شي بلکې (تاسې یې په مناسب ډول په چاړه ټوټه ټوټه کړئ) دهٔ دا نصیحت هم وکړ: په ډوډۍ باندې د وږ سترګو غوندې یرغل مهٔ کوئ.

د اراسموس په زمانه کې له کاچوغو، پنجو او چاړو څخه د استفادې عادت نهٔ وو. په دسترخوان به معمولا ګوته په شمار کاچوغې ایښې وې چې ټولو مېلمنو په شریکه کارولې. اراسموس د دې ستونزې د اوارولو لپاره وویل چې له هر ځل استفادې وروسته دې اول کاچوغه پاکه شي، بیا دې ورنه بل استفاده وکړي. څرنګه چې د ډوډۍ پر مېز باندې به د خوړو ایکې یو لوښی ایښی و، نو هر مېلمه به لوښي ته لاس ټېټاوهٔ او د غوښې ښه ټوټه به یې ور اخیسته. ځینو مېلمنو به لوښی خپلې خوا ته ورکش کړ چې ډېر څه ورنه واخلي. د ځینو نورو عادت و چې د خوړو د لوښي منځ ته به یې کتل. اراسموس له دوی وغوښتل چې له دا رنګه غیرمهذبو، عجیبو، غریبو عادتونو لاس په سر شي. دهٔ یادونه وکړه چې: تر غوښې دمخه وچه ډوډۍ مهٔ خورئ چې ارواوږي به ښکاره شئ. یاد ولرئ چې ترڅښلو دمخه خولهٔ پاکه او تشه کړئ. ځیني کسان دومره غټه ګوله کوي چې بغور یې د پښن د بنۍ غوندې باد وکړي او ځیني نور بیا د خوړلو په وخت شونډې له یوبله بېلې ساتي، له خولې یې د سرکوزي غوندې غږ راوځي. په ډکه خولهٔ څښل او خوړل نهٔ کېدونې ده او نهٔ خوندي طریقه)

په هغو وختونو کې د بشقابونو استعمال هم عام نهٔ و. د مېز په سر به څو دانې کاچوغې او چاړې، د سوپ لوښی او د اوبو جګونه ایښې وو. تر خوړلو دمخه د لاسونو وینځل ځکه ضروري وو چې خلکو ډوډۍ په لاسونو خوړه. اراسموس نصیحت کوي چې د ډوډۍ د خوړلو لپاره باید

یوازې له ګوتو استفاده وشي. احتیاط پکار دی چې ګوتې ونهٔ ښتل شي او نهٔ په جامو پاکې شي. دهٔ لیکلي دي چې دا د ادب تقاضا نهٔ ده چې ډوډۍ په غاښونو راماته او بیا په کتغ پورې شي.

د اراسموس په نظر د ډوډۍ په وخت خبرې اترې پکار دي، ځکه دا کار د ژر ژر خوړلو مخه نیسي او ورو ورو خوړل د هاضمې لپاره ښهٔ دي. دی وایي په ژر ژر او بې بریکه ډوډۍ خوړلو کې خوند هم نشته.

د اراسموس د کتاب محبوبیت ثابتوي چې د هغه وخت غوره طبقو د خوړلو په برخه کې او د ژوند په نورو برخو کې د مهذب اوسېدلو احساس پیدا کړی و. له اراسموسه وروسته ځینو نورو لیکوالو هم د ډوډۍ په آدابو او طریقو کتابونه ولیکل. دوی په دې اړه ځینې داسې جالبو نتیجو ته رسېدلي دي:

۱- د خوړلو په وخت د نورو مخې ته په کاچوغو ټک وټوک او چړپ و چړوپ جوړول نامناسب کار دی.

۲- هغوی چې د خوړو په لوښو غوټې کوي، خوراک یې د خوکانو په شان دی.

۳- ځینې کسان هډوکي چیچي او بیا یې بېرته لوښي ته اچوي چې بې ادبي ده.

۴- د ښځو لپاره به جګ په سر نهٔ اړوي.

۵- هغه څوک چې د ډوډې د مېز د سر په ټوکر باندې پوزه پاکوي یا د ډوډۍ د خوړلو په وخت غاړه صافوي، سمه تربیه نهٔ لري.

د منځنیو پېړیو په اروپا کې د دستمال رواج نهٔ و، خلکو به خولهٔ او لاسونه د مېز د سر په ټوکر پاکول. په اتلسمه پېړۍ کې د رومیال استعمال اول په ایټالیا او بیا په نورو اروپایي هېوادونو کې دود شو. د څورلسم لویي په زمانه کې د فرانسې اشراف د دستمال د لرلو لیوال شول او دستمال د ښه کلتور یو علامت شو. تر ۱۷۰۰ پورې خلکو په لاس ډوډۍ خوړه. کله چې پنجې راپیدا شوې، نو سخت دریځو مسیحیانو ورسره په دې پلمه مخالفت وکړ چې خدای خو د ډوډۍ لپاره ګوتې راکړې دي، دا د ډوډۍ بې حرمتي ده چې په پنجه وخوړه شي. خو پنجه ژر عامه شوه.



# د ازادۍ مبارزه که انقلاب؟

په ابتدا کې د امریکا مورخانو او سیاستوالو خپله مبارزه د ازادۍ جګړه بلله خو وروسته یې خپله خبره بدله کړه ، هغې ته یې د امریکا د انقلاب نوم ورکړ. په دغو دوو اصطلاحاتو کې ښکاره توپیر دی: د ازادۍ جنګ د یوهٔ خارجي استعماري قدرت په خلاف مقابله وي. داسې چې د مستعمرې خلک د استعماري طاقت په ضد راولاړېږي او د ښکېلاک له منګولو د ځان د ازادولو هڅه کوي. خو ، انقلاب د یوهٔ هېواد داخلي موضوع ده چې د شتمن او خوار تر منځ د توپیر په نتیجه کې پېښېږي او یا داسې وي چې د ټولنې ځینې ډلې او برخې د مسلح مبارزې له لارې نظام نسکوروي. انقلاب معمولا سوله ایز نهٔ وي، خونړی وي.

د مستعمرې له خپلواکۍ وروسته هم شاید د استعماري قدرت میراث هورې پاتې شي خو په انقلاب کې په ماضي میراث چلیپا ایستل کېږي او ځای یې له انقلابي ایډیالونو سره سم نوي جوړښتونه نیسي.

د انقلاب او استقلال تر منځ دغو توپیرونو ته په پام سره دا څرګنده ده چې د انګلستان په خلاف د امریکا د مستعمرو پاڅون، انقلاب نه بلکې د ازادۍ لپاره مبارزه وه. خو د نوم دا بدلېدا د فرانسې د انقلاب په وجه وه چې نتیجو یې د اروپا او امریکا خلکو ته الهامونه ورکړل او په دې ډول د انقلاب کلمه نه یوازې محترمه بلکې رومانتیکه هم

شوه او په ټولنه کې یې د ځینو تغییراتو راتلو ته د چمتو کېدو
معناورکړه . امریکایي مورخان چې د وطنپالنې ژور احساس لري، د
امریکا د استقلال د مبارزې د لا مهم ښودلو کوښښونه کوي او خپل
برې په بې عدالتۍ او استبداد باندې برې بولي. د امریکا نامتو
مورخ بنکروفت، د امریکا ازادي د دیموکراسۍ او ازادۍ کامیابي
یادوي او د خدای له لوري د الهام شوي پرمختګ د اوږد مزل د اوج
ټکی یې ګڼي. مګر مترقي مورخان دې نظر ته د شک په سترګه ګوري
او د امریکا د استقلال جنګ د مور وطن په خلاف یو اجتماعي
غورځنګ او د خواصو په مقابل کې د دیموکراتو یو اعتراض ګڼي.
عام خلک چې د ازادۍ په غورځنګ کې شریک وو او د انګلستان په
خلاف مبارزه کې یې برخه لرله، له ازادۍ وروسته پوه شول چې هغه
څهٔ چې دوی له ازادۍ غوښتل هغه د دوی په ګټه نه وو. د یوهٔ نوي ازاد
شوي هېواد د اساسي قانون د لیکلو په مقصد راغونډ شوي لیډران ،
د خلکو دوستان نهٔ بلکې د ممتازو او شتمنو طبقو اړوندان وو چې
یوازې د خپلو شتو او جایدادونو له ساتلو او ژغورلو سره یې
دلچسپي وه.

موږ دغه حقیقت د توماس پین له غیابه معلومولی شو، د هغه چا چې
کامن سینس یې ولیکهٔ او لیکنو یې د انګلستان په خلاف مبارزه کې
لوی سیاسي شعور پیدا کړ. دغه راز د لوی انقلابي لیډر جان هن
کوک او مبلغ سمویل ادام له غیابه پوهېږو چې کیسه څهٔ وه. دغه
کسان د اساسي قانون جوړولو ته دعوت نهٔ شول دلته د ټولنې د
خوارو او محرومو طبقو استازي نهٔ وو. د استازو لوی اکثریت د
ملاکانو، قانون پوهانو، سوداګرو ، بانکرانو او د لویو کاروباریانو



وو. دغو ممتازو او شتمنو خلکو داسې اساسي قانون غوښت چې د
دوی خوبونه رشتیا کړي.

هغه څهٔ چې دغو استازو د اساسي قانون په غونډه کې وویل د امریکا
د آیندې لپاره یې د دوی طرحه منعکسه کړه. مثلا لوی ملاک چارلس
پینکني وړاندیز وکړ چې یوازې هغه څوک د ولسمشرۍ د مقام
مستحق دی چې یو لک ډالره ولري. یوهٔ قانونپوه جیمز موري میسون
وویل چې موږ تر حد زیات دیموکرا ت شوي یو ... راځئ دې ته متوجه
واوسو چې افراط رانه ونهٔ شي

دغو کسانو ته عوام مازې چټللو و پنجو ښکارېدل. دوی له عوامو
وېرېدل او ویل یې: عوام د فکر او دلیل خلک نهٔ دي. د حشرو غونډې
دي، یو ساعت لمر ته ځانونه تودوي بل ساعت چیچل کوي.

دلته داسې عقیده هم وه چې عوام یې د دیموکراسۍ لایق نهٔ بلل. د
نیوانګلینډ یوهٔ روحاني جرمي بکناپ خپل ملګري ته ولیکل: موږ
باید د یوهٔ اصل په حیث دا حقیقت ومنو او ملاتړ یې وکړو چې
حکومت له خلکو سرچینه اخلي خو خلک باید په دې وپوهوو چې
دوی په ځان باندې حکومت کولو ته جوړ نهٔ دي.

د دغسې افکارو نتیجه دا راووته چې د امریکا نوی اساسي قانون د
ممتازو طبقو له ګټو سره سم ترتیب او تنظیم شو. دا د محافظه کارو
یو برې و ، ځکه خو لیبرالو او مترقي عناصرو دغه قانون زرین دام
وبالهٔ. د قانون په لومړنۍ مسوده کې د حقونو لایحه (بیل اف رایټس)
نه وه. په ورپسې دوه کلنه موده کې په قانون کې لس ترمیمه وشول چې
د عبادت، بیان، چاپ، غونډې، ډله ایزې غوښتنلیکنې او وسله
ګرځولو په شمول ځینې حقونه پکې شامل وو. فرانسوي مورخ فرناند
براډل لیکي چې: په ټولنه کې د امتیازونو په تېره بیا د شخصي

شتمنۍ چې واجب الحرمته وه، د ختمېدو سوال نۀ پیدا کېدۀ او
بلکې هڅه کېده چې ثروت ته د رسېدو لاره ټولو ته پرانیستې وي. د
امریکا په څېر یوۀ لوی او کرار ملک کې دا په یقین سره اسانه چاره
وه.
په نتیجه کې خوارو او بې برخې طبقو غبرګون وښود. په ۱۷۸۶-۷
کلونو کې کې شېز بغاوت د دغه غبرګون یو مثال دی چې یو شمېر
بزګرو د ماساچوسټ حکومت د بې عدالتیو په خلاف وسلې ته لاس
وغځاوۀ. په بزګرو باندې د جنګ د ټکس لګول د شورش وجه وه.
بزګرو استدلال کاوۀ چې تاوان به دوی کوي خو ګټه به یې شتمنو ته
رسېږي ځکه شتمنو چې حکومت ته پور ورکړی دی، اوس به د نوي
ټکس پیسې د خپل پور په بدل کې ترلاسه کوي.
شېز بغاوت وځپل شو او ممتازو طبقو په حکومت او دولتي موسسو
باندې خپل کنټرول لا مضبوط کړ.
د امریکا د ازادۍ جنګ شتمنو طبقو ته ګټه ورسوله، نۀ عوامو ته.
سیاسي تغییر یوازې د خارجي واکمنې طبقې ځای داخلي واکمنې
طبقې ته ورکړ. د ازادۍ ګټه د هغو په نصیب شوه چې پخوا یې لا
قدرت او ثروت په برخه وو او له عادي خلکو سره یې د دغو امتیازونو
شریکول نۀ غوښتل.



# بې پرونه دنیا

اروپایانو چې امریکا پیدا کړه دغه موندلې لویه وچه یې نوې دنیا
وبلله. د نوې دنیا په کلمه کې یوۀ نوي عصر او د بشر یوۀ نوي ژوند او
نوي پیل ته هم اشاره وینو.
دا لویه وچه له پخوانۍ دنیا چې له فساد، کرکې، ګناه، جرم او
تعصبه مالامال وه، بېله تصور شوه. نوې دنیا ته لېږدېدلې او مهاجر
شوي کسان لکه د انګلستان کاتولیک او د فرانسې پروتستانت هغه
کسان وو چې په پخوانۍ دنیا کې ځورېدلي او په سپکه سترګه ورته
کتل شوي وو. په دغو دوو فرقو سربېره نورو هغو ډلو او فرقو ته هم
چې په خپلو وطنونو کې نۀ زغمل کېدلې، نوې دنیا د خدای لورېینه
ښکاره شوه. دوی هم د سپکاوي و بې عدالتۍ د ژغورنې په تمه په
هغه لور وکوچېدلې. دغه راز ځینې داسې وګړو د امریکا مخه وکړه
چې د ښۀ او سوکاله ژوند د موندلو لپاره د خطر منلو ته تیار وو. دغه
ټول کسان چې د یوۀ نوي ژوند د پیلولو په نیت امریکا ته راغلي وو،
ماضي ته یې په بده سترګه کتل.
دوی خپل پرون ته د مخ اړولو لېوال نۀ وو، دوی غوره بلله چې خپلې
سبا ته وګوري دا ځکه چې په تېر ژوند کې د خپلو نظریاتو یا
اجتماعي حیثیت په وجه ځورول شوي وو او تېرې خاطرې یې ترخې
وې.

په نوې دنیا کې یو وخت د دوی ذهن په دې ډېر بوخت و چې له بې خونده پرونه څنګه ځانونه وژغوري او خپل نن و سبا څنګه د پرون له شره خوندي وساتي. موږ د مهاجرو دا اندېښنې او نظرونه د هغوی د سیاستوالو او لیکوالو په ویناوو او لیکنو کې لیدلای شو.

مورخ آر. ډبلیو. بي لیویز لیکي چې: زموږ ملي تولد د یوه نوي دوران پیل دی... داسې دوران چې له ماضي مو را بېلوي او له سبا سره مو وصلوي.

نو، د نویو راغلیو کسانو لویه ارزو دا وه چې ځانونه د تېرو کسانو د فکرونو له منګولو ازاد کړي.

توماس جفرسن چې د امریکا د ولسمشر په توګه یې هم کار کړی دی، یو ځل ویلي وو چې د امریکا نن باید له پرونه داسې بېله شي لکه امریکا چې له اروپا بېله شوې ده. موږ باید هر نسل یو بېل ملت وګڼو او مړۀ باید په ژوندیو باندې د حکومت کولو اجازه ونۀ لري.

سوال دا دی چې نوې دنیا ته راغلي خلک ولې له پرون سره وران وو او ولې یې له دې سره دلچسپي نه لرله چې ماضي د خپل ژوند یوه برخه وګرځوي؟ د دې شي یو دلیل دا و چې امریکا ته راغلي اکثره کسان د لوړو طبقو د استبدادي حکومت په لاس ځورېدلي او ځپل شوي غریب خلک وو. د دوی په ماضي کې نه ښې خاطرې وې او نۀ الهام بخښونکې پېښې. نو دوی وهڅېدل چې ماضي هیسته وغورځوي او د هغې ځای روښانه آیندې ته ورکړي چې دوی فکر کاوۀ چې د دوی لارې څارې.

ماضي یوازې د اشرافو او لاسبرو طبقو پکار راتله چې د اصل و نسب په اساس یې د خپل اقتدار اجازه ترلاسه کوله. اصل و نسب ممتازو طبقو ته د نصیب او رسالت احساس ورکاوۀ او دغه احساس د ځان په



ګټه د کمزورو طبقو استثمارولو ته وربلل. د ماضي په اړه دا رنګه تجربو تر لاس لاندې طبقې د ماضي په غلیمانو بدلولې. څرنګه چې په نوې دنیا کې د خپل ژوند د ښۀ کولو یا د اجتماعي دریځ د لوړولو لپاره د پرون تصدیق ته اړتیا نۀ وه نو نویو راغلیو د کامیابۍ لپاره په خپل لیاقت و زحمت تکیه وکړه. دلته نور په کورنۍ او اصل و نسب باندې ویاړ کولو ته ضرورت نۀ و. د دغو خلکو د حیثیت درجه د دوی د کار و ابتکار په ذریعه ټاکل کېده له ځکه خو دوی ته ماضي بې ګټې وه.

ماضي مخالف احساس یو تاریخ ضد تمایل رامنځ ته کړ. هغه څۀ چې انګرېز مورخ جې. ایچ. پلمب(۲۰۰۱-۱۹۱۱) د اروپا په باره کې کښلي د امریکا له حال سره ښۀ سمون خوري: ماضي د کنجکاوي، د نستلجیا، د عواطفو په موضوع بدله شوې ده. د تېر نسل په نسبت اوس د ماضي قوت د ژوند په هر اړخ کې خورا کم شوی دی. په حقیقت کې ډېرو لږو ټولنو د ماضي دومره چټکه تباهي لرلې ده.

نو، لومړنیو امریکایانو چې پرون د ځان لپاره بې فایدې ولید نو خپل نوی ژوند یې په یوه سپینه دړه، بې له دې چې شا ته وګوري، پیل کړ.

له ماضي سره د مېرڅي بله وجه له اروپا سره د پرېکون تقاضا وه. څرنګه چې کابو ټول مهاجر له اروپا راغلي وو، دوی له ځانونو سره اروپایي کلچر او ارزښتونه راوړي وو او دغه شی د امریکایانو د خپل هویت په جوړولو کې لوی خنډ و. بانفوذو طبقو به خپل اولادونه اروپا ته استول چې زده کړې وکړي او باکلتوره شي. د اروپا اثر ډېر پیاوړی و او د امریکا سیاستوال و روښنفکران ژر پوه شول چې د خپلو

اروپايي رهبرو له غوڅولو پرته ورته د امريکايي ملت جوړول ډېر مشکل دي.

همدا علتونه وو چې د امريکايي وطنپالنې د يو نوي احساس پيدا کېدو ته يې لاره پرانيستله او د يوۀ بېل امريکايي کلتور د جوړولو لپاره شعوري هڅې وشوې. په امريکا کې د مورخانو يوۀ نوي ټولي د دغه هېواد د سياسي او اجتماعي موسسو په جوړولو کې د اروپايانو له اغېزه انکار وکاوۀ.

اف. جې. ټورنر وويل چې: د امريکا ديموکراسي د چا مفکر پيداوار نۀ ده بلکې د امريکا له ځنګلونو رابوټېدلې ده.

ويل کېږي چې د کومو ملتونو په اوږو باندې د ماضي بار پروت نۀ وي، هغوی مخ په وړاندې ګوري او په چټکۍ سره وده کوي ځکه دوی نسبت هغو قامونو ته چې شانداره ماضي لري، په روښانه سبا پورې په اسانه زړونۀ تړي. د وياړمنې ماضي لرونکي ملتونه ممکن د پرون خوبونه ويني او نن يې په لټۍ تېر شي. دغسې ملتونه د اختراع او نوښت او د نوي څۀ د ايجاد لپاره نۀ بلکې د احيا او د پرون د راګرځېدو په اړه فکر کوي.

د امريکا د تاريخ په لومړي پړاو کې د نوښتونو او زړو دودونو تر منځ ټکر نۀ وينو ځکه چې هلته ورغليو خلکو جذابه ماضي نۀ لرله. دوی چې په خپل پروني ژوند پسې ګوتې نۀ مروړلې نو په سياسي او اجتماعي ژوند کې يې په ازادۍ سره نوې تجربې وکړې او خپلې موسسې يې له خپلو اړتياوو سره سمې جوړې کړې.

خو اوس د دې بهير لوری بدل شوی دی. اوس امريکا د ماضي څښتنه ده. يوه داسې ماضي چې د دوی په ژوند يې لوی اغېز پروت دی او دوی ته خبرداری ورکوي چې نوې دنيا نوره نوې نۀ ده. نوې دنيا زړېږي او بوډۍ کېږي.



# د يوۀ بغاوت خاطرې

تاسې شايد د سرې کلا د مغولو د کلچر په اړه ووایاست چې مخ په زوال و، د فيوډالي طبقې کلچر و او له وخت سره بې ارتباطه و. مګر دا به منئ چې د تېرو نسلونو په وسيله رامنځ ته شوي دودونه او ارزښتونه يې له ځان سره لرل.

که څۀ هم په دې کلچرکې د خلاقيت سبکه نه وه پاتې او ټولنه يې راکده ساتله خو له کمزوريو سره سره يې فرهنګ او ظرافت درلود، د زغم يوه روحيه او نورو ته د درناوي يو احساس او شعور پکې و. په حقيقت کې دا يو مشترک کلچر و چې د بېلو بېلو قامونو او ولسونو د شريکو هڅو په نتيجه کې ورزل شو او وغوړېدۀ. دې کلتور د ډيلي ټول استوګن د يوې ټولنې د غړيو په شان متحد وګرځول او دا کمال پکې و چې ممتاز طبقات او اشراف له سياسي بې ثباتيو سره سره د ښار له موجود کلتوري او اجتماعي چاپېرياله پوره راضي وو. ځينو يې له خپلو جاګيرونو کافي عايدات تر لاسه کول، ځينو نورو يې په سره کلا کې د خپل کار مواجب و معاشات اخيستل. يو شمېر نورو يې د شرقي هند د کمپنۍ خدمت په صداقت سره کاوۀ او په ټولنه کې يې عزت کېدۀ.

کله چې ښار انګرېزانو ونيو، په نيواکګرو باندې اعتراض ونه شو. خلکو د نوي نيواک په منلو کې مشکل ونه ليد. د انګرېزانو هم ښار په طبعه ولګېد او د دې ځای د کلچر په خپلولو پسې شول. دوی له هندي

مېرمنو سره ودونه وکول، د هندي اشرافو غونډې يې حرمونه جوړ کړل، فارسي او اردو ژبې يې زده کړې او ځينو خو يې ان په دغو ژبو کې شعرونه وويل. دوی د ځايي خلکو غونډې جامې واغوستې او چلم يې وڅکاوۀ. دا د يوۀ نوي انګرېز- هندي کلچر پيلامه وه.

کله چې له ميرټ څخه د ۱۸۵۷ په مي کې باغي سپاهيان ډيلي ته راورسېدل چې د انګرېزانو په خلاف د مغول امپراطور په څنګ کې ودرېږي، د ښار اوسېدونکو دغه ګډوډې خوښه نۀ شوه. د ښار باکلتوره خلکو ته دا سپاهيان غير مدني او غير مهذب کسان واېسېدل. د مغولو د څو پېړيو له زاړۀ کلچره ناخبره توپکيانو ډيلي ته له راتلو سره سم، د سرې کلا شاهي آداب او دودونه تر پښو لاندې کړل. دوی اشرافو يا امپراطور ته لازم درناوی نۀ و زده. دوی په لنډ وخت کې هغه ټول ارزښتونه برباد کړل چې د اشرافيت په طبعه برابر وو.

د بزګرو د دغه لښکر په موجوديت کې هغه سوچه اردو بې اهميته شوه چې په سرې کلا او درباري کورنيو کې خبرې ورباندې کېدلې. د مغولو اشرافو په فرهنګ او دود باندې دا ګوزار، په دوی باندې د دوی تر سياسي ماتې هم لوی ګوزار و، ځکه چې د امتياز او هويت وروستۍ نخښه يې ختمېدله. دې پېښې دوی په روحي مړاويتوب مبتلا کړل او د خپلو اقدارو او کلتور په ساتلو کې يې خپله بې وسي د سر په سترګو وليده.

د باغي پوځ له ماتې وروسته چې ښار بالاخره انګرېزانو ونيو، ښار له بلې تباهي سره مخ شو. برطانوي عسکرو يو مخيزې وژنې وکړې، په ښځو يې تېري وکول او د ښاريانو شتۀ يې لوټ کړل. دا د بغاوت جزا وه.



برطانوي مقاماتو يوازې د خلکو په اعدامولو او لوټلو اکتفا ونه کړه بلکې د ښار د تخليبي حکم يې وکاوۀ. دوی د ښار ودانۍ په سيستماتيک ډول ونړولې. سره کلا يې په عسکري قشلې بدله کړه چې د هغې کلتوري او اجتماعي اهميت ورسره ختم شو. په جامع جومات کې عسکرو واړول. د ډيلي جوماتونه له لمونځ ګزارو تش شول. تاوده بازارونه ساړۀ شول او په تاندو باغونو د بې پامۍ دوړې پرېوتې.

ظهير دهلوي په خپل کتاب (داستان غدر) کې کاږي چې له کابل دروازې رانيولې تر سرې کلا او له جامع جوماته تر ډيلي دروازې پورې، د بيلاقي بېګم د کوڅې، د خانم کا بازار، د خاص بازار، او د خان دوران د حويلۍ په شمول په زرګونو کورونه وران او له خاورو سره خاورې شول. ښار او اوسېدونکو يې دواړو د بغاوت بيه پرې کړه. هغوی چې له ښاره ووتل، په ټول هند کې خوارۀ وارۀ شول. د ښار ليکوال، شاعران، خطاطان، هنرمندان، قصه ويونکي، نڅاګر او سازنده ګان د تاريخ په غبار کې ورک شول.

بغاوت پای ته ورسېد خو هغوی چې ربړېدلي وو خپل ټپونه پټ وساتل او په سکوت کې يې د خپلو خاطرو ساتلو ته ادامه ورکړه. دوی خپل غمونه او خپل زخمونه لکه څنګه چې وو هغسې نه شوای بيانولی. له هيچا سره دا جرات نه وو چې د ليدلي ناورين حال تېر کړي يا يې وليکي خو وروسته بيا دا دردونه د حالي، داغ، ازرده او مير مهدي مجروح په مرثيو او ويرنو کې له ټولو جزيياتو سره منعکس شول.

تاريخ راته وايي چې له هرې لويې واقعې، له هرې داخلي جګړې، بغاوت يا بلوا وروسته، نه يوازې کلتوري او اجتماعي ارزښتونه

بلکې سوله او نيکمرغي هم بربادېږي او د نظم و قانون لاسبري ختمېږي چې ورسره ګډوډي راځي. د کور شتمني نوره د ويار ذريعه نه وي او د هستمن او نېستمن تر منځ توپير کمېږي. د کلتور د ظرافت او نزاکت نخښې له منځه ځي او د پيسو د ټولولو او د نفوذ د موندلو لپاره په کمزورو تالان ګډېږي. خو په داسې حالاتو کې داسې کسان هم وي چې له قربانيانو سره مرسته کوي. په ۱۸۵۷ کې هم همداسې وشول.

له ماتې وروسته چې مغول شهزاده ګان او د کورنۍ غړي يې له سرې کلا راووتل، ځانونه يې بې وسه او بدمرغه وليدل. دوی په کلا کې خوندي ژوند کړی و خو د واقعي ژوند تجربه يې نه لرله.

له ۱۸۵۷ څخه وروسته د مغولو د کورنۍ غړيتوب د شرم خبره شوه.

خواجه حسن نظامي چې له بغاوته دوه ويشت کاله وروسته په ۱۸۷۹ کې دنيا ته راغی، له هغو کسانو څخه چې لا ژوندي پاتې وو، د ځينو مغولو شهزاده ګانو او شهزاده ګيو په اړه معلومات او کيسې راټولې کړې، د هغو شهزاده ګانو او شهزاده ګيو په اړه چې پاتې ژوند يې په بدلو نومونو په ګمنامۍ کې تېراوۀ. د حسن نظامي په ليکنو کې يوه انساني تراژيدي او دغه راز د يوۀ کلچر د مړينې مرثيه لولو. د ۱۸۵۷ پاڅون د يوۀ ښار ځانګړنې او کلتور له منځه يوووړل.



# چنګېزخان

دا د تاريخ د بهير يو ه برخه ده چې اتلان پکې راڅرګندېږي، په تاريخ کې خپلې نخښې پرېږدي او د زمانې له حافظې وځي. دوی يا بېخي هېرېږي او يا که کوم ملت يا اجتماعي ګروپ د خپلو سياسي يا اجتماعي ارزوګانو د پوره کولو لپاره اړتيا ورته پيدا کړه نو يو ځل بيا حافظو ته لاره مومي. په دغسې حالت کې د اتلانو يوه نوې څېره چې په نوي چاپېريال کې د منلو وړ وي، وړاندې کېږي.

مغول واکمن چنګېز خان چې د کابو دېرشو ملکونو په لاندې کولو سره يې خپل قام د ګمنامۍ له تيارو راوايست او د شهرت و افتخار منارو ته يې ورساوۀ، همداسې يو اتل دی. مغولو چې خپل مخالفان ماتول، د هغوی خاورې يې نيولې، د هغوی ښارونه يې ورانول، کتابتونونه يې سوځول او ولسونه يې تر تېغ تېرول، نو د دوی مشر چنګېز چې په خپلو مغلوبو غليمانو يې د وحشت او تباهي بلا نازوله، د خدای د بلا په نوم ياد شو.

د منځنۍ اسيا مسلمانو مورخانو د ماتو ملتونو غمونه او دردونه ثبت کړل او د خپلو کلتوري مرکزونو او پېړيو پېړيو ټول کړي معرفت په تباه کېدو يې ساندې وويلې. د دې وطنونو اکثرو پوهانو نورو مسلمانو هېوادونو ته هجرت وکاوۀ او له ځانونو سره يې د مغولو د بې رحميو کيسې يووړې. د سلطنت په پېر کې د د غو سيمو ځينې

پوهان هندوستان ته هم راغلل او خلک یې د مغولو په لاس له یو مخیزو وژنو او ورانیو خبر کړل. دغه شي د خلکو په ذهنونو کې له چنګېزه یو داسې بې رحمه، وحشي او وینو ته تږی بنیادم جوړ کړ چې د مسلمانانو تمدن ته یې نۀ جبرانېدونکی تاوان اړولی دی. د چنګېز خان په اړه دغه تصور تر څورلسمه میلادي پېړۍ پورې په اسلامي نړۍ کې په خپل حال پاتې و.

خو له بلې خوا د مغولو په منځ کې چنګېز یو خدای ګوتی، یو فوق العاده انسان او یو لارښود شو چې دوی یې نه یوازې شتمن بلکې په تاریخ کې د نوم و نښان څښتنان کړل. د چنګېز نوم او شهرت تر هغو پورې چې د دۀ اولادې د دۀ په لویه امپراطورۍ باندې واکمنې کوله، په خپل حال پاتې و. دې امپراطورۍ یو سلو پنځوس کاله عمر وکړ، وروسته بیا وشړېده، په وړو وړو سلطنتونو بدله شوه، او د چنګېز د شهرت زوال هم پیل شو.

په څورلسمه پېړۍ کې په منځنۍ اسیا کې نوي سیاسي تغییرات راغلل او امیر تیمور (۱۳۳۶- ۱۴۰۵) قدرت ته ورسېد. له دې پېښې سره د چنګیز نوم او کارنامې یو ځل بیا په ځلېدو شول ځکه امیر تیمور د خپل نوي اقتدار مشروعیت ته اړتیا لرله او دۀ د چنګېز په کورنۍ کې د وادۀ په کولو او ځان ته د ګورګان (زوم) په ویلو سره دغه مشروعیت تر لاسه کړ. دې کار د چنګېز خان انځور چې لا تر دې دمه پورې د مرکزي اسیا د خلکو په ذهنونو کې د یوۀ فاتح په توګه پاتې و، د یوۀ لوی اتل او اترناک ستوري په حیث را ژوندی کړ. د هند مغولو واکمنو هم چنګېز خان ته د تیمور د وفادارۍ دود جاري وساتۀ. دغه هندي واکمن په دې ویاړېدل چې د چنګېزخان د قوانینو ساتندوی دي او ادعا یې کوله چې د هغۀ میراث دوی ته پاتې دی.



د وخت په تېرېدو سره چنګېز خان جوړه کړې امپراطوري ټوک ټوک او د دۀ اولاده د هغو ملکونو شوه چې حکومتونه یې ورباندې کول. د چنګېز خپل وطن یو ځل بیا په یوۀ غیر مهم ځای بدل شو. اول تزاري روسیې او ورپسې شوروي اتحاد ته په ګوتو ورغی.

د شوروي له شړېدو وروسته منګولیا د یوۀ خپلواک هېواد په توګه راڅرګنده او د خپل ورک تاریخ د موندلو په لټه کې شوه. دغه وخت چنګېزخان ته ضرورت پېښ شو چې د منګولیا خلکو ته د یو پیاوړي تاریخي او ملي هویت الهام ورکړي. اوس عالمان لګیا دي د څۀ نا څۀ انساني څېرې د لرونکي لایق او ماهر چنګېزخان د تصور په جوړولو کې له منګولیا والو سره لاس کوي.

په دې وروستیو کې جک ویدرفورډ په چنګېز خان باندې خپل خورا عالي تحقیق خپور کړ چې، چنګېز خان او د نوې دنیا جوړېدا، نومېږي. د دغه مورخ په قول، خان په مغلوبو ملکونو کې فیوډالیزم تارومار کړ. د اصل ونسب په اساس د مقررولو تر دود یې د لیاقت په اساس مقررولو ته اهمیت ورکړ، په خپل رعیت یې تر وسه وسه کمه مالیه ولګوله او طبیبان، روحانیون او عالمان خو یې د مالیې له ورکولو بېخي معاف کړل. شکنجه یې منع کړه. د مذهبي ازادۍ اجازه یې ورکړه. د پوستې او احصایې د یوۀ نظام بندوبست یې وکاوۀ. پلونه یې ورغول چې لښکر لېږد اسانه شي، ښارونه یې سره وصل کړل چې سوداګري وغوړېږي، او د یاسا په نوم قانون یې نافذ کړ چې خپل ملت مطیع او د اصولو پابند وساتي.

جالبه دا ده چې چنګېز خان راتلونکو نسلونو ته خپل داسې انځور نه دی پرې ایښی چې د سر په سترګو ولیدل شي. دۀ نۀ انځورګرو ته اجازه ورکړه چې انځور یې وباسي او نۀ یې مجسمه جوړوونکي پرېښودل چې مجسمه یې سازه کړي. چنګېزپه کومې سکې، ډبرې یا یادګاري څلي

باندې هم د خپل نوم د کيندلو اجازه ورنه کړه. کله چې په ۱۲۲۷ کې ومړ، په يوهٔ پټ ځای کې خښ شو. ويل شوي دي چې د دهٔ د ښخېدو د ميدان د پوره اوارولو او د قبر د نخښو د ختمولو لپاره اتهٔ سوه اسونه په ځلونو ځلونو وځغلول شول.

څرنګه چې د چنګېز انځور نشته نو مختلفو ملتونو د هغه په باره کې له خپل تصورسره سم، هغه په بېلو بېلو بڼو انځور کړی دی. ويدرفورد ليکي چې: چينيانو هغه د ستومانو سترګو د يوهٔ مهربان بابا په بڼه چې نرۍ قبضه ږيره لري، ترسيم کړ. دا د يوهٔ قهرجن، بې رحمه، مغول جګړه مار تر انځور د يوهٔ چورتي، چيني حکيم تصويرته ورته دی. په يوهٔ ايراني مينياتور کې چنګېز خان د تخت د پاسه ناست ترک سلطان په شان انځور شوی دی. اروپايانو بيا هغه د يوهٔ بشپړ وحشي بنيادم په څېر چې بې رحمه وحشي، پوره بدرنګې څېره او تېزې خونکارې سترګې لري، انځورکړی دی.

خو د منګوليا د خلکو لپاره چنګېز يو ملي اتل دی. څرنګه چې د دهٔ تصوير نشته نو په منګوليا کې دا خبره د متل غوندې مشهوره ده چې: مورږ دې څېره په تصور کې جوړوو خو زمورږ ذهنونه کاواکه دي.

شايد د دوی ذهنونه نور تش پاتې نه شي. ځکه د چنګېز په اړه يو نوی تاريخي انځور چې د اسنادو په اساس يې يو ملي اتل ښيي، د جوړېدو په حال کې دی.

په دې وروستيو کې لرغونپوهانو د چنګېز په اړه د لازياتو معلوماتو د لرلو لپاره د هغه د قبر د موندلو هڅه پيل کړې ده. که داسې وشول نو د منګوليا ملت به په هغه ځای د يادګار ځلې ودروي.



# نظافت

په کابو ټولو تمدنونو کې شخصي نظافت د روح له پاکۍ سره غوټه و. ځکه خو روحانيونو ته پکار وه چې تر مذهبي مراسمو دمخه ځانونه ووينځي. عادي خلک هم مجبوربدل چې معبد ته تر ننوتو، يا لرغونو خدايانو ته تر سوغات ورکولو او يا مقدسو شيانو ته تر لاس وروړلو دمخه بايد ځانونه پاک کړي.

په لرغوني مصر کې روحانيونو ته پکار وه چې دوه ځله د ورځې او دوه ځله د شپې ځانونه ووينځي. البته، د برونز د زمانې په تمدنونو کې تر بل هر ځای د انډوس وادي د خلکو د نظافت او حفظ الصحې شعور پياوړی و. د دوی د ښارونو په خاورو کې کيندنې را ښيي چې د خپلو کورونو او ښارونو پاک ساتلو ته يې خورا توجه کوله.

په موهنجوديرو کې د هر کور يو حمام و او يو يې کوهی و چې اوبه ورنه راوباسي. ښار يو (لوی حمام) هم درلود. د ماهرانو اټکل دی چې دغه حمام به د مذهبي مراسمو او شعايرو لپاره و.

لرغونپوهانو د يونان په کريټ جزيره کې د پاچا مينوس په ماڼۍ کې د تخت له تالار سره څنګ ته يو حمام موندلی چې تر ميلاد درې زره کاله پخوا جوړ شوی و.

په ويدي عصر کې هنديانو د ختې يا طبقې په اساس باندې کاست نظام ته وده ورکړه. د دې مظبوط طبقاتي نظام يوه پايله دا وه چې د

لوړې طبقې خلکو په تېره بیا برهمنانو نظافت ته خورا اهمیت ورکړ او ان تر هر ځل ډوډۍ خوړلو دمخه به يې ځان وينځۀ او که به داسې پېښه شوه چې بدن به يې د ټيټې طبقې د يو کس له بدن سره ولګېد نو سمدستي به يې غسل کاوۀ چې پاک شي. دوی به پخلنځي ته تر داخلېدو دمخه هم د ځان وينځل ضروري بلل. پخلنځي ته د کور د تر ګردو سپېڅلي ځای په سترګه کتل کېدل.

څرنګه چې اکثره پخواني تمدنونه د سيندونو په غاړه ودان وو نو اوبۀ سپېڅلې شوې. د هندوانو په اند د ګنګا اوبۀ د رحمت لويه منبع وه. دغه عقيده تر اوسه ژوندۍ ده. له هندو اساطيرو سره سم، په ګنګا کې غسل اويا هسې يوه غوپه بنيادم له ټولو کړيو ګناهونو پاکوي.

لرغونو يونانيانو هم د بدن د نظافت چارې ته ډېر پام اړولی و. دوی به خپلو خدايانو ته تر قرباني کولو دمخه همېشه خپل لاسونه وينځل. البته، ځينو يونانيانو په تودو اوبو ځان وينځلو سره په دې پلمه مخالفت کاوۀ چې له سړي نرښځوکی جوړوي او کمزوری کوي يې. سپارټانو ته چې له هلکوانې به لا په سختو نظامي مشقونو بوخت وو، په سړو اوبو ځان وينځل د نارينتوب علامه ښکارېده. څرنګه چې سپارټانو د ژوند د لومړۍ برخې ډېره موده د نظامي مشق په کمپونو کې تېروله نو حکومت يې عمومي حمامونه ودان او رواج کړل چې ټول خلک ورنه استفاده وکولای شي.

په منځي ختيځ کې دود و چې ښار يا قبيلې ته د را رسېدلي مېلمه پښې به يې ورووينځلې ځکه په څپليو کې د راغلي مسافر پښې به له دوړو او چټليو خوندي نۀ وې. په دې سيمه کې د مېلمه د پښو وينځل د مېلمه پالنې نخښه شوه. دغه دود ته عيسی عليه سلام او وروسته



بيا مسيحي بزرګانو ادامه ورکړه. پا پانو به د همدې سنت په پېروۍ د خوارانو پښې وينځلې چې خپله تواضع ثابته کړي.

د يهودو په ټولنه کې تر خوړو دمخه د لاسونو وينځل ضروري وو، ځکه دوی په ناوينځليو لاسونو ډوډۍ خوړل ګناه بلل. خو وروسته بيا د لاسونو وينځل په يهودي ټولنه کې له يوۀ کار او پروګرامه د تېريدلو او لاس اخيستلو سمبول شو. مومږ تر ننه پورې له يوۀ چا يا يوه پروګرامه د مخ اړولو او زړۀ صبرولو لپاره د لاس وينځلو عبارت کاروو.

د لوکسو حمامونو په لرلو کې د روميانو سارى نه و. که څه هم ايرانيانو لوکس او شانداره حمامونه ودان کړي وو خو په دې اړه د دوی په تاريخونو کې ډېر څه نه شو موندلای. روميانو د درې سوه دولس ميلاد مخکې کال شاوخوا د لامبو حوضونه ساز کړل او په همدې لسيزه کې يې د عمومي حمامونو جوړولو ته هم مخه کړه. کله چې په دوه اتيا ميلاد مخکې کال کې امپراطور کلاوديوس اوبلارې (کانالونه) جوړې کړې نو ښارونو ته پريمانه اوبه ورسېدې. کابو ټولو رومي امپراطورانو په ټولنه کې د خپل محبوبيت د زياتولو لپاره عمومي حمامونه ودان کړل. امپراطور دايکلشن (۲۰۵-۲۸۴) په قيمتي مرمرو ښکلې شانداره حمام ودان کړ. د دې حمام په هالونو کې د نامتو هنرمندانو او آرټيسټانو مجسمې او انځورونه ايښې وو. د دې حمام د اوبو ګڼو فوارو هغه د روم په يوې بې سارې ودانۍ او د تجمل په سمبول بدل کړی و.

په روم کې عمومي حمامونو د خلکو د راټولېدو ځايونه شول. دلته خلکو غسل کاوۀ، ملګري يې ليدل، شعرونه يې اورېدل، له

فليسوفانو سره يې خبرې کولې، ډرامې يې ليد لې، او له موزيکه يې خوند اخيست.

د روميانو به هيڅوخت بيړه نه وه چې ژر حمام وکړي. دا يو پوره اوږد پروسيجر و. دروازه وان ته تر غران ورکولو وروسته ، د روم د هر تبعه دا حق و چې د حمام له ټولو اسانتياوو او خوندونو استفاده وکړي. دی بايد په سړو او تودو اوبو باندې د ځان د وينځلو لپاره له بېلو بېلو خونو تېر شوی وای. په اخر کې به دۀ خپل بدن غوړاوۀ. شتمنو روميانو له ځانونو سره عطرونه او مالشونه راوړل چې نوکران يا غلامان يې د دوی په بدنونو وموښي.

حمام د غرمې په يوه بجه پرانيستل کېدۀ او د ماښام تر تيارې پورې به پرانيستی و. ځينو روميانو به کری ورځ په حمام کې تېروله او ځانونه به يې په مختلفو لوبو يا له ملګرو سره په خبرو اترو مشغول ساتل.

روميانو دغه مزې چړچې د هغې شتمنۍ په زور کولې چې په نيول شويو ملکونو کې يې لوټلې. دغه راز د غلامۍ نظام دوی ته اجازه ورکوله چې ډېر وخت ولري او په مزو کې ژوند وکړي، ځکه د کور او نور ډېر کارونه به د دوی د غلامانو په غاړه وو. بالاخره داسې وخت راغی چې له روميانو سره نور د عمومي حمامونو د لرلو امکانات نۀ وو. دا هغه وخت و چې روميانو د نيول شويو ملکونو په غلامانو او شتمنيو باندې اتکا له لاسه ورکړه او دې شي د روم د امپراطورۍ وار په وار زوال ته لاره اواره کړه.



# وصيت

د شخصي ملکيت له رواجېدو سره د وصيت ليکلو دود پيدا شو. ورپسې بيا په پلارواکو ټولنو کې د ښځو لپاره لازمي شوه چې زوی وزېږوي چې د کورنۍ نوم ورسره ژوندی او ملکيت ورسره خوندي پاتې شي.

څرنګه چې د کورنۍ يا سلطنت بې وارثه پرېښودل لوی تاوان حسابېدۀ نو کله کله به د نارينه ځای ناستي د لرلو لپاره پاچايانو او اشرافو څو ښځې کولې. خو که به تر يوۀ ډېر وارثان وو نو ټکرونه او کله کله به کورني جنګونه پېښېدل چې وروستۍ ګټه به د هغه يوه په نصيب وه چې زور به يې ډېر و.

اروپايانو د کورنيو جګړو او لانجو د مخنيوي لپاره داسې قانون جوړ کړ چې ميراث يوازې مشر زوی ته رسېدۀ، نور زامن ورنه محروم پاتېدل.

اروپايي سلطنتي کورنيو د دې قانون پيروي وکړه چې په نتيجه کې يې د پلار د ځای ناستۍ موضوع په دوستانه ډول اوارېده. خو په شرقي سلطنتونو کې چې د ميراث داسې قانون نۀ و د متوفی پاچا وصيت ته ځينې وخت توجه کېده او ځينې وخت بيا سترګې ورباندې پټېدې. نو د سلطنت د ځای ناستۍ موضوع يا د کورنۍ جګړې له لارې اوارېده او يا د تخت وتاج د ټولو مدعيانو د ختمېدو او يوې خواته کېدو په بڼه.

د هند د منځنيو پېړيو په تاريخ کې د پاچا د وصيت د نه منلو ډېر مثالونه پيدا کولای شو. مثلا التمش ( ۱۲۲۶-۱۲۱۱ ) وغوښتل چې د دۀ لور

رضیه دې د دهٔ ځای ناستې شي خو ترکو اشرافو یې وصیت ونهٔ مانهٔ او د هغې د ورور ملاتړ یې وکاوهٔ. په دې خو موږ ټول خبر یو چې سلطنت ته د رسېدو لپاره اورنګزېب (۱۷۰۷-۱۶۵۸) څنګه خپل پلار بندي کړ او خپل ورونه له مخې لرې کړل. په هند کې سیاسي وصیت یا د تورې په زور او یا د سازباز په مرسته عملي کېدهٔ.

د صوفي بزرګانو د وصیت کیسه بیا یو څهٔ بېله وه. په اوله کې د دوی ځای ناستي د کورنۍ له خوا نهٔ نومول کېدل خو وروسته بیا د سجاده نشینو طبقه پیدا شوه چې د پیر یا شیخ د وراثت دعوه یې کوله. دا دعوه په دې استدلال ولاړه وه چې د بزرګ روحي قوتونه یوازې د دهٔ کورنۍ ته لېږدول کېږي نو دا د بزرګ د اولادې حق دی چې د دهٔ په مسند کښېني او معنوي لارې ته یې ادامه ورکړي. خو که د پیر وارثان به زیات وو نو د ځای ناستۍ پروسه همېشه سوله ییزه نهٔ وه.

د واکمنو د وصیت یو بل ډول هغه لارښوونې وې چې دوی به خپلو ځای ناستو ته کولې چې څنګه حکومت وچلوي او د حکومت د بقا لپاره کومې کومې لارې خپلې کړي. مثلا بابر (۱۵۳۰-۱۵۲۶) خپل ځای ناستي همایون ته وصیت وکړ چې په هند کې معبدونه مهٔ ورانوه او غویې مهٔ حلالوه چې د هندوانو مذهبي احساسات ژوبل نه شي. دهٔ همایون ته د مذهبي زغم د پالیسي توصیه کړې وه.

نالیکلې او ژبنۍ توصیې د وصیت څلورم ډول بللای شو. مرګ ته نژدې کس به معمولا د کورنۍ له غړیو او یا خپلو ملګرو غوښتنه کوله چې د دهٔ ځینې ارزوګانې د دهٔ له مړینې وروسته پوره کړي. مثلا بابر له خپل زوی همایونه وغوښتل چې له خپل ورور سره نرم او ښهٔ چلند وکړي. همایون د پلار ومنل او تاوان یې وکړ.

د مذهبي مقاصدو لپاره د جایداد د بېلولو وصیت هم کېدهٔ. شتمنو به د دې لپاره چې خدای ورباندې ورحمېږي او په بله دنیا کې د خپل خیر



خیرات اجر وویني ، د خپل جایداد یوه برخه جوماتونو ، کلیسا ګانو ، معبدونو ، یتیم خانو یا د تصوف د کومې طریقې د مرستې لپاره بېلوله.

وصیت په ټولنه کې د بدلېدونکي تمایل ښوونډوی هم دی. د فرانسې یوهٔ مورخ په فرانسوي ټولنه کې د مذهبي یا غیر مذهبي او سکیولر تمایلاتو د معلومولو لپاره د بېلو بېلو زمانو کابو درې زره وصیتونه لوستي دي. دهٔ د دغو اسنادو له مطالعې وروسته نتیجه واخیسته چې په منځنیو پېړیو کې شتمنو د مذهب تر اغېز لاندې د خپلې ایماندارۍ د څرګندولو لپاره د جایداد لویه برخه مذهبي ادارو ته ورکوله . خو د صنعتي کېدو او سکیولریزم په خپرېدو سره تمایل بدل شو او شتمنو اجتماعي، تعلیمي ادارو او خیریه موسسو ته د خپل جایداد یا پیسو ورکړه پیل کړه.

په دین باندې بې ایمانه کېدل د دې سبب شول چې د بلې دنیا له اجره تمه وشلېږي او دې شي د دې دنیا د چارو د بهترۍ لپاره د جایداد د وقفولو له رواج سره مرسته وکړه. موږ اوس په غربي ټولنه کې د دې تمایل لوی اغېز وینو. په دې ټولنه کې لوی شتمن او صنعت کاران خپل ګڼ امکانات د دنیایي مقاصدو لپاره وقفوي. نن ورځ تقریبا اکثره روغتونونه، پوهنتونونه، د څېړنې ادارې او اجتماعي مرکزونه د دغه ډول پیسو مرسته حاصلوي. په اسلامي ټولنه کې لا تر اوسه د منځنیو پېړیو تمایل وینو او تر دنیایي موسسو مذهبي موسسو ته ورکړه زیاته ده.

د یادولو وړ ده چې د پاکستان د موسس محمد علي جناح وصیت له ټولنې سره د هغهٔ دلچسپي ښیي. دی پخپل وصیت کې د خپلې کورنۍ په غړیو سربېره، یوه ټاکلې اندازه پیسې د بمبۍ او علیګړه پوهنتونونو ته بېلوي چې متاسفانه دغو موسسو ته دا پیسې ورنه کړای شوې. د دهٔ په وصیت سترګې پټې شوې او دا پیسې نورو ادارو ته ورکړ شوې دي.

# ګدایي په تاریخ کې

زموږ کوڅې او بازارونه له ګدایانو ډک دي چې د خیرات او صدقې لپاره له هر چله کار اخلي او پوزې ته یې را رسولي یو. خو ګدایي نوې ښکارنده او پدیده نه ده. موږ په ټول تاریخ کې او ټولو ټولنو کې چې د ثروت وېش پکې نابرابر او د شتمن و غریب تر منځ واټن پکې زیات و، ګدایي وینو.

هغوی چې شتمني لرله، نه یې غوښتل چې نور پکې شریک کړي او هغوی چې بېوزلي وو، د نورو په اضافي شتمنۍ کې یې خپله برخه غوښته. نو په حقیقت کې ګدایي نه بلکې د برخې غوښتنه وه. دا غوښتنه به د وچکالۍ په وخت، د بې روزګارۍ په وخت، په داسې سیاسي او اجتماعي بحرانونو کې چې خلک یې د روزي له ګټلو محروم ول، را څرګندېده. محتاجو کسانو چې به بله لاره نه لیدله نو یا به یې بل ته لاس ونیو او ګدایي ته به یې مخه کړه او یا یې له شتمنو خپله برخه وغوښته.

مورخانو ته معمولاً په بېلو بېلو زمانو کې د ګدایانو فعالیتونه او په دغو فعالیتونو کې د بېوزلۍ له پرابلم سره د ټولنې د چال چلند د انعکاس موضوع دومره جالبه نه ده ښکاره شوې چې څه ورباندې



ولیکي. خو د خورو ورو معلوماتو په اساس اوس هڅه روانه ده چې په تاریخ کې د ګدایي بدلېدونکی حالت انځور شي.

په منځنیو پېړیو کې هم په لویدیځ او هم په ختیځ کې ګدایان، مقدس کسان ګڼل کېدل او ټولنې یې درناوی کاوه. سوالګرو ته د ډوډۍ یا پیسې ورکړه د دیانت او تقوا نخښه وه او دا چاره خورا ستایل کېدله. عقیده دا وه چې خیرات ورکوونکی به په بله دنیا کې د خپلې سخا په خاطر اجر مومي. سوالګر چې د خلکو په مذهبي حساسیت پوهېدل نو د صدقې د تر لاسه کولو لپاره به یې د دین لمن نیوله. سوالګر به کور په کور ګرځېدل چې خیر ټول کړي. د کور مېرمنو به دوی ته ډوډۍ ورکوله او د کورنۍ د نېکمرغۍ لپاره به یې ورته ویل چې دعا ورته وکړي. په سوالګرو باندې د ټولنې لورېینه په اخترونو، جشنونو او مېلو کې چې له یو بل سره د پیوستون او ګډون احساس پیاوړی کېږي، لا زیاته وه.

په هندوستان کې سوالګرو ته د صدقې د ورکړې دود له پېړیو پېړیو راهیسې را روان دی. لویو سوداګرو او اشرافو د ښه نوم او شهرت د ګټلو لپاره له بېوزلو سره مرسته کوله او په خاصو مناسبتونو کې به یې د لنګر (د مفتې ډوډۍ) بندوبست کاوه. پاچایانو او امپراطورانو هم د صدقې ورکړه ضروري بلله.

ابوالفضل په آیین اکبري کې د اکبر پاچا په اړه لیکي چې: په دربار کې د سوالګرو لپاره همېشه پیسې موجودې وي او چې اعلیحضرت هر ګدا ووینې نو خامخا مرسته ورسره کوي.

ځرنګه چې سوالګر بې شتو و او د دنیا د ګټلو لپاره یې منډې نه وهلې نو دوی خدای ته نژدې کسان ګڼل کېدل او دا باور موجود و چې د سوالګرو ښېرا او دعا منل کېږي. په هندي ټولنه کې به یې سوالګر ته د احترام له مخې فقیر (هغه څوک چې د ځان او خپلې کورنۍ د یوازې یوې ورځې خواړهٔ لري)، بابا (پلار یا بوډا)، او ساین (ښاغلی) ویل شوي دي. ځرنګه چې دوی له ټولو دنیایي مسولیتونو او مشکلاتو ازاد ژوند کاوهٔ نو ډېرو کسانو یې د ژوند حسرت کړی دی. رابرت کراولي په ۱۵۵۰ کې یو شعر ویلی چې زموږ له چاپېریال سره اوس هم سمون خوري. دی وایي:

ما د بوټو د دېوال بېخ ته د ناستو دوو ګدایانو اوږدې خبرې واورېدې. د دوی د لېنګیو د زخمونو په لیدو سترګې څورېدلې. په هغهٔ سارهٔ ژمي کې دا یوهٔ وویل چې خدای عادل دی چې داسې یې پیدا کړي یو کنه نو چا به ولې صدقه راکوله.

په عادي ګدایانو سربېره ځینو مذهبي ډلو هم د ګېډې د مړولو لپاره ګدایي کوله. په مسیحیت کې د فرانسیسکن او دومینیکن د مذهبي فرقو پیروان همداسې وو. دوی به ګدایي کوله چې تکیه یې په ټولنه وي او له حکومت او کلیسا مستقل پاتې شي. په بودایانو کې بهکشو داسې ملنګ دی چې دروازه په دروازه ګرځي، ګدایي کوي. ان د تایلنډ د بودایي ملک پاچا په کال کې یو ځل د بهکشو لباس اغوندي او خیرات غواړي.



د دې کار دوه دلیله دي. یو خو ملنګي په انسان کې خاکساري پیدا کوي، کبر ته یې نه پرېږدي، بله دا چې د دنیا مال و مزو چړچو ته په شا اړولو سره بنیادم فرصت مومي چې ټول عمر عبادت و مراقبې ته ورکړي. دا هغه چاره ده چې ټولنه ورته په درنه سترګه ګوري او ملنګان د ټولنې په معنوي مشرانو بدلوي. دغه راز ګدایي د دې سبب کېږي چې ملنګان له دولتي ادارو ازاد واوسي. له دولتي موسسو د ملنګانو ازادي له دولته دا امکان اخلي چې دوی د خپلو سیاسي مقصدونو لپاره استعمال کړي.

په اروپا کې په اوولسمه پېړۍ کې د سکیولریزم د زیاتېدونکي اغېز او د مذهب د کمزورۍ په وجه چې له مړینې وروسته ژوند او ژغورنې باندې باور ورسره دړې وړې شو، د ګدایي په وړاندې د ټولنې په چال چلند کې تغییر راغی. د مذهبي عقایدو په سموالي باندې شکونو د ګدایانو په باره کې ټول تصور بدل کړ.

که به څوک په سوال کولو ولیدل شول، نو د جزا لپاره به سر ورخرېیل کېدهٔ او کله نا کله خو به یې وهل خوړل. د ځینو سیمو خلکو خپلو ښارونو ته د ګدایانو په ورتلو بندیز ولګاوهٔ. ځینو نورو ښارونو د ګدایي خلاف قوانین وضع کړل. د اروپا په ځینو برخو کې د ګدایي مستحقو کسانو ته لایسنسونه ورکړای شول چې په دې ډول د خیرات غوښتلو اجازه هر چا ته نهٔ وي.

په صنعتي دوران کې چې د کار کولو ضرورت تر بل هر وخت ډېر احساس او د روغ بنیادم لپاره کار لازمي وګڼل شو، ګدایان د ټولنې د

اوړو پېټي وګرځېدل. دوی یا بندیخانو ته واستول شول او یا په کار
ځایونو کې ایسار شول. دغه وخت د خیر او صدقې ټول مفهوم بدل شو
او یوۀ سوالګر ته د صدقې ورکولو معنا دا شوه چې په لوی لاس یو
څوک لټ او تیار خوره اموخته کوي. د خلکو زړونو ته دا خبره پرېوته
چې بېوزلو ته د خیرات ورکولو په ځای دا بهتره ده چې کار ورته پیدا
کړای شي. صدقه نوره غیر مذهبي چاره شوه، نه مذهبي.

زموږ په ټولنه کې لا تر اوسه ګدايي ته د مذهبي عقایدو په رڼا کې
لیدل کېږي. دلته سوالګر د صدقې د موندلو لپاره د دین لمن نیسي او
د خیرات غوښتلو لپاره هغه کلمې کاروي چې د خلکو مذهبي
احساساتو ته مخاطبې وي. په دې سیمه کې ګدایان د صدقې لپاره او
واکمن د قدرت لپاره لا تر اوسه پورې د مذهب استثمار ته ادامه
ورکوي.



# زورورې وسلې

خلکو د دې لپاره چې ستونزو ته یې د واک د خاوندانو پام ورواوړي
او په اوارولو کې یې مرسته ورسره وکړي، له بېلو بېلو طریقو او رودو
استفاده کړې ده.

دهرما په هند براعظمګي کې د خپلو غوښتنو د پوره کولو لپاره په
لاسبرې طبقه باندې د فشار اچولو یوه خورا پخوانۍ او اغېزمنه لاره
او ذریعه وه. د دهرما دود داسې و چې زیانمن شوي به د زیان
رسوونکي کور محاصره کړ، څوک به یې نه پرېښودل چې دې کور ته
ورشي او یا ترې راووځي. محاصره به د زیانمن شوي د غوښتنو تر
پوره کېدو پورې روانه وه. دا یو سوله ایز او د عدم تشدد میتود و.
کلابند لوري به د کلابندۍ د ماتولو لپاره معمولا له زوره کار نۀ
اخیست، بلکې خبرې اترې به یې کولې چې ستونزه اواره شي. دغه
دود په تېره بیا په پوځیانو کې عام و ځکه عسکرو ته منظم معاش نه
ورکول کېدۀ او دوی چې به د معاش د تر لاسه کولو لپاره بله لاره ونه
لیده د دهرما لاره به یې خپله کړه.

د دهرما دود په نوې زمانه کې بڼه بدله کړې ده او د ګېراو په نوم په
نوي شکل راڅرګند شوی دی. د نن سبا سیاسي ګوندونه په حکومت
باندې د خپلو غوښتنو د منلو په غرض له دې طریقې کار اخلي. خو په
اوسني وخت کې د قدرت خاوندان د محاصره کوونکو د خورولو

لپاره ډېر ځله له زوره استفاده کوي. همدا وجه ده چې ګېراو نور د سیاسي حقونو د ځرګندولو خامخا سوله ییزه لاره نه ده.

د هندوستان په تاریخ کې ستونزو ته د واک د خاوندانو د پام اړولو بله طریقه د هرتال وه. څرنګه چې په براعظمګي کې کاروبار تر ډېره حده د هندو سوداګرو او دوکاندارانو په لاسونو کې وو، نو د هرتال (اعتصاب) غوښتنه به یې په ټول ملک کې منل کېدله او ان د کلیو دوکاندارانو به په هرتال کې برخه اخیسته او دوکانونه به یې بندول. حکومت چې به دا حال ولید نو مجبور به شو چې د اعتصاب کوونکو غوښتنو ته غاړه کېږدي او د هرتال د بس کېدو خواست وکړي. نن سبا سیاسي ګوندونه او نور بېلابېل ګروپونه د هرتال دودیزه او پخوانۍ طریقه په حکومت باندې د فشار اچولو او خپلو غوښتنو منلو ته د حکومت د رابللو لپاره استعمالوي.

البته، د وخت په تېرېدو سره دلته یو تغییر راغی. اوس د سیاسي ګوندونو فعالین د دوکانونو او د موټرو د تګ راتګ د بندولو لپاره له ګواښ او فشاره کار اخلي چې اعتصاب کامیاب کړي او د خپلې ډلې زور وښیي. کله کله وینو چې دوکانداران او کاروباریان نه غواړي اعتصاب وکړي خو د یوۀ ګوند د امر منلو ته مجبورېږي، اعتصاب کوي.

کارګري اتحادیې او سنډیکېټونه د فابریکو د مالکانو په خلاف د اعتصاب له طریقې کار اخلي. د کارګرو اعتصاب د فابریکې په ساحه پورې محدود وي. دوی کار بس کوي او چا ته اجازه نه ورکوي چې فابریکې ته داخل شي. په اوله کې د فابریکو د کارګرو کاربندي غیر قانوني وبلل شوه او صنعت کارو یې په مقابل کې غبرګون وښود. خو



ورو ورو د کارګرو د اعتصاب حق ومنل شو او کارګر وتوانېدل چې خپل اکثره حقونه د اعتصابونو په ذریعه تر لاسه کړي.

په اوسني وخت کې زده کوونکي، محصلان او د کسبګرو اتحادیې خپلو غوښتنو او حقونو ته د رسېدو لپاره اعتصاب ته مخه کوي. محصلانو په اروپا او امریکا کې د شلمې پېړۍ په شپېتمو او اویایمو کلونو کې د پوهنتونونو ټول جوړښت بدل کړ. په فرانسه کې د محصلانو د ۱۹۶۸ کال اعتصاب د فرانسې دویم انقلاب بلل کېږي.

په پاکستان کې چې د محصلانو په اتحادیو باندې د بندیز لګېدو په وجه د محصلانو ټولنه غیر سیاسي شوې ده نو د محصلانو ځینې خاص ګروپونه د اعتصاب له وسلې د تعلیمي نظام د ریفورم او بهترۍ په ځای تر ډېره حده د یو ډول باج په توګه د خپلو ګروپي ګټو لپاره استفاده کوي.



د واک د خاوندانو په خلاف د اعتراض د ځرګندولو یوه بله ذریعه بایکاټ ده. د دې کلمې په تاریخچې باندې خبرېدا جالبه ده. په نولسمه پېړۍ کې آیرلنډي بزګرانو او د ځمکې اجاره دارانو د پروټسټانټ مذهبو انګرېز ملاکانو په خلاف مبارزه کوله. زمکه والو د باغي بزګرانو او اجاره دارانو د شړلو اراده وکړه. آیرلنډیانو له دې اقدام سره په مخالفت کې (د ځمکې اتحادیه) جوړه کړه او ویې پتېیله چې هر ځمکه وال که بزګر یا اجاره دار وشاړۀ نو په مقابل کې به دوی ټول له نومړي ملاک سره رابطه غوڅوي. له دې فیصلې ورسته هغه لومړنی انګرېز ملاک چې د خپلې ځمکې کرونکي یې وشړل، کېپټین بایکاټ و. بزګرو له دغه ملاک سره رابطه غوڅه کړه او اوس د بایکاټ کلمه د همکارۍ د نه کولو لپاره په پراخه پیمانه استعمالېږي.

سیاسي ګوندونه د خلکو د خپلولو او په خلکو کې د سیاسي شعور
دپیدا کولو لپاره د پامفلېټونو، اعلامیو او بروشورونو د لیکلو او
وېشلو له لارې هم فعالیت کوي. له دې میتوده د امریکا د ازادۍ په
جګړه کې چې د سیاسي پامفلیټونو د وېشلو لپاره (کارسپانډنټ
ټولنه) جوړه شوه خورا اغېزمنه استفاده وشوه. دغو پامفلېټونو د
امریکا په خلکو کې د ملت پالنې روحیه پیدا کړه.

په انګلستان کې د توماس هارډي په نوم یو کس همداسې ټولنه جوړه
کړه او د حکومت په خلاف یې د پامفلېټونو د خورولو لپاره له
پوستي نظامه کار واخیست. حکومت چې د دۀ د کار په اغېزمنتوب
پوه شو نو د دۀ په کور یې حمله وکړه او د ۱۷۹۴ کال د مي په دولسمه
نېټه یې ونیو. په دۀ باندې د خیانت تور ولګېدۀ خو محکمې خوشې
کړ او خلکو یې تود هر کلی وکاوۀ. د بریتانیا حکومت له دې ذریعې
سره د مقابلې لپاره د سانسور پالیسۍ ته مخه کړه. خو دې پالیسي د
پامفلېټ لیکلو حرکت ونه دراوۀ او بې له دې چې ورو شي ادامه یې
ومونده.

د خلکو د سیاسي او اجتماعي تحرک لپاره یوه بله ذریعه پوستر دی.
که د واک خاوندان پوسترونه وشلوي نو سیاسي فعالین د خپلو رایو
د بیانولو لپاره په دېوالونو باندې شعارونه لیکي. او بالاخره خلک په
سړکونو باندې د خپل زور د ښودلو او خپلو غوښتنو اورېدلو ته د
حکومت د اړباسلو لپاره مظاهرې کوي.



# د جلاوطنۍ سیاست

د لرغوني یونان ښار- دولتونو چې د دیموکراسي، اولیګارشي او
مونارکي نظامونو لومړۍ تجربې کولې نو له سیاسي ګډوډیو، د بشپړ
واک له ناسمې استفادې او په لویه پیمانه مالي فساد سره هم مخامخ
شول.

د سیاستوالو او واکمنې طبقې د دغسې نادودو د کنټرول لپاره د ښار-
دولتونو اتباعو دا رواج کېښود چې په درغلۍ لړلي سیاستوال به لس
کاله په جلاوطنۍ کې تېروي دا تېره ځکه کېښودل شوه چې سیاست له
ناپاکۍ خوندي شي او هم نور هغه کسان چې په قدرت کې پاتېدۀ
غواړي، درغلۍ ته زړۀ ښه نکړي.

موږ داسې مثالونه په کابو هر تمدن کې موندلی شو. د جلاوطنۍ سزا نۀ
یوازې بدنامو او بې اعتباره شویو سیاستوالو ته ورکول کېده بلکې
هغو کسانو هم لیدله چې د ټولنې اجتماعي، کلتوري او مذهبي اقدارو
ته یې خطر پېښاوۀ.

په روم امپراطورۍ کې اګوستوس، چې د کلکو اخلاقي اصولو په اساس
یې د رومي ټولنې اصلاح غوښته، خپله لور جولیا جلاوطنه کړه. د جولیا
لیبرال او په جنسي لحاظ بې باک چلند د امپراطور اګوستوس د خجالت
سبب ګرځېدۀ.

یو بل مثال د نامتو شاعر اوید دی چې په رومي ټولنه کې ډېر منلی کس و
خو له شاعرۍ سره د اوید مینې له هغو اخلاقي پولو تېرې کاوۀ چې د روم

اداري ټاکلي وو. اګوستوس له لمسوونکي شاعرۍ څخه د اوید د راګرځولو بله لاره ونه لیده، جلا وطنه یې کړ.

د اګوستوس دغه پیل کړي دود ادامه وموندہ او د دهٔ ځای ناستو، نامتو فیلسوف سنیکا، چې د بشپړ قدرت په خاوندانو یې نیوکې کولې، له رومه وشاړهٔ. سنیکا د نرون په زمانه کې روم ته د تلو اجازه وموندہ خو بیا هم مجبور شو چې دغه ښار پرېږدي او پاتې ژوند په جلاوطنۍ کې تېر کړي. دهٔ په جلاوطنۍ کې خودکشي وکړه.

د مسلمانانو په تاریخ کې هم د جلاوطنۍ ډېر مثالونه موندلی شو. حضرت ابوذرغفاري ته وویل شول چې له وطنه ووځي. دهٔ په شتمنو باندې د ډېر ثروت د غونډولو په خاطر نیوکه کوله.

جلا وطني دوه ډوله ده. یو دا چې واکمن او لاسبرې طبقه ځینې کسان ځانونو ته خطر وګڼي او له وطنه یې وشړي. دې ته اجباري جلاوطني وایو، خو بل ډول یې اختیاري ده. داسې چې ځینې کسان په خپل وطن کې ځان په امن کې نه ویني او یا د مستبد حکومت په خلاف ازادې څرګندونې نه شي کولای، نو په خپله خوښه له ملکه ووځي.

په اوسنۍ زمانه کې د دواړو ډولونو جلاوطنیو ګڼ مثالونه مومو. کارل مارکس د خپلو سیاسي نظریو او انقلابي فعالیتونو په خاطر نه یوازې له پلارني هېواده بلکې له فرانسې او بلجیمه هم وشړل شو. په اخر کې یې په انګلستان کې سیاسي پناه تر لاسه کړه او پاتې ژوند یې هورې تېر کړ. د نولسمې پېړۍ یو بل مهم کس د استریا صدراعظم میترنیخ و چې له خپل وطنه وتښتېد او په انګلستان کې یې پناه واخیسته. په معاصره زمانه کې انګلستان، هم هغو کسانو ته سیاسي پناه ورکړه چې خپلو حکومتونو له وطنونو وشړل او هم یې هغه کسان په خپله غېږه کې ومنل چې د سیاسي دلایلو په وجه په خپله خوښه له وطنه ووتل.



د روسیې د تزارانو په استبدادي دور کې ځینې سیاستوال په خپله خوښه له هېواده ووتل چې سیاسي فعالیتونو ته ادامه ورکړای شي. لینین او په سلګونو نور کسان په تزاري دور کې په خپله خوښه له روسیې ووتل او تر هغو پورې کله په یوهٔ او کله په بل اروپايي هېواد کې سرګردانه وو چې لومړي نړیوال جنګ وطن ته د ستنېدو او د خپل انقلابي دوران د پیلېدو فرصت په ګوتو ورکړ.

کله چې په جرمني کې هیټلر قدرت ته ورسېد او د نازي ایدیالوژۍ په اساس اداره یې جوړه کړه نو یو شمېر ساینسپوهانو، مفکرانو، لیکوالو او هنرمندانو د خپلې خوښې جلاوطني غوره کړه. د جرمني پوهنتونونه تش شول ځکه لویو پروفیسرانو ملک پرېښود او د پوهنتونونو روڼاندي ژوند مړاوي شو. ځینې جلا وطنه جرمنیان له جګړې وروسته خپل هېواد ته ستانهٔ شول خو متحدانو نامتو لیکوال برتولت برشت ته اجازه ورنکړه چې لویدیځ جرمني ته ورشي ځکه نو هغه په ختیځ جرمني کې دیره شو.

په هندوستان کې د انګرېزانو د استعمار په وخت ګڼو هغو انقلابي او راډیکالو کسانو چې په هېواد کې یې د خپلو سیاسي فعالیتونو د ادامې په مخ کې خنډونه لیدل، په خپله خوښه جلاوطني غوره کړه. دا جلاوطنه لیډران اروپا، اسیا او امریکا ته لاړل او د استعماري حکومت خلاف یې خبرې وکولې.

په اوس وخت کې د اسیا، افریقا او لاتیني امریکا هغه سیاستوال، روڼاندي او فعالان چې مستبد رژیمونه ګواښي، یا خو له خپلو وطنونو په زور شړل شوي او یا په خپله خوښه وتلي دي چې خپلو هڅو ته ادامه ورکړي. د جلاوطنۍ د بهیر مخه یوازې په دیموکراتو ټولنو کې نیول کېدای شي ځکه دیکتاتوران او مستبدان هیڅ ډول اپوزیسیون نه زغمي او له مخالفانو څخه د ځانونو د خلاصولو په لارو چارو پسې ګرځي.

# خاین او اتل

تاریخ اکثره وخت د نشنلیزم تر اغېز لاندې لیکل کېږي. تاریخ د اتلانو او خاینانو له کیسو ډک دی. نشنلستې تحریکونه خپلو مقصدونو ته د رسېدو لپاره اعلی مثالونو ته اړتیا لري چې نوی کهول هغوی ته وګوري او په پل یې پل کېږدي.
هغه وګړي چې د ملت له مقصد او ګټو سره جفا کوي د خاین نوم ورکول کېږي او د ملت د غلیم په توګه یې غندنه کېږي. موږ دغه شی د سند د تاریخ په ناسیونالستي تعبیر کې وینو. د سند د تاریخ ناسیونالستي شرحه راجا داهر (د سند د سیمې وروستی هندو مذهبه پاچا چې اموي جنرال، محمد بن قاسم یې سلطنت ورختم کړ. ژباړن) د خپل هېواد او ملت د مدافع په توګه ستایي او محمد بن قاسم د تیریګر او یرغلګر په توګه معرفي کوي.
موږ دغه راز په دې تاریخ کې هشو شیدي (چې نوم یې هوش محمد شهید شو ) د یوه اتل په څېره کې وینو چې د ډبې په جګړه کې یې له انګرېزانو سره په مېړانه مقابله وکړه او سیت نوامل یو خاین راښکاري چې له انګرېزانو سره د سند په نیولو کې همکارو.
په حقیقت کې د تاریخ دغسې تعبیر د اوسني سیاسي حالت انعکاس دی چې سندهي نشنلستې د مرکزي حکومت د غلبې مخالفت کوي او هر هغه سیاستوال خاین بولي چې د مرکزي حکومت د پالیسیو ملاتړی دی.



کمیونالیزم ( د مذهب او توکم په بنیاد سکتاریزم، فرقه ګرایي ) یو تیوریکي چوکاټ دی چې د قومي یا مذهبي هویت د نوي تعبیر لپاره، تاریخ د خاین او اتل په اساس جوړوي. کله چې د شلمې پېړۍ په شلمو کلونو کې په هند براعظمګي کې کمیونالیزم راڅرګند شو نو هندو او مسلمانو ټولنو خپل خاینان او اتلان د تاریخ له پاڼو راو ایستل. د مسلمانانو لپاره محمد بن قاسم، محمود غزنوي او محمد غوري هغه اتلان شول چې هندوانو ته یې ماته ورکړه او په هند کې یې د مسلمانانو د حکومت اساس کېښود. دوی فاتحان او تنګیالي وبلل شول او د دوی په پوځي بریاوو هندي مسلمانان وویاړېدل او ونازېدل. له مسلمانو اتلانو سره د مقابلې لپاره د هندوستان هندو مذهبه ټولنې رانا پره تاب او شیوا جي د زړۀ ورو کسانو په توګه وړاندې کړل چې د مسلمانانو د سلطې په مقابل کې را پاڅېدل او هندوانو ته یې له لاسه وتلی ویاړ بیا ور په نصیب کړ.
وروسته بیا د انګرېزانو د استعمار د دورې په تاریخونو کې موږ برطانوي فاتحان او د امپراطورۍ جوړونکي لکه رابرټ کلایف، ورن هسټنګز او کارنوالیز وینو چې د اتلانو مقام ته خېژي او سراج الدوله، ټیپو سلطان، واجد علي شاه او بهادر شاه د فاسدو، عیاشو، متعصبو، او نالایقو واکمنو مقام ته، چې د ختمېدو وړ دي، راکوزېږي. د دغو واکمنو دا ډول انځورېدا راته وایي چې د دوی نسکورېدل او قدرت ته د انګرېزانو رسېدل یو منطقي او معقول کار و چې وشو.
وروسته له ۱۸۵۷ کاله چې د بغاوت تاریخ ولیکل شو، انګرېزانو نوي اتلان هم راوړاندې کړل چې له باغیانو سره وجنګېدل او هغوی ته یې ماته ورکړه. نیکلسون، هنري لاورنس، او هوډسن د استعماري حکومت ژغورونکي او اتلان شول خو هغوی چې د دوی د واک په خلاف وجنګېدل د جنایت کارو او خاینانو په توګه وغندل شول. د جانسي راني

( د جانسي سيمې واکمنه )، بېګم حضرت محل، نا نا صاحب، تانتيا توپ، منګل پنډې او عظيم الله د انګرېزانو په خوښه ليکل شوي. دې تاريخ کې د خاينانو ځای وموند. خو د نشنلستې غورځنګ په دوران کې او د براعظمګي له ازادۍ وروسته، کيسه سرچپه شوه، د ۱۸۵۷ د پېښې خاينانو او اتلانو خپل ځايونه يو بل ته ورکړل.

د تاريخ په نوي تعبير کې باغيان او شورشيان اتلان شول او د استعمار د زمانې اتلان هغه بد زړي کسان وبلل شول چې د هند د ازادۍ جګړه يې په بې رحمۍ سره وځپله.

مورخ قاسم قريشي د ډيلي د محاصرې په ورځو کې برطانوي افسرانو ته د هندي جاسوسانو استولي ليکونه چې د باغيانو د کمزورۍ په اړه معلومات پکې شته، خپاره کړي دي. دغو معلوماتو له انګرېزانو سره د بغاوت په ځپلو کې مرسته وکړه. حکيم احسان الله خان، الهي بخش، جيون لال، او د نورو جاسوسانو يوه کوربه چې په منظم ډول به يې انګرېزانو ته معلومات ورکول، د باغيانو له مقصد سره جفا کړې او ان(د وروستي مغول پاچا بهادر شاه مېرمن) زينت محل په دې تورنه شوې ده چې له انګرېزانو سره يې مرسته کوله چې ګوندې د دې زوی په تخت کښېنوي.

دا رنګه پېښې يو مهم سوال را ولاړوي: وګړي ولې له خپل ملت يا هېواد سره خيانت ته زړه ښه کوي؟

يو علت خو حرص او د ډېرو پيسو د لرلو اسره ده چې پاتې ژوند په مزو او اسوده ګۍ کې تېر شي. خو دلته داسې مثالونه هم شته چې شتمنو کسانو له خپل ملک يا واکمن سره خيانت کړی دی. مير جعفر همداسې يو څوک و چې د سراج الدوله په خلاف يې دسيسه وکړه او د شرقي هند د کمپنۍ په لور ودرېد. دی د کمپنۍ د دې خدمت په بدل کې د بنګال نواب شو. د مير جعفر خيانت د سياسي قدرت د حصول او د اقتدار لپاره و.



البته، دی ژر له کمپنۍ مايوسه شو ځکه انګرېزانو يې د اقتدار درناوی ونه کاوه او چې بې فايدې يې وليد د ده ځای يې مير قاسم ته ورکړ.

له ټيپو سلطان سره بيا مير صادق خيانت وکاوه. ميرصادق په دې تمه و چې انګرېزان به ښه انعام ورکړي. په مير صادق سربېره ځينې نورې مسلمانې اشرافي کورنۍ هم وې چې ټيپو سلطان او د ده کورنۍ ورته تر ځان ټيټ ښکارېدل او د ټيپو سلطان د حکومت د ړنګولو لپاره يې د ده له غليمانو سره مرسته وکړه.

ځينې کسان د کسات اخيستلو لپاره هم خيانت کوي. مثلا د سيټ ناومل پلار چې په سند کې د تالپور کورنۍ د واکمنۍ په وخت بندي او په زور مسلمان او سنت شو، نو زوی يې د پلار بې عزتي هيڅوخت هيره نه کړه او چې فرصت په ګوتو ورغی، له انګرېزانو سره يې همکاري وکړه چې سند ونيسي.

په اوسني وخت کې موږ د خيانت لپاره نور علتونه هم مومو. اوس په تېره بيا په هغو هېوادونو کې د خيانت مثالونه زيات موندلای شو چې هلته ديکتاتوري وي او له خلکو سره ستم کېږي. نو له داسې حالته د تېښتې لپاره ځينې کسان غوره ګڼي چې له خپل هېواد سره خيانت وکړي او پيسې وګټي او په هغو پيسو پاتې ژوند په بل هېواد کې په کراره تېر کړي. د دې ډول خيانت يو مثال هغه عراقي پيلوټ دی چې د ۱۹۶۷ د جګړې تر پيلېدو دمخه يې ميګ الوتکه اسراييل ته وتښتوله او اسراييلو ته يې د شوروي ساخت مېګ الوتکو د تخنيک په اړه پوره معلومات ورکړل. اسراييلو له دغو معلوماتو په جګړه کې استفاده وکړه. پيلوټ په بدل کې يو ميليون ډالره انعام واخيست.

# جنت په تاریخ کې

په پهلوي ژبه کې فردوس داسې باغ ته وایي چې دیوالونه ورنه تاو دي، د میوو له ونو، ګلونو، فوارو او مرغانو ډک دی. ښځې او نارینه پکې له یو بل سره خوشحاله ژوند تېروي.

په عربي کې هم جنت د ونو باغ ته وایي، او یا داسې وړه ساحه چې کجورې پکې ولاړې وي.

د یونانیانو ، یهودو او عیسایانو په ټولنو کې د جنت په اړه درې بېل تصوره موجود دي. یو ګومان دا دی چې وو نه وو یو وخت په همدې خاورینه مځکه باندې زرینه زمانه وه. په زرینه زمانه کې وګړیو له یو بل سره نهٔ جنجال کاوهٔ، نهٔ رقابت، او نهٔ یې له یو بله کرکه کېدله. د ټولو ښځو او نارینه وو بې کړپه ، خوشحاله ژوند و. د خوړو پریماني وه. راچاپېره طبیعت له رنګونو او ښایستونو مالامال و. د انسانانو په ټولیزه او شریکه حافظه کې د طلایي عصر خاطرې خوندي دي، ځکه خو بشر په هغه وخت پسې چې بې کشمکشه، کرار ژوند یې کاوهٔ، سرې ساوې باسي.

د جنت په اړه بل تصوردا دی چې دلته په مځکه باندې داسې ټاپوګان وو چې بشر پکې بې خاره، بې جنجاله، ارام ژوند تېراوهٔ.

دریم تصور جنت د الیزې د میدانونو (الیزین فیلډز) په بڼه انځوروي. په دې ځای کې دنیایي پرابلمونه نشته او د تلپاتې کرارۍ پلوشې خپرې دي.



د زرینې زمانې په اړه رومي شاعر هیسیود وایي چې په هغه وخت کې انسان: د خدایانو غوندې په بې غمه زړهٔ ، بې زیاره او بې کړاوه ورځې شپې تېرولې.

افلاطون په خپل کتاب (سیاست) کې زرینه زمانه د کرونوز (په یوناني اساطیرو کې د وخت رب النوع چې انسانان د دهٔ په وخت کې پیدا شول. ژباړن) د واکمنۍ زمانه یاده کړې ده چې هلته: د مېوو پریماني وه او خلکو ډېروخت په ازاده هوا کې، بې جامو، بې بسترې او بې برستنې ژوند کاوهٔ.

راوروسته بیا د مسیحي دین عالمانو د مځکې په سر چېرته لرې، نا معلومه سیمه کې د یو داسې خاورین جنت په وجود تاکید وکاوهٔ چې د بشر له ګوتو وتلی دی. دې جنت ته یوازې ځینو کسانو له خاصې اجازې وروسته لاره موندلې ده. له یوهٔ بل لید لوري سره سم، خدای پاک خاورین جنت اسمان ته خېژولی او انسان یوازې له مړینې وروسته دا چانس لرلای شي چې ورشي.

په منځنیو پېړیو کې مسیحي علماوو عقیده لرله چې مځکنی جنت د عدن باغ دی چې په خاورینه کره باندې چرته پروت دی. په ۱۱۶۵ میلادي کال دا عقیده عامه وه چې د عدن باغ په اسیا کې د پرسټر جون(دا د اروپایانو یو افسانوي شخصیت دی چې ویل کېدل په اسیا کې د مسلمانانو او غیر مسیحیانو په منځ کې پټ یوهٔ عیسوي قام باندې واکمني کوي. ژباړن) په قلمرو کې او یا په یوهٔ نامعلوم ټاپو کې دی. دغو باورونو او ګومانونو د خاورین جنت د لټون او په بحر و بر کې د اکتشافاتو شوق پیدا کړ.

کله چې امریکا وموندل شوه ځینو کسانو خاورین جنت په برازیل کې ولید او ځینو نورو په کپ هرموسو کې. امریکګو وسپوشي(د فلورانس

سوداګر او سمندر ګرځی و. په ۱۴۵۱ کې دنیا ته راغی. یو شپېتهٔ کاله
یې عمر وکړ. دهٔ د پرتګال د پاچا په خدمت کې څو ځله نوې دنیا ته
سفرونه وکړل. ځینې کسان وایي چې د امریکا نوم د دهٔ له نومه
اخیستل شوی دی، خو اکثره کسان دا نظر نه مني. ژباړن) په خپل یوهٔ
لیک کې کاږي چې: مهربانه خاوره، په خورا دنګو بې شمېرو ونو
پوښلې، داسې ونې چې پاڼې یې کال دولس میاشتې شنې دي، خوږ
و معطر بوی ورنه خپرېږي، او مزه ناکې مېوې یې په ځانګو زانګي
چې صحت ورسره ښه کېږي. د ګڼو وښو یو شین میدان چې له ګلونو
مالامال دی او په زړهٔ پورې خوشبویي یې سپړمې نازوي. د ډول ډول
مرغانو لوی لوی سیلونه چې د ښکو، رنګونو او غږونو د بیان قدرت
یې له چا سره نشته. زما په نظر، زهٔ د خاورین جنت په څنګ کې وم. )
په منځنیو پېړیو کې برابرې شوې نقشې، د خاورین جنت احتمالي
ځایونه راښیي. له دغو نقشو سره سم، خاورین جنت په ایتوپیا کې، یا
په عراق، ارمنستان، فلسطین یا جنوبي امریکا کې دی.
مسیحي عالمانو په دې هم بحثونه کړي دي چې خدای پاک جنت کله
خلق کړ او ادم و حوا یې څهٔ وخت ورنه وایستل. دوی د ادم وحوا د قد
په اړه او د خلقت په وخت کې د عمر په اړه نظرونه څرګند کړي دي او
په دې یې غور کړی دی چې ایا په جنت کې ناورغي وه؟ او ایا ادم و
حوا په جنت کې څهٔ کار کاوهٔ که وزګاره وو؟
مارتین لوتر(د شپاړلسمې پېړۍ د لومړۍ نیمایي عیسوي عالم چې د
پروتستانت مذهب اساس یې کېښود ) استدلال وکړ چې که ادم وحوا
ګناه نه وای کړې نو انسانانو به په مځکه باندې زحمتونه نهٔ ګالل،
کتاب ته به یې اړتیا نه وه، د ابدي حکمت خاوندان به وو.



دغه وخت یو بل سوال پیدا شو چې د جنت ژبه کومه وه؟ ځینو وویل
چې عبري تر ګردو پخوانی ژبه ده او په همدې دلیل خدای پاک له ادم
سره په عبري خبرې کړې دي. خو دې ځواب د بېلوبېلو ملکونو
نشنلستان خوشحاله نکړل. دوی هڅه وکړه چې دا ثابته کړي چې په
جنت کې سویډني، دنمارکي او فنلنډي ژبې چلېدلې.
په جنت کې د نر او ښځې د برابرۍ پوښتنه هم راپورته شوه. ځواب دا و
چې که حوا بې بې، ادم علیه سلام ګناه ته نه وای لمسولی نو بیا به د
دواړو حیثیت مساوي و. خو د حوا رول د ښځو درجه راټیټه کړه. البته
د ښځو د دویم درجه ګڼلو لپاره دا استدلال هم وشو چې دا د فطرت
تقاضا ده چې حوا باید د ادم اطاعت کړی وای.
څرنګه چې په فیوډالي اروپا کې شخصي جایداد مقدس تصور شوی
و نو دا سوال راپیدا شو چې ایا په جنت کې شخصي ملکیت و؟ د دې
پوښتنې په ځواب کې سنټ امبروس(د څلورمې پېړۍ مسیحي عالم،
ژباړن) ویلي وو چې په جنت کې شخصي جایداد ته اړتیا نه وه. خو په
اوولسمه پېړۍ کې په دې نظر کې اصلاح راغله او وویل شول چې که
به چا له یوې ونې د مېوې د ټولولو حق درلود نو د دې ونې د ملکیت
حق هم ورسره و او چې خبره داسې وه نو که له دهٔ بل چا دا مېوه تروړلې
وای، هغه ګناه کوله.
دغه نظرونه راښیي چې د خصوصي ملکیت موسسه په ټولنه کې پوره
پیاوړې شوې وه او کلیسا یې ملاتړ کاوهٔ.
په اوولسمه پېړۍ کې اروپایي عالمانو په بایبل( مقدس کتاب ،
تورات و انجیل ) او د خلقت په اړه د بایبل په نظریې نیوکې وکړې چې
په خاورین جنت باندې باور ورسره کمزوری شو او د ورک جنت د
موندلو په ځای په مځکه باندې په خپل لاس جنت جوړولو ته پام

واوښت، نو داسې باغونه ودان شول چې د جنت په اړه د بشر تر پخوانو تصوراتو ښکلي وو.

په اروپا کې، په ۱۵۳۳ کې په ونیز کې، په ۱۵۴۵ کې په پداوو کې، په ۱۵۴۶ کې په پیزا کې او په ۱۵۷۵ کې په پاریس کې د ونو، بوټو باغونه کېښودل شول.

په هند براعظمګي کې مغولو یو شمېر جنت نظیره باغونه کېښودل چې ونې، فوارې، ویالې او ګلونه یې لرل او دوی به په فخر سره دعوه کوله چې که د مځکې په مخ جنت وي نو همدا ځای دی، همدا ځای دی، همدا ځای دی.



# زور او مذهب

په سیاست باندې مذهب معمولا هغه وخت غلبه کوي چې دولت او موسسې یې کمزورې وي. کله چې حکومت د خلکو د اړتیاوو په پوره کولو کې پاتې راشي او د خارجي و داخلي خطرونو په مقابل کې د خلکو د ساتلو وس ونه لري نو دغه وخت مذهبي عناصر چې له فاسد سیاسي نظامه د ټولنې د ژغورلو او د عدالت د راوستلو خبره کوي، د قدرت د حصول په لور ګام اخلي. په دغسې حالت کې مذهب په سیاست لاسبری کېږي او د خپلو شعایرو د عملي کولو ذریعه ورنه جوړوي.

مذهب په سیاست باندې له دوو لارو غلبه کوي: یوه لاره دا ده چې واکمن د ځان په ګټه او د خپلې کورنۍ د قدرت د ټینګښدا لپاره شریعت نافذوي او دیني علماوو ته اجازه ورکوي چې د دولت په چارو کې لویه برخه ولري. دویمه لاره دا ده چې دیني عالمان د سیاسي قدرت له ترلاسه کولو وروسته مذهبي حکومت جوړوي او خلک اړباسي چې د دوی مذهبي اجنډا ومني.

دغسې مذهبي حکومتونه که په شرق کې جوړ شوي دي یا په غرب کې، د جوړوونکو یې باور و چې بنیادم یوازې د زور له لارې او د عملونو د څارنې له لارې اصلاح کېدای شي. ځکه خو دغو حکومتونو د سوچه ټولنې د جوړولو لپاره په وړو وړو جرمونو هم سختې سزاګانې ورکړې دي چې خلک عبرت واخلي. دا باور هم و چې دنیایي

واكمنان فاسد او شرير دي، له همدې كبله يوازې مذهبي علما په صداقت سره حكومت كولای او خلكو ته خير رسولای شي.

د اروپا د جينوا ښار- دولت چې موسس يې مسيحي اصلاح غوښتونكی او ريفورميست كالوين (په ۱۵۹۹ كې مړ) و، د هغو نظامونو يو مثال بللی شو چې سياست وركې د مذهب مربی وي. كالوين د سياسي قدرت له حصوله وروسته د خپلو مذهبي نظريو د عملي كولو په دريځ كې و. د دۀ لومړني كار د ښار اوسېدونكو ته دا اعلان و چې كه هر څوک يې د نظريو پلوی نه دی، له ښاره دې ووځي. هغوی چې په ښار كې پاتې شول، په لويو يا وړو ګناهونو او خطاوو يې خورا سختې جزاوې وليدلې. په دغو جزاوو كې تكفير، له ښاره شړل، قيد او اعدام شامل وو.

د كالوين په امر د ښار ټول هغه هوټلونه او مېلمستونونه چې مېلمنو ته يې د سكس اسانتياوې برابرولې، بند شول. هر سوداګر او دوكاندار ته چې تقلب يې كاوۀ يا يې په تله كې ډنډې وهلې، سخته جزا وركول كېدله. په بې باكو بازاري سندرو او قطعه بازۍ بنديز ولګېد. امر وشو چې مقدس كتاب بايد په هر مهم ځای كې ايښی وي. كه به څوک وليدل شو چې د وعظ په وخت كې خاندي، توبيخ كېدۀ. د ډوډۍ تر خوړلو دمخه د شكر كول اجباري شول. د كالوين د خورا سختو قوانينو په زور د جينوا اوسېدونكي د هغۀ د مذهبي پوليسو تر پوره كنټرول او څارنې لاندې راغلل. جزاوې خورا سختې وې او د هيچا لحاظ و خاطر نۀ كېدۀ. مثلا يو ځل يوۀ ماشوم ته چې خپل پلار يې وهلی و، د سر غوڅولو جزا وركړه شوه.

ويل كېږي چې په شپږ كلنه موده كې د بدعت او ارتداد په تور يوسلوپنځوس كسه اور ته ژوندي واچول شول او ايرې شول. د دې



توندۍ او تېزۍ نتيجه دا وه چې د جينوا خلک د كالوين له نظامه ژر پوزې ته ورسېدل او چې كالوين له ښاره وايستل شو، نظام يې هم ختم شو.

په اسلامي دنيا كې په اتلسمه پېړۍ كې په نجد او حجاز كې يو مذهبي نهضت پيل شو چې ژر يې ګرده سيمه لاندې كړه. د دې نهضت مشر محمد ابن عبدالوهاب (په ۱۷۹۲ كې مړ) له غير مذهبي رواجونو د مذهب د ښېلولو مبارزه پيل كړه. د سعودي سلطنتي كورنۍ موسس محمد ابن سعود د محمد ابن وهاب د تعليماتو تر اثر لاندې راغی او بيا د دواړو كورنيو تر منځ خښېني هم وشوه. كله چې د ابن سعود زوی، سعود (په ۱۸۱۴ كې مړ) قدرت تر لاسه كړ، وهابيت يې د حكومت مذهب كړ. څرنګه چې وهابيانو د مذهب د احيا او سوچه توب خبره كوله نو مقبرې يې ورانې كړې، په مقبرو كې ساتل شوي مذهبي يادګارونه يې لرې كړل او په زيارت كولو يې بنديز ولګاوۀ.

له يوې خوا خو وهابيانو غوښتل چې د اسلام د لومړيو وختونو ايډياله ټولنه احيا كړي خو له بلې خوا يې د اسلام د تاريخ د لومړيو وختونو ټول تاريخي يادګارونه يوازې په دې وجه له منځه يوړل چې د خلكو ورسره ډېره مينه وه او مقدس يې ګڼل.

وهابيانو د مذهبي شعايرو د څارنې لپاره سخت اصول او مقررات اجرا كړل. مثلا كه به چا پنځه وخته لمونځ په جماعت نه كاوۀ نو پوليس پسې ورتلل، په زوره يې جومات ته استاوۀ.

وهابي ماډل په نورو اسلامي هېوادونو كې هم مذهبي ريفورميستانو ته الهام وركړ او د قدرت د حصول او د ټولنې د اصلاح لپاره ځينې نهضتونه راڅرګند شول چې مذهبي اجنډا يې لرله.

په هندوستان كې د سيد احمد شهيد (په ۱۸۳۱ كې مړ) جهاد غورځنګ همدا لاره خپله كړه. سيد احمد له شمالي هندوستانه شمال مغربي سرحد

تهلاړ چې هلته خپل اسلامي دولت جوړ کړي. دځ په ۱۸۲۷ کې ځان خلیفه
او امام وبالۀ دځ او ملګرو یې د زور او فشار ټولې ذریعې وکارولې چې د
سرحد په سیمه کې د تقوا په اساس ولاړه، سوچه ټولنه جوړه کړي.
میرزا حیرت دهلوي په خپل کتاب (حیات طیبه) کې لیکي چې
سیدصاحب خپلو ګڼو ملګرو ته مهم مقامونه ورکړل او امر یې ورته
وکاوۀ چې په خلکو باندې به شریعت په زور عملي کوي. خو دغو مقاماتو
له خپل اقتداره ناوړه استفاده وکړه او کله کله خو یې پېغلې اړایستلې
چې له دوی سره ودونه وکړي. داسې هم ولیدل شول چې ځینو زلمو
مجاهدینو په زور او جبر ځوانې نجونې له بازارونو او سړکونو جوماتونو
ته یووړې او د هغوی له رضا پرته یې ودونه ورسره وکړل. هغو افسرانو
هم چې د بزګرانو او کلیوالو د چارو لپاره مقرر شوي وو، خپل اختیار په
غلطه وکاراوۀ او له عامو خلکو سره په کبر وچلېدل. د دوی د کړو نتیجه
دا راووته چې خوار او ساده کلیوال ورنه په لنډ وخت کې زړۀ توري شول.
دغو افسرانو د دې لپاره چې خلکو ته خپل زور وروښیي په هر هغه چا د
کفر ټاپه ولګوله چې د دوی د تعلیماتو پیروي ته یې غاړه نه ایښوده. که
به د چا ږیره تر ټاکلې اندازې اوږده ولیدل شوه نو په جزا کې یې شونډې
غوڅېدلې. که به څوک ولیدل شول چې جامې یې د پښو تر بجلکو اوږدې
دي، نو جزا یې دا وه چې د بجلکو هډوکي یې ورمات شي.
په افغانستان کې د طالبانو په وخت کې او د پاچا د حکومت له ړنګېدو
وروسته په ایران کې، البته په ځۀ نا ځۀ بله بڼه، همداسې چارې وشوې او
د دې لپاره چې د واکمنو د خوښې مطابق شریعت تطبیق شي د زور له
ټولو طریقو استفاده وشوه.



# سیاست د مذهب په مخالفت کې

کله چې ټول قدرت د سیاسي اکثریت په لاسونو کې راغونډ شي نو
مذهب د سیاست خدمتګار او د سیاستوالو د ګټو ساتندوی شي.
د مثال لپاره به اسلامي تاریخ یاد کړو. له هغه وروسته چې ایرانیانو د
عباسیانو انقلاب (۷۵۰ میلادي) کامیاب کړ او په نوې اداره کې د
چارو واګې په ګوتو ورغلې او د حکومت پالیسي یې جوړه کړه، نو د
سیاست او مذهب تر منځ ټکر او کشمکش پای ته ورسېد.
ایراني بیروکراسي وغوښتل چې عباسي خلیفه د بشپړ سیاسي واک
په څنګ کې مذهبي واک هم ولري.
که څۀ هم دیني علماوو له دې کار سره مخالفت وکاوۀ او د شریعت په
رڼا کې یې د خلیفه د قدرت د محدودولو هڅه وکړه مګر ایرانیانو په
خپل سیاسي او پوځي زور دیني علما له میدانه وایستل، د ایران د
ساساني دوران درباري آداب یې دود او خلفا یې د ایراني شاهانو په
څېر کړل.
البته دا خبره سپینه شوې وه چې که څه هم خلیفه به بشپړ سیاسي او
اداري اختیار لري خو نه به د شریعت په چارو کې ګوتې وهي او نۀ به د
شریعت د بدلولو لپاره هڅه کوي. په دې ډول شریعت د دیني علماوو
په قلمرو کې پاتې شو او د ا سلام د تاریخ په لومړي پړاو کې دین و
سیاست له یو بله بېل شول.

د سياست او مذهب تر منځ د دې ډول معاملې په نتيجه کې يو داسې سيستم راڅرګند شو چې واکمن پکې نامحدود واک درلود او ديني علما د دولت په چوکاټ کې د قاضيانو، مفتيانو ( د شرعي احکامو شارحان او تعبيروونکي )، محتسبانو او امامانو (ملايانو ) په توګه داخل شول.

دوی په دغو پوستونو کې د دولت همکاران شول او په دغو مقامانو کې د دوی يو مسووليت دا و چې د واکمن او دولت اطاعت وکړي او شريعت د خليفه له ګټو سره سم تعبير و تفسير کړي. څرنګه چې علماوو له دولته مواجب (مياشتنۍ يا کالنۍ تنخواه ګانې) يا جاګيرونه (د خدمت په مقابل کې ورکړه شوې ځمکه) اخيستل او اقتصادي ګټې يې له دولت سره تړلې وې نو دې ته يې ډېر پام کاوه چې واکمن خوشحاله وساتي.

له بلې خوا واکمنو هم له ديني علماوو سره د توافق پاليسي خپله کړې وه. واکمنو به په ظاهر کې د علماوو درناوی کاوه، دربار ته به يې وربلل چې وعظ وکړي او په مهمو مسايلو کې مشوره ورنه وغواړي. خو هر وخت چې به يې د خپلو سياسي ګټو لپاره د علماوو استعمالول وغوښتل نو د فتوا ورکولو تقاضا به يې ورنه وکړه او علماوو به فتوا جاري کړه.

دغو ديني علماوو د واکمن په حضور کې د اطاعت و تسليم، د واکمن د پښو يا لاسونو د مچه کولو او د بې حده احترام په الفاظو باندې واکمن ته د خطاب کولو ټول هغه آداب سم وبلل چې په ايراني دربارونو کې رواج وو.

دغه راز که به د پنځه وخته لمانځۀ يا د روژې په مياشت کې د روژه نيولو په څېر ضروري عبادتونو ته د واکمن ډډه نه لګېده نو دغو



علماوو د خلاصون لاره ورته جوړوله. واکمنو دا اجازه هم تر لاسه کړه چې څومره يې خوښه وي هغومره ښځې واده کړي او طلاقونه ورکړي او په حرم سرای کې هغومره وينځې وساتي چې څومره يې زړۀ غواړي.

په عباسي دوران کې د خلفاوو د قدرت له زياتېدا سره د ديني علماوو قدرت کم شو او بالاخره علما د واکمنو د هوسونو په خادمانو بدل شول.

د عباسيانو له زوال او کمزورۍ سره په بېلو بېلو سيمو کې د مستقل قدرت لرونکې کورنۍ راڅرګندې شوې چې د سلطنت موسسه يې معرفي کړه. مسلمانو فقهاوو دغه کار په دې دليل سم وباله چې د انارکي مخه نيسي او په ټولنه کې نظم و دسپلين وساتي.

فقهاوو د زورورو نظاميانو په لاس د قدرت غصب هم په دې دليل روا وباله چې که روا ونۀ بلل شي نو سياسي ناکراري ته به لار پرانيزي او د کورنۍ جګړې اور به بل شي. نامتو ديني عالم الموردي (په ۱۰۵۸ کې مړ) چې سياسي مفکر و، په خپل کتاب الحکام السلطانيه کې وايي چې د غاصب قدرت بايد د خونرېزۍ د مخنيوي په خاطر مشروع وبلل شي.

د سلطنت او غصب مسلو ته له لار جوړولو وروسته بل سوال دا و چې ايا سلطان بايد د مذهبي اقتدار تابع وي او که دا اختيار ولري چې مذهب د خپلو سياسي غوښتنو لپاره استعمال کړي؟ د دې سوال او نورو مسايلو په اړه چې پاچا بايد څنګه چلند وکړي، د ليکنو يو ژانر دود شو چې د اميرانو هينداره نومېږي. د دې ژانر په ځينو مهمو کتابونو کې د کيکاوس (په ۱۰۸۲ ميلادي کال کې مړ) قابوس نامه، د نظام الملک (په ۱۰۹۱ ميلادي کال کې مړ) سياستنامه، د غزالي

(په ۱۱۱۱ میلادي کال کې مړ) نصیحت الملوک، او د ضیاالدین برني اثر، فتاوای جهانداري یادولای شو.

د دغه ژانر په کتابونو کې سلطنت د یوې ارثي موسسې په توګه پېژندل شوی او واکمن ته د (ظل الهي) یعنې د خدای د سیوري خطاب شوی دی. د ماکیاولي په نظر واکمن باید د دین له واجباتو او قیدونو ازاد وي او د قدرت ټولې واکې یې په لاسونو کې وي. د واکمنو د هینداري په کتابونو کې هم، دې ته ورته افکار وینو. په دغو کتابونو کې واکمن ته د ایران د ساساني پاچایانو په څېر د دیني او دنیایي چارو ټول واک ورکړ شوی دی.

په هندوستان کې د ډیلي سلاطینو (۱۵۲۶-۱۲۰۶) د واکمنو د واک همدا ماډل خپل کړ خو مغول پاچا اکبر د سلطنت یوه بله تیوري وړاندې کړه چې د هند له چاپېریال سره یې سمون خوړ. د اکبر پاچا د دربار مورخ، د دهٔ نژدې دوست او سلاکار ابوالفضل (په ۱۶۰۲ میلادي کال کې مړ) د سلطنت په اهمیت باندې د تاکید او د دې مقام د لوړاوي او ستاینې له لارې د مغولو سلطنت ته فلسفي بنیادونه جوړ کړل. د ابوالفضل په اند سلطنت د خدای په نزد تر ګردو لوړ عزت دی چې دی ورته الهي رڼا وایي، دا سې رڼا چې له خدایه سرچینه اخلي او د پاچا په زړهٔ کې له رعیت سره پلارنۍ مینه پیدا کوي او په خدای باندې د پاچا باور و تکیه زیاتوي.

له سلطنته د هغې معنا او مفهوم په باره کې چې د هند مغولو اخیسته، وانینا لیکي چې دا ظاهرا د سلطنت له اسلامي تیوري او هندو تیوري توپیر نه لري.

خو که ځیر شو پوهېږو چې دا د هغو غوندې نه ده بلکې بېخي ورنه بېله ده. د ابوالفضل په نظر، پاچا د خپل رعیت د خیر لپاره واکمني



کوي او دې مقصد ته د رسېدو په لاره کې حق لري چې په پخوانو دودونو او اجتماعي موسسو کې تغییر راولي. څرنګه چې سلطنت د خدای له لوري دی نو پاچا د مذهبي علماوو د مشورو په منلو مجبور نه دی. دهٔ ته الهي قدرت دا واک ورسپارلی چې د وخت له ضرورتونو سره سم، په ټولنیز جوړښت کې تغییرات راولي.

اکبر همدا سې وکړل. دهٔ د ماشومانو ودونه او دغه راز د نژدې خپلوانو تر منځ ودونه منع کړل. دهٔ د ستي په دود هم بندیز ولګاوهٔ چې البته پوره ختم نه شو. له دې اړخه که ورته وګورو نو اکبر د هندوستان لومړنی واکمن و چې د کورنۍ، کاستې او ټولنې په چارو کې یې هم مداخله وکړه. پخوا به واکمنو په دې ساحو کې د مداخلې او د بدلونونو د راوستلو حق ځان ته نه ورکاوهٔ.

اکبر پاچا چې د علماوو په موافقه د ( مجتهد ) اختیارات هم په خپل لاس کې واخیستل نو قدرت یې لا زیات شو. اکبر دا کار د ابوالفضل د پلار شیخ مبارک په مشوره وکړ. مبارک ورته وویل چې له دیني علماوو دې وغواړي چې یو (محضر) دستخط کړي چې دهٔ ته د مذهب د تفسیر و تعبیر د اختیار وکالت ورکوي. په دې ډول اکبر پاچا هم د مذهبي او هم د سیاسي چارو واګې تر لاسه کړې او له دیني علماوو سره نور د پاچا د فیصلو د چلینجولو واک پاتې نه شو.

# ازادي، مساوات ، ورورګلوي

د فرانسې د ۱۷۸۹ کال انقلاب د سیاسي بدلون په نتیجه کې یو نوی کلتور وزیږاوۀ چې د اروپا د ټولنې پخوانی استبدادي نظام یې ورو ورو په دیموکراسي بدل کړ. ازادي، مساوات او اخوت د انقلاب شعار و چې د اریستوکراسي او د هغې د کلچر غلبه یې ختمه کړه. په ټولنه کې هرارشي او د مراتبو سلسله هم ختمه شوه. انقلاب د ژوند په هر اړخ باندې اثر وکاوۀ. د سلطنت او اشرافیت د امتیاز ټول سمبولونه بې اهمیته شول خلکو د عالي جناب یا عالیقدر په څېر لقبونه له خولو وغورځول او یو بل ته یې د وطنوال (ستیزن) ویل پیل کړل.

د مساوات د مفهوم تر اغېز لاندې خلکو د (تاسې) د کلمې په ځای چې د لوړو طبقو د درناوي لپاره وه، د (تۀ) کلمه خوښه کړه. خلکو له اشرافیته خپله کرکه د بې ادبه او شډلې ژبې په ذریعه چې اشرافو ته سپکې سپورې او کتري کنایې پکې وې، څرګنده کړه. د انقلاب په زمانه کې د بېوزلو او شتمنو طبقو تر منځ د توپیر د ختمولو لپاره هڅې وشوې. په دې دوران کې له دولته د کلیسا بېلېدا د سکیولریزم اساس کېښود چې د مذهبي زغم سبب شو. کله چې په فرانسې باندې انقلاب مخالفو هېوادونو یرغل وکړ، په فرانسه کې د نشنلیزم یو پیاوړی احساس وغوړېد او له یرغل سره د مقابلې لپاره خلکو لښکر وکړ چې د خپل ملک دفاع وکاندي.



د انقلابي کلچر یو بل اوڅار اړخ په اجتماعي، سیاسي او کلتوري فعالیتونو کې د ښځو ګډون و. په انقلاب کې ښځو فعاله برخه واخیسته. د شلمې پېړۍ د نامتو جرمنۍ فیمنستې ټولنپوهې ماریا مایس په ژبه: دوی د پاریس په کوڅو کې له روانې مبارزې سره د یو ځای کېدو په ذریعه او دغه راز د بحثونو په ګڼو ګروپونو او ګڼو جمهوري کلبونو کې چې په ټوله فرانسه کې جوړ شوي وو ، د شاملېدو په ذریعه ارزو لرله چې د لوی انقلاب په منځ کې خپل انقلاب هم وکوي. د فیوډالزم په خلاف جګړه کې د پاریس د بېوزلو پرګنو ګڼو مېرمنو پوره برخه لرله.

د فرانسې د انقلاب خورا مهمه ځانګړنه دا وه چې خلکو د ژوند په هر ډګر کې حضور پیدا کړ. د ملي اسمبلي هره ناسته له خلکو ډکه وه. د اسمبلې غړیو به چې خبرې کولې نو عوامو به یې په دقت سره څار کاوۀ. انقلاب عام خلک وروزل چې د خپلو حقونو لپاره د پوځ په مقابل کې وجنګېږي. د فرانسې د انقلاب په دوران کې چې عوامو کومه تجربه ترلاسه کړه، دغه تجربه یې د ۱۸۳۰ او ۱۸۴۸ کال په انقلابونو کې چې کوڅې یې په کامیابۍ سره بندې او مورچې یې ورکې جوړې کړې. پکار راغله. د پاریس خلکو د اروپا د نورو هېوادونو او سېدونکو ته چې هلته خلکو د خپلو استبدادي حکومتونو په خلاف مبارزه کوله، یو ماډل وړاندې کړ.

یو بل بدلون دا راغی چې اشرافو د عوامو د کلچر تر اغېز لاندې خپل د ښکو دودیز لباس پرېښود او په ټولنه کې یې د عادي خلکو غوندې لباس واغوست.

د انقلاب په دوران کې د شتمنو او ممتازو طبقو په خلاف د عادي کس قهر د خشونت په بڼه را څرګند شو. اشرافیت برالا توهین شو او ګیوتن په پرله پسې ډول د انقلاب د مخالفانو سرونه غوڅ کړل چې په نتیجه کې، ښکاره اعدامونه د عوامو د ساتېرې په یوې ذریعې بدل شول خلک به د

اعدام د ځای شاوخوا راټولېدل او چې د مقتول پرې کړی سر به یې ولید
چکچکې به یې کولې. د روبسپیر د ترور دوران د تشدد په ذریعه د
انقلابي اخلاقو د دودېدا د هڅې دوران و.
په ۱۷۹۴ کې د عام مصونیت د کمېټې ویاند انقلابي اخلاق د پخواني رژیم
په وخت کې له فسق و شرارت سره د مقایسې له لارې توضیح کړل ، دهٔ وویل
: موږ غواړو په خپل هیواد کې د ایګوایزم و انانیت په ځای صداقت اود
امتیاز غوښتنې په ځای اصول حاکم کړو، د دودونو په ځای خپلو
مکلفیتونو ته پام وکړو ، د مال او شتو په ځای د استدلال او منطق قوت
پیدا کړو ، د جابرانه چلند په ځای نرمه لهجه غوره کړو، د حقارت په ځای
عزت او د تشدد په ځای پراخه سینه ولرو، د تنبلۍ په ځای سترو ارمانونو
ته د رسېدو تکل ولرو ، له پیسو سره د مینې په ځای له ښو خلکو سره مینه
وکړو، په ښو ادارو کې لیاقت معیار وګرځوو، د توطیو او دسیسو په ځای
له خپل استعداده کار واخلو، د ټوکو په ځای حقیقت ته پام ولرو، د ظاهري
شان و شوکت په ځای په ځان کې واقعي خوشحالي پیدا کړو، د ستومانه
کوونکو شهوت پرستیو په ځای د انسان د مقام عظمت ته پام واړوو او
بالاخره د وړو شیانو په ځای د سترو هدفونو په لور ګامونه واخلو.
د فرانسې انقلاب یو ملي او سیاسي کلچر خلق کړ. ځرنګه چې دولت ملي
شو نو د هغه ټولې موسسې ملي ونومول شوې. لکه ملي پوهنتون، ملي
تعلیم، ملي بېرغ او ملي سرود.
نورو هېوادونو د فرانسې د ماډل پیروي وکړه. نورو هم ملي بېرغ ته درې
رنګه غوره کړل او د ملي هویت د بیان لپاره یې ملي سرود وموند. د سیاسي
او اجتماعي بدلونونو لپاره د خلکو د پارولو او پاڅولو لپاره په ګرده دنیا
کې د فرانسې د انقلاب ژبه او ادب وکارول شول.
هغه کلچر چې د فرانسې انقلاب رامنځ ته کړ په ټوله اروپا کې خپور شو او د
اروپا سیاسي او اجتماعي جوړښت یې بدل کړ.



# یوازې بدلون پاتېدونی دی

ځرنګه چې خلکو ته تاریخي پېښې له اوسنو حالاتو سره بې ارتباطه،
مازې پخوانۍ کیسې ښکاري نو ډېر ځله یې په دې خبره چندان باور
نه راځي چې د تاریخ مطالعه به ګټه ولري.
په حقیقت کې له تېرو پېښو د استفادې کولو مفکوره خورا پېچلې ده.
معمولا خلک غوره ګڼي چې تغییرات ژر، ژر او محسوس ووینې. که
تغییرات محسوس او ځرګند نهٔ وي، لکه په تاریخ کې چې خبره
همداسې ده، نو دغسې نظم په خلکو بوج شي.
خو تاریخ په عمل کې د ټولنې د لیډلورې د بدلولو او د خلکو د
خبرولو یو لوی کار په غاړه لري. البته، د اثر د غورځولو او تاثیر
اچولو بهیر ډېر وخت غواړي. تاریخ نه یوازې د پخوا په اړه پوهه
راکوي بلکې زموږ د اوسنو پرابلمونو په باب هم خبرې را ته لري. مثلا
که موږ د خپلې ټولنې د اوسني مخ په ځوړ حال په باب غور کوو نو د
راغلي حالت علتونه به هم چې په تېر وخت کې ځېلې لري، ځیرو.
د یوهٔ تمدن د ظهور او زوال پدیده د بدلېدونکو حالاتو د بهیر پدیده
ده او مورخان د دې بهیر په بېلو بېلو پړاوونو بحث کوي او بیانوي
یې.
درې مفکرانو د ځینو قوانینو په رڼا کې چې د دوی په فکر د تاریخ د
حرکت لوری ټاکي، د تمدنونو د ظهور و زوال د ټول بهیر د موندلو
هڅه کړې ده.

ابن خلدون ( په ۱۴۰۶ میلادي کال کې مړ ) دغه بهیر د وګړي د ژوند غوندې بولي چې په زوکړه پیلېږي، له ماشومتوب، زلما او زړبودنه تېرېږي او مرګ ته رسېږي. د ابن خلدون په نظر یو ملت یا تمدن دې ته ورته پړاوونه کچوي او په اخر کې مري. د دۀ په عقیده دا بهیر نه بدلېږي او برخلیک یې نه نورېږي.

جرمن مفکر شپنګلر (په ۱۹۳۶ کې مړ) د خپل کتاب (د غرب زوال) تر لیکلو د مخه د نړۍ اتۀ لوی تمدنونه مطالعه کړل. شپنګلر په خپل کتاب کې هغه پړاوونه راښیي چې د دۀ په نظر هر تمدن ورسره مخ کېږي. دی وایي چې هر تمدن په ابتدا کې دین او هنر خلقوي او له همدې ځایه د تمدن د پسرلي موسم پیلېږي. فیوډالیزم او فیوډالي کلچر د تمدن د دې موسم لویه ځانګړنه ده. تمدن د خپل ژوند د دوبي په موسم کې د خپلو ښارونو په وده مشهورېږي. ورپسې بیا د عقیدې ځای تعقل او رشنلیزم نیسي او په ژمي کې د ماتریالزم سیورى خپرېږي چې زوال او بې تاریخه دوران یې په مخ کې دی.

د شپنګلر په اند ، مرګ خامخا راځي او یو تمدن باید د یوناني اتل په څېر مړینې ته تیار وي. دغه جرمن مفکر د تاریخ د بهیر لپاره د دا رنګه قوانینو په جوړولو سره د لویدیځ تمدن د زوال اټکل وکاوۀ. د دۀ په نظر، نولسمه پېړۍ د لویدیځ تمدن تر ګردو غوره دوران و. په دې دوران کې لویدیځ تمدن خپل کلاسیک هنر، معماري، موسیقي او ادبیات وزېږول. په شلمه پېړۍ کې د لویدیځ تمدن زوال پیل شو. په دې پېړۍ کې یې موزیک، معماري، هنر او ادبیات بازاري و برسېرن شول، عمق و ابتکار ورپاتې نه شول.



له بلې خوا ټاین بي (په ۱۹۷۴ کې مړ) وینو چې یوې بلې پایلې ته رسېدلی دی. دۀ په خپل کتاب (د تاریخ مطالعه) کې د شپږویشتو لویو او وړو تمدنونو په لوړ و ځوړ بحث کړی دی.

دۀ په ټولو تمدنونو کې یو مشترک عامل چې دی یې (چلینجونه او ځواب) بولي، وموند. ټاین بي وایي چې یو تمدن تر هغو پورې له زواله خوندي دی چې د چلینجونو د مقابلې او د خنډونو د لرې کولو وړتیا لري. زوال یې هله پیلېږي چې مشکلاتو ته په ځواب موندلو کې پاتې راشي. د ټاین بي په نظر دا د یوۀ تمدن د روشنفکرو کار دی چې د خنډونو او چلینجونو ماهیت وپېژني او حل لارې ورته پیدا کړي.

ابن خلدون او شپنګلر دواړو د تمدن د مرګ پېش بیني وکړه خو ټاین بي خوشبینه ښکاري. البته، د تمدن د عمر په باره کې د دۀ خوشبیني بې شرطه نۀ ده. د تمدن د نه مړۀ کېدلو شرط دا دی چې د روشنفکرو ټولنه به د چلینجونو او مشکلاتو ماهیت پېژني او مناسبې حل لارې به ورته مومي.

که پاکستان ته راشو نو ویلی شو چې دلته وضعیت پېچلی دی. دغه هېواد له اقتصادي بحرانه رانیولې تر اجتماعي او سیاسي بحرانونو پورې له ډول ډول چیلنجونو سره لاس وګریوان دی. له بده مرغه پاکستان داسې روشنفکران نه لري چې له دغو بحرانونو یې راوباسي. په پاکستان کې د هغو فیلسوفانو، ټولنپوهانو، مورخانو، انتروپولجستانو او د اقتصادي او سیاسي چارو د مفکرانو کمی دی چې د ملک او ټولنې د مشکلاتو لپاره حل لارې مومي.

له بلې خوا په پاکستانۍ ټولنه کې دا باور موجود دی چې دوی یو بشپړ نظام لري او د موجود حالت بدلېدا ته یې اړتیا نشته. هغه افراد

چې په دې مفکوره کې خو او مشکل ویني، غندل کېږي. دلته له نویو فکرونو سره سخته دښمني روانه ده. دلته د مخ په ځوړ حالت د مشکلاتو د اوارې لپاره نوي فکرونه، اورېدونکي نه لري.

که موږ د ټاین بي د چلینج او ځواب مفکورې په رڼا کې لویدیځ تمدن ته وګورو نو ویلی شو چې دغه تمدن د پخوانو هغو په نسبت په بر او ممتاز دریځ کې دی. دغه تمدن نه یوازې د تېرو تمدنونو مفصل تاریخ لري بلکې په اوسنی دنیا هم د پوهې او معرفت او لوربینې کوي. په دې سربېره د اسیا او افریقا تر ګردو تکړه کسان چې په خپلو وطنونو کې ورته امکانات نشته، لویدیځ ته تللي دي. د شپنګلر د پیش بیني برخلاف، لویدیځ تمدن په ستونزو لاسبری شوی او له زواله ژغورېدلی دی. د تاریخ په اړه باید ووایو چې تاریخ چمتو دی چې یو څه رازده کړي خو سوال دا دی چې ایا موږ څۀ زده کولو ته تیار یو؟



# خیرات او ټولنه

صدقه او خیرات د بېوزلۍ د فشار د کمولو او د محتاجو کسانو د مرستلو یوه ډېره ښه ذریعه بلل کېږي. افراد او موسسې دواړه، هغو کسانو ته خیرات ورکوي چې خورا نیازمن دي. له بېوزلو سره مرسته یوه مذهبي وجیبه او دغه راز ټولنیزه دنده ده.

د ډیلي د سلطنت په زمانه کې، فیروز تغلق (۱۳۵۱ـ ۱۳۸۸ میلادي) د صدقې د چارو لپاره یوه اداره جوړه کړه چې بې وسو نجونو ته جهیز برابرول او بېوزلو کسانو ته مالي مرسته یې دنده وه. محتاجو کسانو ته د ډوډۍ ورکولو لپاره د لنګر جوړول یو پخوانی دود دی. مغولو امپراطورانو د حکومت په پیسو په خپل ټول قلمرو کې لنګرخانې جوړې کړې.

د کاختۍ یا وچکالۍ په زمانه کې به لنګرخانې زیاتېدلې. اکبر پاچا (۱۵۵۶-۱۶۰۵) په فتحپور کې مسلمانو او هندو بېوزلو ته لنګرخانې ودانې کړې چې خیرپوره او دهرمپوره یادېدلې. ګڼو جوګیانو چې د مفتې ډوډۍ اوازه واورېده نو فتحپور ته لاړل. دوی ته د جوګیپوره په نوم بېله لنګرخانه جوړه شوه.

جهانګیر پاچا (۱۶۰۵-۱۶۲۷) د خپل سلطنت په دوران کې په احمداباد، اله اباد، لاهور، ډیلي او اګره کې لنګرونه جاري کړل. دغه لنګرخانې به یې بولغار کهان (د خوارانو په منځ کې د پخې ډوډۍ د وېشلو ځای) بللې.

د صدقې په دا رنګه موسسو سربېره، د خير خيرات ځينې اجتماعي
او مذهبي رواجونه هم وو. مثلا ، د اخترونو يا جشنونو په وخت به د
نقره اي او طلايي سکو ډک پتنوس د امپراطور يا اشرافي د سر د
پاسه وړل کېدۀ چې وروسته بيا په بېوزلو ووېشل شي. دغو مراسمو
ته يې نثار ويل. نثار د هرې موقعې رد بلا انګېرل کېدۀ. دا دود هم و
چې کله به امپراطور يا اشرافي د اختر لمانځۀ يا د بزرګ د مقبرې
زيارت ته په ډله کې روان و نو په هغو خلکو به يې پيسې شيندلې چې
د جلوس ننداري ته به راغونډ شوي وو. په هندوستان کې د پيسو
شندلو دغه دستور سخاوت بلل کېدۀ.

اکبرپاچا د صدقې د وېشلو لپاره يو ځل يوۀ نوي شي ته فکر شو. دۀ يو
حوض چې اناپ الاو بلل کېدۀ، له پيسو ډک کړ چې په خوارانو يې
ووېشل شي.

ابوالفضل ليکي چې، په فتحپور کې د ماڼۍ په حويلۍ کې يو ډنډ و
چې شل، شل ګزه يې طول و عرض او درې ګزه يې ژوروالی و. پاچا امر
وکاوۀ چې دغه ټول ډنډ په سرو، سپينو او تورو پيسو (يعنې په
طلايي، نقره اي، او مسي سکو ) ډک شي. خو په لومړۍ ورځ دومره
ګڼه ګوڼه شوه چې ځينې کسان تر پښو لاندې شول. پاچا چې دا حال
وليد امر يې وکاوۀ چې دغه کار دې نه تکرارېږي.

خو له بلې خوا ، په انګلستان کې له بېوزلۍ سره مبارزه بل ډول وه. د
تير دور کورنۍ د سلطنت په دوران کې (۱۶۰۳-۱۴۸۵ ) په انګلستان
کې د ګدايانو يو نوی ګروپ چې (روغ رمټ ګدايان) يې بلل،
راڅرګند شول. دا هغه زمانه وه چې د ګلابو له جګړې او د فرانسې له
جګړو فارغ شوي عسکر وزګاره شوي وو، د احاطې د سيستم په وجه
خوارو بزګرانو ناکرلې مځکې نه شوای کرلی، ځنګلونه کم شوي او



بې روزګاري زياته وه. دغو ټولو عواملو يو بل ته لاسونه سره ورکړي
او په صورت پوره ، روغ رمټ کسان يې ګدايي ته اړايستلي وو. دوی
به په کليو کې ډله ډله ګرځېدل، د خلکو ورونو ته به درېدل او خيرات
به يې غوښت. ټولنه له دوی سره په تکليف کې شوه.

د مشکل د اوارولو لپاره د انګلستان دولت له بېوزلو سره د مرستې
په مقصد څو قانوني لايحې پاس کړې. دا مرسته به د اعانې له لارې
برابرېده او له هرې کليسا سره د اړوندې ناحيې خلکو به يې چارې
سمبالولې. حکومت په بل قدم کې د بېوزلو لپاره کار ځايونه جوړ کړل
چې بېوزلي په دې توګه له ګدايي او په مرسته باندې له تکيه کولو را
وګرځوي. په ۱۷۲۳ ميلادي کال کې د بېوزلو لپاره د کارځايونو يو
قانون جوړ شو چې له دوی يې غوښتل چې په کارځايونو کې خپل
نومونه ثبت کړي او کار کولو ته متې راونغاړي. يو بل قانون په ۱۸۳۴
کې د کوڅې او بازار ګدايي منع کړه او ګدايان يې مجبور کړل چې په
کارځايونو کې واوسي.

په دغو کارځايونو کې ژوند بې مزې او تريخ و. دلته د کورنۍ د نظام
درناوی نه کېدۀ. ښځې، ماشومان او مېړونه له يو بله بېل ساتل کېدل
او خورا سخت مقررات يې لرل. امر و چې د ډوډۍ په وخت به څوک
خبرې نه کوي. خوارۀ پکې کم او نيمګړي وو. دلته د تېرو د ماتولو ، د
هډوکو د وړۀ کولو ، د زړو رسيو د تار تار کولو او داسې نور کارونه
وو. چارلز ديکنز په خپلو ناولونو کې د دغو کارځايونو د شرايطو
روښانه انځورونه ايستلي دي.

يو مورخ ليکي: په اندوور کارځای کې د هډوکو د ماتولو په وخت د
دې حقيقت معلومېدا چې خواران وراستۀ هډوکي چيچي او غوړ و
ماغزۀ يې خوري، د لويې رسوايي سبب شوه. دا څه عجبه نه ده چې د

کارځایونو کارکوونکي دغه ځایونه باستیل بولي. (د پاریس د
مشهورې بندیخانې نوم)

په اتلس سوه پنځوسمو کلونو کې د عمومي فشار په نتیجه کې د
کارځایونو شرایط بهتره شول. خو د دغو ځایونو په باب هغه بد تصور
د بېوزلو په ذهنونو کې پاتې شو. د وخت په تېرېدو سره د بېوزلو په
اړه د قوانینو ځای یو لړ نویو موسسو ونیو چې له محتاجو کسانو سره
یې د حکومتي ادارو یا خیریه موسسو له لارې مرسته کوله.

د وګړي د خیرات او د موسسې د خیرات تر منځ لوی توپیر موجود
دی. یو وګړی یوازې تر هغو خیر رسولای شي چې ژوندی وي خو
موسسه ممکن په مودو مودو خیر ورسوي.

بله دا چې یو وګړی که چا ته صدقه ورکوي نو صدقه اخیستونکی ځان د
هغه احسانمن او تر منت لاندې ګڼي. په مقابل کې خیرمن کس ته د غرور
احساس ورپیدا کېږي. دا هم ممکنه ده چې له خپل خیر خیراته د سیاسي
او اجتماعي موقف لپاره استفاده وکړي. خو د ادارو او موسسو په
خیرات کې داسې څهٔ نشته. له دغو موسسو سره مرسته کوونکي معمولا
نه پېژندل کېږي او په دې ډول د موسسو صدقه په چا باندې منت نه ږدي
او د دې باعث نه ګرځي چې یو انسان د بل انسان تر منت لاندې شي.

په یوه ټولنه کې چې دیموکراسي واکمنه وي، هلته اتباعو ته حق ورکول
کېږي چې له دولت او دولتي موسسو وغواړي چې د خلکو د ستونزو غم
وخوري. نو حکومت باید داسې اقدامات وکړي چې هیڅ وطنوال (تبعه،
ستېزن) مجبور نه شي چې بل وطنوال ته لاس ونیسي او خیر وغواړي.



# ترک غلامان

د ترکو غلامانو د اخیستلو او مقررولو دود په عباسي دوران کې پیل
شو. ابن خلدون په خپله مقدمه کې په دې موضوع باندې تبصره کړې ده
او لیکلي یې دي چې عباسي خلفاوو ځکه په ترکو غلامانو تکیه وکړه
چې د خپلې قبیلې ملاتړ ورسره نه و او بله وجه یې دا وه چې عربي روح
(عصبیت) چې د دوی د حکومت د ملا د تیر حیثیت یې درلود، کمزوری
شوی و.

کله چې د دربار سیاسي قدرت ایرانیانو ته په ګوتو ورغی او عرب څنډې
ته ځپ وهل شول، عباسیانو د قدرت د ساتنې لپاره نورې لارې ولټولې.
ترکو غلامانو ته د میدان ورکولو په نورو علتونو کې د امپراطورۍ د
ساحې پراخېدا، د امپراطورۍ په جوړښت کې د بېلو بېلو توکمونو
راغونډېدا، د خلیفه په لاسونو کې د بشپړ واک تمرکز او د تخت د بېلو
بېلو مدعیانو جاه طلبي یادولای شو. دغو عواملو د وخت خلیفه
مجبوراوهٔ چې د داسې عسکرو یو ګروپ ولري چې دی ورباندې باور
کولای شي. ترکو غلامانو دا غوښتنه پوره کوله او د خلافت د ساتندویو
په توګه یې عزت او ویاړ په نصیب شو خو کله چې خلافت په زوال کې و
نو دوی د انارکي او ګډوډې عاملان شول او دغه شي بدنامه کړل.

د عباسیانو په راوروسته دوران کې د همدې ترکو غلامانو له اجتماعي
موسسې د طولونیانو (۸۶۸- ۹۰۵) او اخشیدیانو (۹۶۹-۹۳۵) په څېر

مهمې واکمنې لړۍ راڅرګندې شوې چې په مسلمانه ټولنه کې يې لوی نقش و.

په عباسي خلافت کې د ترکو غلامانو اجتماعي موسسه د اسلامي نړۍ تازه جوړېدونکو واکمنو لړیو ته یو مثال او ماډل شوه. هغوی ترک غلامان د شخصي باډیګاردانو په توګه په کار وګومارل او اداري مقامونه يې ورکړل. یعقوب بن لیث صفاري (۸۷۸-۸۶۸) کابو دوه زره غلامان لرل چې د دهٔ د شخصي نوکرانو او باډیګاردانو په توګه يې خدمت کاوهٔ. د یعقوب د ورور عمرو بن لیث (۹۰۰-۸۷۸میلادي) دا عادت و چې د هلکوانې د عمر غلامان به يې پېرودل او بېل بېل مهارتونه او هنرونه به يې ورزده کول. دهٔ به دغه کسان د خپلو قومندانانو په لښکرو کې مقررول چې دهٔ ته جاسوسي و مخبري وکړي.
سامانیانو (۱۰۰۵-۸۱۹)، قره خانیانو (۱۲۱۱-۹۹۲)، غزنویانو (۹۷۷-۱۱۸۶)، او غوریانو (۱۲۱۵-۱۰۰۰) په همدې پلونو پلونه کېښودل او د خپل اقتدار د جوړولو او ټینګولو لپاره يې له ترکو غلامانو استفاده وکړه. ترک غلامان مشهور پوځيان او اداره چیان شول. دوی په وفا او اخلاص کې بې جوړې وو. چې د دوی شمېر زیات شو نو د خپل لیاقت په اساس په مختلفو درجو او کتهګوریو ووېشل شول په جنرالانو سربېره، ځنې ترکان، غلامان خاص یا غلامان سلطاني شول چې د پاچا شخصي خدمتګاران وو.

په ګرده شرقي امپراطوري کې د غلامانو د خرڅلاو بازارونه وو. په دغو بازارونو کې به ترک غلامان د نورې مال التجارې په څېر خرڅېدل. له پېرودنې وروسته به دوی ته مختلف مهارتونه ورزده کېدل. کله چې به یو غلام د پاچا په خدمت کې داخل شو نو په ابتدا کې به د پاچا شخصي چارې لکه د ساقي خاص (د پاچا د شرابو وړونکی)، چاشني ګیر (مزه څکونکی او خوند معلوموونکی)، طشت دار، مشعل دار (مشال



وړونکی) او جامه دار (د جامو ساتونکی) چارې ورسپارل کېدلی. که به يې لیاقت او کفایت وښود، رتبه يې لوړېده. د یوهٔ ولایت مشري یا د پاچاهي لښکرو قومنداني هغه تر ګردو لوړ مقامونه وو چې ترکو غلامانو ته ورکول کېدل.

د غلامۍ ټولنیزه موسسه د سلطنتي لړیو لپاره ګټوره ثابته شوه. د غلامۍ په برکت پاچایانو لایق او وفادار مرېیونه لرل چې دوی يې له داخلي او خارجي غلیمانو ساتل. خو دې موسسې منفي نقش هم درلود. کله چې ټول سیاسي قدرت د دې طبقې ګوتو ته ورغی نو قدرت يې د خپلو شخصي مقصدونو لپاره وکاراوهٔ او د سلطنتي کورنۍ یا نظام ګټې يې له پامه وغورځولې. دوی به تر هغو وفادار وو چې پاچا به زورور و. خو کله چې کمزوري پاچایان د سلطنت په ګدۍ کېناستل، نو غلامانو ټول واک په لاس کې واخیست او پاچایان يې مجبور کړل چې د دوی له خوښې سره سم وچلېږي.

شهاب الدین غوري (۱۲۰۶-۱۲۰۳) ترک غلامان هندوستان ته راوستل. د غوریانو د زمانې د مورخ منهاج سراج په قول، سلطان شهاب الدین د ترکو غلامانو د رانیولو خورا شوقي و او د دې توکم ګڼ شمېر غلامان يې په بیه واخیستل. دغه هر غلام په ګردو ختیځو ملکونو کې په کار کې د جدیت، جنګي هنرونو او مهارتونو په خاطر شهرت وموند.)

د غوري شهاب الدین غلامانو له دهٔ سره د هندوستان په نیولو کې مرسته وکړه او چې دی ومړ نو دوی په هند کې د غلامانو د سلطنت بنیاد کېښود. په دوی کې دوه کسه پخپله مرېیونه وو او دا حق يې نه درلود چې پاچاهي وکړي. دوی دواړو د خپلو غلامانو په ملاتړ پوره پوره تکیه لرله.

التمیش (۱۲۳۶-۱۲۱۱) د امیر چهل ګن یا څلوېښتو امیرانو اداره جوړه کړه چې دی له مخالفانو وساتي. دغه امیران التمش ته وفاداره وو او خو د

دۀ له مړينې وروسته سرکشه شول او د پاچا جوړولو کار ته يې لاس
واچاوۀ. کله چې بلبن (۱۲۸۷-۱۲۶۶) په تخت کېناست، د دۀ سر سم
خلاص شو چې تر څو پورې دغه اميران ژوندي وي، دی به د سلطنت په
خوند پوه نه شي. په اوله کې دی پخپله د همدې ګروپ يو غړی و. دوی يې
هر يو له نژدې پېژاندۀ. بلبن دوی ټول ووژل او ان د خپل ترۀ زوی يې چې د
څلوېښتو اميرانو په ډله کې يو امير و، ژوندی پرې نه ښود.
که په هندوستان کې د ترکو غلامانو د نقش جاج اخلو نو ويلی شو چې
دوی د پاچا د واک په تخريب سره سياسي انارکي راوسته چې په
دسيسو کې د ګډون او په خپل منځ کې له يو بل سره د جګړو په نتيجه
کې يې پخپله خپله پښه په تېشه ووهله او خپل دريځ يې کمزوری کړ. د
دوی ټول پام دې ته و چې څنګه ډېرې پيسې ټولې کړي. دوی په دې پوه نه
شول چې سلطنت ثبات نه لري او شاوخوا ته يې تېريګرې هندو واکمنې.
واقع دي چې د ډيلي د سلطنت د ړنګولو او ختمولو لپاره شېبې شماري.
د يو واکمن په حيث بلبن په دې مشکل پوه و او ځکه خو يې په بې رحمۍ
سره د اميرانو بېخ وايست. د څلوېښتو اميرانو په ختمېدو سره په
هندوستان کې د ترکو غلامانو واک پای ته ورسېد.
تاريخ دلته موږ ته يو درس راکوي. که هره اداره ټول واک په خپلو لاسونو
کې راغونډ کړي او له ځانه تر ګردو لوی قدرت جوړ کړي، نو د دې ادارې
ملا به تر خپل درانۀ بار لاندې ماته شي. د يوۀ دولت او نظام د جوړښت او
سټرکچر غوښته دا ده چې د قدرت بيلانس او توازن پکې موجود وي او
واک بايد له نورو سره شريک شي. که په دې منځ کې يوه اداره او موسسه
تر نورو لويه او تر ټولو زوروره شوه نو نورې ډلې او نورې موسسې د
بحران په وخت کې له هغې سره ملاتړ نه کوي، په ميدان يې پرېږدي او په
دې ډول هغه ډله او موسسه چې تر ټولو ځان بر غواړي، پخپله خپل بېخ
باسي.



# دوزخ په تاريخ کې

بشري ټولنې چې وده وکړه، د ګناه وثواب او خير وشر مفاهيم
راڅرګند شول. خلکو ليدل چې ځينو مجرمانو ته جزا ورکول کېږي خو
ځينې نور، په تېره بيا هغوی چې قدرت ورسره دی او د امتيازاتو
څښتنان دي، جزا نه ويني. څرنګه چې د خطاکارو د مجازات لپاره
پياوړې اداره نه وه نو دوی د هرې ناجايزې په کولو کې ازاد وو.
بېوسي او نهيلي خلک باوري کړل چې که دغسې کسان په دې دنيا
کې جزا ونه ويني په بله دنيا کې به مجازات شي. دې عقيدې چې
ظالمان او جنايت کاران به د ابد لپاره په خدايي غضب ګرفتار شي، د
ټولنې بېوسه پرګنې دلاسا کولې.
الن اي. برنستين په خپل کتاب کې چې (د دروغ جوړېدا: په لرغونې
زمانه او د عيسويت د ابتدا په زمانه کې مرګ او بيا ژوند ) نومېږي،
په دې اړه خبرې کړې دي چې د دوزخ مفکوره څنګه پيدا او له کومو
کومو پړاوونو تېره شوه. د هغۀ له څېړنو سره سم د بين النهرين په
تمدن کې عقيده دا وه چې له مړينې وروسته د ګناهونو تپوس نه کېږي
او د ټولو مړيو ، که هغه د خير کسان وي يا د شر، انجام يو شان دی.
دوی ته نۀ د خپلو بدو عملونو جزا او نه د خپلو ښو عملونو اجر ورکول
کېږي. په تېره زمانه کې يوه عامه عقيده وه چې د مړيو لپاره بېله دنيا
موجوده ده. په همد ې خاطر په لرغونو اساطيرو کې موږ د مړيو د دنيا
د موندلو لپاره ګڼې هڅې وينو.

په بين النهرين کې د سومير د خلکو د ګيلګمش په حماسه کې لولو
چې: د اوبو او وچې يو لوی پړاو مړي او ژوندي له يوبله بېلوي.
د بين النهرين د بابل د تمدن د خلکو عقيده وه چې مړي تر دې دنيا
لاندې ژوند کوي او خپل پاچا لري. دوی د ژوندو له شره د ځان د
ساتنې لپاره تر خپلې دنيا کلاګانې او ديوالونه راتاو کړي دي او د
بهرنۍ نړۍ هيڅ اوسېدونکي ته اجازه نه ورکوي چې ورشي.
د مصر په تمدن کې شريرو ته د جزا ورکولو او خيرمنو ته د اجر
ورکولو مفکورې انکشاف وکړ. د مصريانو د عقيدې په اساس، له
مرګه وروسته هر بنيادم له ځينو پړاوونو تېرېدۀ او د دې دنيا په ژوند
کې د خپلو کړو له مخې معامله ورسره کېده. د لرغونو مصريانو د
باور مطابق، هغوی چې د جزا لايق وي، بدنونه به يې ټوک ټوک شي.
دوی ته به وويل شي چې: اور ته دې مخه ده، لمبو ته دې مخه ده،
سوځنده تودوخې ته دې مخه ده، په توره ځب ځب کېږې او داسې ټوک
ټوک کېږې چې د دنيا د مخ ژوندي به بيا هيڅکله ونه وينې.
د يونان او روم خلکو هم عقيده لرله چې مړي تر مځکه لاندې بېله دنيا
لري. دغه ځای به يونانيانو هيډيز بالۀ. په هيډيز کې د مړيو روحونه د
دوی له عملونو سره سم په بېلو بېلو طبقو کې وي. ګناهګارانو او
مجرمانو ته تر ابده پورې جزا ورکوله کېږي.
يهودو د بعدالموت اجر و جزا مفکوره په پوره تفصيل سره بيان کړې
ده. دوی د ګناهګارو ځای (جهنه) يعنې دوزخ وبالۀ. په تورات کې د
دوزخ ذکر او دا چې ګناهګاران به څنګه پکې عذاب وينې، په تفصيل
سره راغلی دی. په تورات کې لولو: (دوی به د خدای په غضب واوړي
او اور به يې وخوري) په تورات کې د سرغړوونکو په باب راغلي دي
چې: وګورئ، هغه ورځ را روانه ده، د تنارۀ په څېر سوځنده، چې ټول



کبرکوونکي او شر جوړوونکي به د سرپرېکړيو بوټو پاتې بېخونه
شي، هغه ورځ راځي چې دوی به سوځي.)
په يوۀ مزمور کې لولو چې: خدای پاک صالحان او بدکاران خپل
اختيار ته پرې ايښي دي. دی له هغو نفرت کوي چې له تعدی او ناروا
سره مينه لري. په بدکارانو به د سکرو د اور او ګوګړو باران واوري.
سوځوونکی باد به يې د نصيب برخه شي.)
په عيسويت کې د دوزخ يادونه کمه کېږي او جزييات يې نۀ بيانېږي.
خو وروسته بيا د کليسا ځينو پلرونو د دوزخ مفکورې ته د
بوږنوونکو جزيياتو په بيان سره ځانګې ورکړې. د کليسا يوۀ مشر
پترو پناموتني خبرداری ورکړ چې: ( هر ملعون به د سرۀ تنارۀ په څېر
وي، په ټټر باندې او د ټټر دننه به يې سرې لمبې بلې وي. ناولې وينه
به يې په رګونو کې اېشي او دغه حال به يې په کوپړۍ کې د ماغزو،
په سينه کې د زړۀ او په بدمرغه بدن کې د کولمو وي.)
اسلام د دوزخ همدا ماډل ومانۀ او د عبري ژبې جهنه په عربي کې
جهنم شو. له اسلامي باورونو سره سم، د حساب و کتاب ورځ
راتلونکې ده. په دې ورځ به ټول مړي له قبرونو را پاڅي او د هغوی د
ښو او بدو عملونو له شمېرلو وروسته به اجر يا جزا ومومي.
د تاريخ په هر پړاو کې داسې مفکران تېر شوي دي چې د دوزخ
مفکوره يې چلينج کړې ده. مثلاً د روم د تمدن په زمانه کې مورخ
پلوتارک دا سوال را اوچت کړ چې شرير او ګناهګار ولې په دې دنيا
کې جزا نه ويني؟ جزا يې ولې ځنډول کېږي؟ پلوتارک وايي، دا جزا
دلته پکار وه چې نورو عبرت اخيستی وای.
جان ګاوډس بلوم په (اور او تمدن) کې ليکي چې: د اور- دوزخ انځور
چې د روحانيونو، شاعرانو او انځورګرو پرله پسې نسلونو انکشاف

ورکړ، دا پوښتنه لا ځوابه پرې ایښي  چې دغه انځور په کوم ډول اجتماعي او رواني چاپېريال کې خپرېدای شي ؟ د متمدنو خلکو په هلو ځلو او غورځو پرځو  باندې د پوهېدو لپاره دې ته اړتيا شته چې دغو مبارزو  ته د پوځي- زراعتي ټولنې په پراخه زمينه کې چې ښاري نفوس په پرله پسې توګه زياتېږي، وکتل شي. هغو کسانو چې د دوزخ له اوره وېره کوله، په ښارونو کې د اور او جنګ په اړه هم څه نا څه پوهه او تجربه لرله.



# د کمزورو وسله

هر وخت چې په ټولنه کې بې عدالتي او استثمار وي، په مقابل کې يې د ټولنې د استثمار شويو او کمزورو کسانو عکس العمل هم وي. دغه مقاومت کله پټ او په پټه خوله وي خو کله بيا ښکاره او خشن شي. مورخانو په دې اړه چې عامو خلکو د خپلو سرکوبګرو په خلاف خپل سبک و وس څنګه کارولی دی، خبرې کړې دي. دوی چې پوه شوي چې د پاڅون او مقابلې وس يې نه شته نو د عقل په حکم يې د پټې خولې مقاومت ته مخه کړې ده  او داسې تاکتيکونه يې کارولي چې باداران يې ورته هک حيران پاتې شوي او په ځای يې کېنولي دي.
مثلا د غلامۍ او فيوډالۍ په نظامونو کې چې له بزګرانو او غلامانو سره د خپلو بادارانو د ګواښلو وس نه و، نو دوی د غلا کولو، ملکيت ته اور اچولو يا تاوان رسولو، ځان ساده اړولو، د وسايلو ماتولو، دروغ ويلو او د ورسپارل شوي کار په بشپړولو کې د ځنډ کولو په څېر د اوږدمهال خورا اغېزمن ميتودونه خپل کړي وو.
د مقاومت دغه ميتودونه ښيي چې کمزوري څنګه ممکن زورور وغولوي، چل ورسره وکړي، چالاکي ورسره وکړي او تېر يې باسي. دغه مثالونه دا هم راښيي چې د زور او فشار له ميتودونو سره سره، بنيادم د تسلمېدو نه دی او د خپلو تاکتيکونو د بدلولو را بدلولو له لارې د خپلې بقا جګړه روانه ساتي.

د غلامۍ په ټولنه کې د مقاومت د نورو میتودونو تر څنګ، غلامانو د استثمار په خلاف د اعتراض په سلسله کې له کروندو د تېښتې طریقه هم کارولې او په دې ډول یې د سر په بیه د ازادۍ د ګټلو هڅه کړې ده. که څه هم دا طریقه معمولا د فردي مقاومت یا دفاع یوه هڅه وه، خو کله کله ډله ایزې تېښتې هم شوې دي چې د غلامۍ ټول نظام ته یې خطره پېښوله. دغو غلامانو له نورو لرې ، ښېلې ټولنې جوړولې چې د قانون له منګولو بچ پاتې شي، هغه قانون چې د دوی د ځپلو او ترلاس لاندې ساتلو لپاره جوړ شوی و. په ښېلو ټولنو کې ډله ایز ژوند د غلامانو له خوندیتوب سره مرسته کوله.

لي روز په خپل کتاب (ازادي او غلامي) کې د غلامانو د مقاومت د طریقو په اړه لیکي: د قدرت په ځینو ډولونو کې کمزوري نغښتې وي او د کمزورۍ په ځینو ډولونو کې قدرت پروت وي. هغه غلامان چې د بل انسان د ښه نیت په برکت یې د ځان د خلاصون او ژوندي پاتېدو چل زده کړ، سامبو نومول شوي دي. دا بې شکه د سپکاوي او تحقیر لقب دی او د ډارن و وېرېدلي معنا پکې پرته ده. خو د هغو میتودونو په حقارت سره ردول چې د غلامانو نسلونه نسلونه یې وتوانول چې د خپل ژوند سختې وزغمي، په حقیقت کې په راتلونکو کولونو او نسلونو پورې خندا ده.

موږ د پټه خولې مقاومت د فابریکو او د کورونو د منځ په مزدورانو کې هم وینو. د دوی دغه مقاومت ډېر ځله د دوی د ناوړه او بد خوی په وجه وګڼل شو. دلته یو جالب نصیحت لولئ چې پلار خپلو اولادونو ته کړی دی: ما دوی ته وویل (کشرانو ته)، په یاد ولرئ چې تاسې خپل کار پلورئ، او څوک چې یې اخلي هغه غواړي ووینې چې په مقابل کې یو څه ترلاسه کوي نو کله چې مالک وي، کار کوئ خو چې له



سترګو یې پناه شئ بیا استراحت کولای شئ. البته، هر وخت چې مفتشان وي تاسې باید ثابته کړئ چې کار کوئ.

د نظم نشتوالی د چوپ مقاومت لوی خصوصیت دی. دغه مقاومت نه لیډر لري، نه د پلان په اساس پیلېږي. بې ګونده، بې بېرغه او بې اعلامیې وي. ځکه خو معمولا له پامه غورځي او په رسنیو کې هم په دې اړه پاروونکي او جلبوونکي راپورونه نه راځي.

جېمز سي. سکاټ د خاموش مقاومت په هکله د ټولنپوهانو او مورخانو د نظر په باب په خپل کتاب کې چې د کمزورو وسله نومېږي، لیکي: څرنګه چې تاریخ او ټولنپوهنه د روشنفکرو له خوا لیکل کېږي او دوی له هغو اسنادو استفاده کوي چې تر ډېره حده تعلیم یافته مامورینو او مقاماتو لیکلي دي، نو طبعا د بزګرو د مخصوصې طبقاتي مبارزې چې په پټه خوله او له پامه غورځېدلې ده، د راڅرګندولو او سپړلو لپاره لازم او کافي وسایل نه لري.

له بلې خوا وینو چې د بزګرانو او غلامانو ښکاره او وسله وال بغاوتونه په بې رحمۍ سره ځپل شوي او دوی د ټولنې یا حکومت د غلیمانو په نوم یاد شوي دي. دوی ته له ماتې وروسته د انسان په سترګه نه دي کتل شوي او ځورېدلي دي. تاریخ راته وایي چې د روم امپراطورۍ څنګه د سپارتاکوس مشهورقیام مات کړ او ګرده سرغړوونکي غلامان یې ووژل شول.

په امریکا کې په ۱۷۳۷ کې د جنوبي کارولینا د غلامانو بغاوت او دغه راز په ۱۸۳۱ کې د وریجینا په ساوتامپټن کنټري کې د ناټ تورنر نومي مریې په مشري بغاوت په بې رحمۍ سره وځپل شو. په هندوستان، چین او اروپا کې هم د بزګرو له بغاوتو سره همداسې شوي دي.

بې شکه چې بغاوتونه د باغیانو شدید قهر او بې باورۍ راښیي خو
دوی له دې لارې نه دي توانېدلي چې سیستم بدل کړي. دغه پاڅونونه
د خپل مقصد په لار کې د دوی په سربښندنې سره پای ته رسېدلي دي.
څرنګه چې د دربار او حکومت مورخان تاریخ لیکي نو په تاریخونو
کې له دغو بغاوتونو سره خواخوږي نه وینو بلکې په ټولنه کې یې د
بې نظمۍ او ګډوډۍ د رامنځ ته کوونکو په توګه غندنې لولو.

یو فرانسوی مورخ مارک بلوک د تاریخ دغه اړخ ته په پام سره لیکي
چې دغه پاڅونونه تقریبا همېشه له استثنا پرته په ماتې او بالاخره قتل
عام محکوم شوي دي. لوی قیامونه په مجموع کې دومره منسجم نه
وو چې کومه پایداره نتیجه ولري خو د کلیوالي ټولنې د کلونو کلونو
د پټې خولې صبرناکې مبارزې تر هغه څهٔ ډېر لاس ته راوړل چې په
ظاهره ښکاري.

پټ یا ښکاره مقاومت دواړه را ښیي چې هم افراد او هم ډلې، عزت او
درناوی غواړي. که هر سیستم د دې شي په ورکړه کې پاتې راشي نو
ناراضه عناصر به د مسلط نظام دنسکورولو لپاره پرله پسې هڅې
وکړي.

د محکومو او لاس لاندې طبقو په قهر او احساساتو باندې لاسبرې او
ممتازې طبقې ژر نه پوهېږي او د ځنډ نتیجه دا شي چې بدلون په لویه
بیه پرېوځي.



# د اکبر پاچا ډوډۍ

په ختیځ کې یو وخت پخلنځی د یو چا د شان او مقام څرګندوی و.
لوړو مقاماتو او غټانو به د خپل شان او مرتبې مطابق پخلنځي لرل.
مغولو امپراطورانو چې د لویو کورنیو او ډېرو امکاناتو صاحبان
وو، تر هر چا ښې اشپز خانې لرلې.

د دوی د کورنۍ دوو لومړیو امپراطورانو، بابر او همایون، پخلنځیو
ته د پام کولو لپاره کافي وخت ونه موند. اکبر چې د مبتکر ذهن
څښتن و، د کور د غړیو او درباریانو د ښهٔ خدمت لپاره خپله
اشپزخانه ښهٔ سنبال کړه. د هغهٔ پخلنځی په څو څانګو وېشل شوی و،
لکه رکاب خانه (د لوښو ځای)، آبدار خانه (د اوبو ځای)، مېوه خانه،
شربت خانه، افتابشي خانه او تمبل خانه. د شاهي پخلنځي په
مامورینو کې میر باکاول (کنټرولر)، خزانه داران، مزه څکونکي او
آشپزان شامل وو، چې دوی ټولو د صدراعظم تر مشرۍ لاندې کار
کاوهٔ.

د پخلنځي لپاره لازم شیان به د کال په سر کې لا وپېرودل شول. د
سوخداسي وریجو په څېر عالي وریجې په دومره اندازه اخیستل
کېدې چې د ټول کال مصرف پوره کړي. د پخلنځي مصارفو ته د
ورځې زر روپۍ بېلې شوې وې.

آشپزانو د کار په وخت کې د کمیس لمن او لستوڼي رابروهل. د آشپز
خولهٔ، پوزه او سر باید پټ وای. له پخېدو وروسته به آشپز، باکاول او

میر باکاول د ډوډۍ مزه څکله موږ د بابر په خاطراتو کې لولو چې یوۀ
افسر ته د چاشنیګیر (د ډوډۍ د مزې معلوموونکی) نوم اخلي. د
مزې له څکلو وروسته به خواړۀ په زینتي لوښو کې واچول شول. د
ټولو خوړو نومونه به ثبت او د میرباکاول تر څارنې لاندې به یې سرونه
بند شول.

ډوډۍ د یوه ډله کسانو په حضور کې چې باکاولان، آشپزان او نور
خدمتګاران پکې وو، پاچا ته وړل کېدله. دلته به د ماښۍ د
خدمتګارانو نوبت و چې د ډوډۍ مزه وګوري.

د دسترخوان تر اوارېدو دمخه په کوټه کې عرق ګلاب او نور عطرونه
پاشل کېدل. معمولا تر خلوېښت ډوله زیات خواړۀ پخېدل چې د پاچا
له ذوق سره سم په ترتیب په دسترخوان ایښودل کېدل. ډوډۍ په لویو
لوښو کې چې د سرو او سپینو زرو وو او یا کمیابه چیني وو، خوړل
کېدله.

د ډوډۍ د پخولو په وخت د اشپزخانې نظافت ته ډېر پام کېدۀ.
پخلنځي ته بې اجازې هېڅوک نه شو ورتلای. د آشپزخانې د
کارکوونکو په اړه به ډېرې پوښتنې کېدلې او یوازې خورا باوري
کسانو ته دا چانس و چې په اشپزخانه کې کار وکړي.

د ښنلو اوبه په لویو خاورینو منګیو کې چې سرونه یې په ټوکر
پوښلي وو، ساتل کېدې. وزې، هیلۍ او پسونه د سین په غاړه
حلالېدل. هلته یې غوښه سمدستي وینځل کېده او په کڅوړو کې
بندېده. د سبو لویه برخه د پخلنځي د باغ محصول وه.

د اکبر پاچا د دربار خواړۀ له لویه سره په درې اصلي ډولونو وېشلی شو:
له سبو یا مسالو سره پخه شوې غوښه چې د وچې ډوډۍ له مختلفو
ډولونو سره خوړل کېده. له وریجو سره یو ځای پخه شوې غوښه او دریم



ډول هغه خواړۀ وو چې غوښه پکې نه وه او اکبر به صوفیانه خواړۀ بلل.
اکبر د هندوستان د جین مذهب تر اغېز لاندې د غوښې خوړل کم کړل خو
بس یې نه کړل. په ځینو ورځو کې غوښه بالکل نه پخېده.

د اکبر زوی جهانګیر د یکشنبې په ورځو غوښه نه خوړه. (دا یې د پلار د
زوکړې ورځ وه.) د ګوجرات د خلکو کیچړې د جهانګیر په طبعه برابر و.
دۀ د یکشنبې په ورځو د کیچړې د پخولو امرکړی و.

ډوډۍ به هروخت تیاره وه او چې پاچا به امروکړ، سمدستي به راوړل
شوه. پاچا ډوډۍ یوازې یا د حرم له مېرمنو سره خوړه. د اکبر پاچا عادت
و چې د خپلې ډوډۍ تر خوړو دمخه به یې د هغې یوه برخه خوارانو ته
بېلوله.

د دربار د پخلنځي لپاره میوې د هند له ګوټ ګوټه او نورو ملکونو
راوړل کېدلې. د دربار د ښناک د اوبو په اداره کې ډېرو کسانو کار کاوۀ.
اکبر غوره بلله چې د ګنګا اوبه وڅښي. د ګنګا اوبه به د زېړو یا مسو په
سرپوښلیو لوښو کې راوړل کېدلې. داسې بندوبست شوی و چې که پاچا
د خپل ملک په هره برخه کې وي، د ګنګا اوبه باید وروړسېږي. د اکبر
پاچا په زمانه کې د پخلي لپاره د باران او د ګنګا اوبه استعمالېدلې.

پاچا ته اوبه په چیني پیاله کې چې د سرو زرو نعلبکۍ یې وه، وړل
کېدلې. دې نعلبکۍ د الماسو او یاقوتو غمي لرل. په ووړې کې به د
پنجاب د غرنیو سیمو کنګل په بېړیو او ګاډیو کې دربار ته لېږدول
کېدل.

اکبر پاچا د اوبو په ښنلو سربېره د مېوو یا ګلونو له اوبو تیارشویو ډول
ډول خوړو شربتونو سره هم جوړه وه.

# انساني عامل

د منځنيو پېړيو اروپا په کلتوري لحاظ د عيسويت تر ژور اغېز لاندې وه. کليسا يوه پياوړې موسسه وه چې د دين تعبير او تفسير يې کاوه او د ژوند په ګردو اړخونو يې اثر اچولی و. مذهب ترموزيک، انځورګري، مجسمه جوړونې، جشنونو او مناسکو لاسونه تاو کړي وو او د کلچر دغو ټولو اړخونو ورته وفاداري څرګندوله. ويل کېدل چې له زانګو رانيولې تر ګورستانه پورې ټول ژوند د مذهب په ولکه کې و.

خو اقتصادي او اجتماعي قوتونو ورو ورو د ژوند طريقه بدله کړه. جغرافيايي اکتشافاتو او نويو سيمو ته رسېدا، د تجارت غوړېدا او د نورو خلکو له کلتورونو او دينونو سره مخامخېدا، نوی ليد وزېږاوه. خلکو دنيايي ژوند ته په يو بل نظر کتل پيل کړل.

په قوانينو او دغه راز په اجتماعي او سياسي موسسو کې رغاونه راغله. په څورلسمه ميلادي پېړۍ کې رنسانس اول په ايټاليا او بيا په نوره اروپا کې کلتوري تغييرات راوستل او د مذهب کنټرول يې چلينج کړ. د ټولنې اړتياوو ته د ځواب ورکولو لپاره نوې پوهه، نوی ادب، نوې معماري، نوې انځورګري او نوي اخلاقي ارزښتونه راڅرګند شول. جرمن مورخ جورج ويټ (۱۸۲۷-۱۸۹۱) په خپل کتاب کې چې د لرغونو دودونو احيا نومېږي، ليکي: دغه وخت په ايټاليا کې د نوي تمدن تخم وپاشل شو چې د هنر او ادب په کروندو کې يې



حاصل ورکړ او نه يوازې په ايټاليا بلکې په ګرده متمدنه نړۍ کې يې د علم و ادب يو سټنډرډ او د پيروي وړ مثال رامنځ ته کړ.

د عيسويت له سلطې سره د مقابلې لپاره د رنسانس د کلچر لوی کار دا و چې د خلکو مخه يې د لرغوني يونان او روم د کلتور او ادب مطالعې ته واړوله. دغه حرکت د بشر او په تاريخ او په کايناتو کې د هغه د دريځ د نوې ارزونې غورځنګ و. د هيومانيزم (بشر پالنې) مفکورې د دې نظر له خپرېدو سره مرسته وکړه چې د انسان تقدير د هغه په خپل لاس کې دی او دی د خدايانو له مداخلې پرته دنيا بدلولای شي.

د اين. ايف. کانټر په قول، هيومانيزم، د کليسايي او فيوډالي موسسو او دودونو په مقابل کې په انساني ارزښتونو او فردي نوښتونو تاکيد کوي. د دۀ په نظر، هيومانيزم د يوۀ داسې تعليمي نظام ملاتړ وکاوه چې د نصاب په کتابونو کې يې د اخلاقي اصولو او روشنفکري د زده کړې لپاره د لرغوني روم او يونان د آثارو مطالعه شامله وه.

سوداګرو چې د دنيا ګوټ ګوټ ته سفرونه وکړل او بلا غواړي (ماجرا جو يان) چې په سمندرونو کې تر دنيا راتاو شول نو ورسره انسان هم د منځنيو پېړيو له اجتماعي او سياسي کنټروله راووت او د خرافاتو له منګولو يې ځان راويست. څرنګه چې يوازې دغه ازاد شوي کس د خاورينې دنيا جوړولو ته اهميت ورکاوه نو دۀ د بدلون هڅه وکړه او دغه بدلون اول د کلچر په ساحه کې و. انسان د موزيک، ادب، انځورګري، مجسمه جوړونې او نڅا په موضوع بدل شو. د هنرخاوندانو او مجسمه جوړوونکو د انسان د بدن انځورولو او ستايلو ته پام واړاوه.

هنر و ادب چې د کليسا له تابو ګانو او سانسوره راويستل شو، وغوړېد او په ټولنه کې يې د سياسي او اجتماعي شعور د خپرولو لپاره اغېزمن ګامونه واخيستل.

د هيومانيزم مفکورې په ښوونه او روزنه ژور اثر وکړ او د خلکو په سلوک او چلند کې يې بدلون راوست.

کانټر ليکي: هغه درسي پروګرام او پيداګوژي چې د رنسانس هيومانستانو تر يو زر او پنځه سوه ميلادي کاله پورې ټولې غربي اروپا ته ورسول، د اوسني وخت د فرانسې د لېسې، د جرمني د جمنازيم او د انګلستان د پبلک سکول بنياد يې بللی شو. دغو ښوونځيو د لرغوني پېر او منځنيو پېړيو کلتوري ميراث په وضوح سره معرفي کړ چې د نړيوالې فکري راکړې ورکړې او سوال و ځواب، د يوې مشترکې ژبې (معمولا لاتين يا فرانسوي ژبه) او د يوه معياري سمبوليک کلچر د رامنځ ته کېدو سبب شو.)

د رنسانس په زمانه کې د نوي معرفت له خپرېدو سره د مطبعې اختراع لويه مرسته وکړه. په پنځلسمه پېړۍ کې کتابونه د ښارونو د يوې ممتازې ورې کړۍ په انحصار کې و خو د خلکو اکثريت چې پوهه يې غوښته، له کتابونو بې برخې وو. مطبعې او د ايډيټ نوي ميتودولوژي چې قلمي نسخې يې له يو بل سره مقايسه کولې او بيا يې متن د لازياتو خلکو د لوستلو لپاره خپراوۀ، د تعليم يافته کسانو کړۍ لويه کړه. د دغو تحولاتو په نتيجه کې عمومي کتابتونونه پرانيستل شول. بله دا چې د تعليم نوي نظام نوي نسلونه نه يوازې په کلاسيکه پوهه سنبالول بلکې دې ته يې هم تيارول چې پوهه د عملي مقصدونو لپاره وکاروي او په دې ډول د روشنفکري يو چاپېريال



پيدا شو چې نوې مفکورې يې وزېږولې. د ژوند په هره ساحه کې د سفر لپاره د لارښوونې مشالونه بل شول.

د رنسانس د کلچر بله ورکړه دا وه چې د اجتماعي چلند او آدابو لپاره يې نوي اصول کېښودل. نور برټ الييس په خپل کتاب (د متمدن کېدو بهير) کې چې په ۱۹۷۸ ميلادي کال کې يې ليکلی دی، دغه ټوله پروسه په دقت سره بيان کړې ده. د منځنيو پېړيو سړي د پاکۍ او حفظ الصحې له اهميته ناخبره و. دا ناخبري د خلکو د ډوډۍ خوړلو له عادتونو، د خبرو اترو له طريقو او د لباس اغوستلو له رودو ښه رامعلومېږي. د رنسانس په زمانه کې د آدابو او عادتونو د بدلانه لپاره ځينې کتابونه وليکل شول. نور برټ الييس د دغو کتابونو د محتوياتو په اړه ليکي چې د سړيتوب، د نزاکت او د ادب چلند همېشه پکې له شډل او توند و تېز چلند سره په مخالفت کې معرفي کېږي.

د رنسانس په زمانه کې د خلکو په سلوک کې دا تغيير هم راغی چې د جوړ پخيرپه لړ کې د غېږ ورکولو دود ختم شو. بله دا چې د ښځو د احترام په خاطر د هغو لاس يا پښې ښکلول غير ضروري وبلل شول. دغه راز د ډلې په ځای يوازې اوسېدو ته تمايل وينو.

د کاستيجلاين په نوم ايټاليايي ليکوال په خپل کتاب (د درباريانو کتاب) کې د متمدنو او اشرافي کسانو د خصوصياتو په اړه معلومات راکوي. دی ليکي چې يو نجيب کس بايد جذابه څېره ولري او له هره اړخه پوره وي. دی بايد د هنر او ادب څښتن وي او له لاپو شاپو دې ځان وساتي. دغه راز په خبرو او په حرکاتو کې پکار ده چې محتاط واوسي.

د رنسانس کلچر په اوله کې لوړې طبقې بدلې کړې او بيا يې د ټولنې
د نورو طبقو په عادتونو او دودونو کې تغييرات راوستل.
له دغه کلچر سره چې اروپا يې له مذهبي افراطه را ويسته، د
فکرونو د تنوير او ليبراليزم دوره پيل شوه.
ريفورمېشن چې له رنسانسه وروسته پيل شو، د کليسا د لاسبرۍ او
هژموني دوران يې پای ته ورساوۀ او د ملي دولت او ملي کلچر
مفکوره يې پياوړې کړه. له خپلو ملي ژبو د استفادې په برکت، د
اروپايي ملتونو د خلاقيت مخې ته ولاړ خنډونه لرې شول او د هر
ملت د بېل هويت او بېل کلچر لا غوړېدلو ته مخه پرانستل شوه.



# د ۱۸۵۷ د واقعې تفسير

تاريخي پېښې د نويو اسنادو، نويو نظرياتو او اجتماعي و سياسي
تغييراتو په رڼا کې له سره تفسيرېږي او نوی تعبير يې کېږي. د ۱۸۵۷
کال پېښه هم دغسې درواخله. کله چې په هند براعظمګي باندې
انګرېزانو حکومت کاوۀ نو دغه واقعه فتنه بلل کېدله او اتلان يې هغه
پرنګي قومندانان او جنرالان وو چې د پېښې له عاملانو سره
جنګېدلي او هغوی يې ځپلي وو. په دې منځ کې نور اوازونه چوپ وو.
د انګرېزانو د راج په زمانه کې د دې پېښې رامنځ ته کوونکي
هندوستانيان باغيان، بلواګر، اشرار، خاينان او ارذال معرفي کېدل.
په دې اړه يو نوی نظر په شلمه پېړۍ کې پيدا شو چې د هند تعليم
يافته طبقې د نشنليزم د مفکورې تر اغېز لاندې د هندوستان د تاريخ
له سره لټون پيل کړ اود خپل تاريخ له سره جوړونې ته يې ملې
راونغښتې. نتيجه دا وه چې هندي مورخانو د انګرېز اتلانو په ځنګ
کې هغه هنديان معرفي کړل چې د ازادۍ لپاره جنګېدلي او په دې لار
کې وژل شوي وو. خو خبره له ۱۹۴۷ کاله وروسته چې تاريخ د
هندوستانيانو له ليدلوري له سره تفسير او بيا وليکل شو، بېخي
سرچپه شوه.
په ۱۹۴۷ کال کې د براعظمګي له ازادۍ وروسته د ۱۸۵۷ کال واقعه
چې تر دې دمه فتنه يادېدله، د هند د ازادۍ لومړۍ جګړه وبلل شوه. د
هغو کسانو او سيمو يادونې ته پام واوښت چې د ازادۍ په لومړۍ

جګړه کې يې برخه اخيستې وه خو ذکر يې لږ شوی و يا نه و شوی. په
ملي کچه د پېښې په وسيع روايت سربېره، مورخانو د هغو وګړيو او
ښارونو په اړه چې د انګرېزانو په خلاف په دې جګړه کې يې برخه
اخيستې، بېخي ډېر څه ليکلي دي. د دا ډول تاريخ ليکنې مشکل دا
دی چې يوازې په هغو کسانو رڼا اچوي چې قدرت ورسره و او د رول
لوبولو وس يې درلود.

هغه ګڼ کسان معمولا له پامه غورځېدلي دي چې د دغو نوميالیو تر
لاس لاندې يې کار وکړ او دوی ته يې نوم و نشان وګاټه. موږ د بېګم
حضرت محل او نانا صاحب د رول ستاينه او قدرونه کوو چې
انګرېزانو ته سلامي نه شول او له هندوستانه نيپال ته لاړل. خو موږ دا
خبره هېره کړې ده چې دوی يوازې نه وو، له دوی سره په زرګونو
عسکر او پيروان وو چې هغوی هم د پردي وطن د غربت سختې تېرې
کړې او په بدمرغۍ او بېوزلۍ کې ومړل. دغه راز، موږ د هغو
رضاکارو د درناوي په کار کې پاتې راغلي يو چې له پردو سره د
جګړې په نيت د هندوستان له ګوټ ګوټه راغلل. د راجستان له يوه
کوچيني مسلمان رياست، ټونک، څخه د مسلح کسانو ډلې راووتې
چې د اسلام په لار کې سرونه نذر کړي. تاريخ شهادت راکوي چې د
ټونک جنګيالي نه تسليم شول او نه وتښتېدل بلکې تر پايه پورې په
مېړانه وجنګېدل.

اترا پردېش، اود او روهلکنډ د ۱۸۵۷ کال په پېښه کې خپله برخه د
نورو سترګو ته وځلوله خو نورې سيمې او ډلې چې په دې جګړه کې
يې خپله برخه په اوله کې نورو ته ورښکاره نه کړای شوه، اوس لګيا
دي د خپلو هغو هڅو ځلول غواړي. ولې؟ څنډې ته شوي ګروپونه چې
له سياسي حقونو محروم او په اجتماعي لحاظ يې دريځ ډېر ټيټ دی،



دې ته اړتيا لري چې خپل نقش ته په تاريخ کې ځای پيدا کړي او له
نورو سره برابرې وغواړي. موږ د پاکستان په تحريک کې هم دغه شی
وينو.

د دغه تحريک ليکل شوی تاريخ يوازې د محمد علي جناح تر مشرۍ
لاندې مسلم ليګ په رول باندې تاکيد کوي. په مقابل کې، وړو صوبو
په سياسي قدرت کې د ونډې د لرلو لپاره د پاکستان په تحريک کې
د خپلې برخې ځلولو ته اقدام کړی دی. د ښځو، محصلانو، کارګرو او
قومي اقليتونو په څېر محروم ګروپونه هم په دې تحريک کې د خپلې
ونډې د انځورولو په هڅه کې شول. دغه ټول ګروپونه، د قربانۍ د
ادعا له لارې غواړي چې د پاکستان په تاريخ کې د قدر وړ ځای او
سياسي حقونه ولري.

په هندوستان کې هم، چې ټيټې طبقې څنډې ته پورې وهل شوې دي
او د پخواني سبک مورخان يې په تاريخي رول سترګې پټوي، د
پاکستان غونډې کيسه روانه ده. له هغه وروسته چې د ۱۸۵۷ واقعه د
ازادۍ په جګړې بدله شوې ده، د هند محرومې طبقې هم غواړي چې
په دغه ملي حماسه کې ځای پيدا کړي. بادري نرايان تيواري په خپله
يوه ليکنه کې د ازادۍ په لومړي جنګ کې د ټيټې طبقې په رول خبرې
کړې دي.

تر اوسه پورې د ازادۍ د جګړې په روايت کې، د لوړې طبقې رول بيان
شوی او ستايل شوی دی خو د ټيټو طبقو د اړوندانو د رول يادونه نه
کېږي. د ټيټې طبقې ليکوال د ۱۸۵۷ کال د واقعې د طبقاتي ليکنو په
ځواب کې په تاريخ کې د خپل رول د ځايولو هڅه کوي. د هند د ټيټې
طبقې ټولنه اوس د خپلو ځينو هغو اړوندانو د کوښښونو درناوي
کوي چې د ازادي په جګړه کې شامل وو.

دا خبره کېږي چې کله د جانسي رانۍ ( ملکه ) له قلعې وتښتېده نو د
ټيټې طبقې يوې مېرمنې ځان د هغې غونډې ساز کړ او د هغې په نوم يې
د قلعې دفاع ته ادامه ورکړه. د هند د ټيټې طبقې ځينو ليکوالو د جانسي
په ملکې نيوکه کړې ده چې ډارنه وه او د انګرېزانو خوشامندې يې کولې
او ادعا کوي چې دا لکشمي باى ( د جانسي ملکه ) نه وه بلکې يوه د
ټيټې طبقې مېرمن وه چې د هغې په ځاى او په نوم جنګېدله. د ټيټې
طبقې په بيا ليکل شوي تاريخ کې ليکوالو لوى ملي روايت غندلي چې
د ازادي د جنګياليو په اړه يې د دوى روايات رد کړي دي. په مقابل کې
دوى د ټيټې طبقې هندوان د ۱۸۵۷ کال د واقعې اصلي اتلان معرفي
کړي دي.

دغه راز د پخواني سبک په تاريخونو کې د ښځو په رول هم سترګې
پټېږي. دا يو تاريخي واقعيت دى چې په حضرت محل او لکشمي باى
سربېره ځيني نورې مېرمنې هم وې چې د ازادۍ په جګړه کې يې فعاله
ونډه واخيسته. په دې جګړه کې د فاحشو نقش هم لکه څنګه چې پکار
ده، نه دى بيان شوى. موږ تاريخي سند په لاس کې لرو چې د بريلي يوه
فاحشه چې ازيزان نومېده، د انګرېزانو په خلاف وجنګېده. کله چې
ازيزان ونيول شوه، دې دا ونه منله چې د ازادۍ لپاره په هڅه پښېمانه
شي. ازيزان د يوې باغي په حيث اعدام شوه. دغه راز د لکنهو يوې
فاحشې د باغيانو مالي ملاتړ کاوه او مورال يې ورکاوه. کله چې جګړه
ختمه شوه د بريتانيا حکومت په بدل کې د هغې جايداد ضبط کړ.

له بده مرغه، په تاريخ کې د عامو خلکو او نا اشنا سرتېرو نقش ته پام نه
د ى شوى. د تاريخ داسې بيا ليکلو او بيا تفسير ته اړه ده چې عامو
خلکو ته پکې يو محترم مقام ورکړ شي



# مفت خوارۀ او غوړه مالان

چې قدرت د محدودو کسانو په لاسونو او ثروت د لږو کسانو په
کورونو کې را ټول وي، په ټولنه کې غوړه مالي وده کوي او له زورورو
د يو څه اخيستلو لپاره په مهارت بدلېږي.

غوړه مالي معمولا دوه اړخيزه معامله وي. غوړه مال د خپلو
چاپلوسيو په بدل کې د پيسو، جايداد، لقب، ترفيع يا ملاتړ په تمه
وي خو دا خبره په خوله نه راوړي، بس فرصت ته ګوري چې کله به يې
کرلى تخم حاصل ورکړي.

په بل چا باندې اثر پرېباسل اسانه کار نه دى. هغه څوک چې د خپلې
ګټې په خاطر د غوړه مالۍ نيت لري، د مقابل لوري شخصيت په دقت
سره څېري. مثلا په دې ځان پوهوي چې مقابل لورى کوم خويونه او
څۀ خصوصيات لري، څۀ يې خوښېږي؟ او په څه خوشحالېږي؟ غوړه
مال بايد په دې هم پوه وي چې د چاپلوسۍ مناسبه شېبه کومه ده؟ د
غوړه مال همېشه دې ته پام وي چې که مقابل لورى شتمن دى نو د
سخاوت او دريا دلۍ ستاينه يې پکار ده، او که يار پال او يار باز وي
نو له ملګرو سره د کړيو ښو او قربانيو يادونه يې ضروري ده. د قدرت
خاوند ته به دا وايي چې ډېر پوه او لايق سړى دى. غرض دا چې غوړه
مال بايد د بل د زړۀ د ګټلو لپاره په شرايطو ځان ښه پوه کړي.

په دربارونو کې چې مستبد واکمن په تختونو ناست وو، د غوړه مالي
مهارتونو وده وکړه. د شاهانو د خوشحالولو او له دوى څخه د څۀ

ترلاسه کولو لپاره پکار وو چې د دوی د هر عمل ستاینه وشي. په دغسې شرایطو کې نه یوازې په خبرو کې د غوړه مالۍ خاصې ژبې انکشاف وکړ بلکې په شاعرۍ کې هم د غوړه مالۍ خورا ښکلي مثالونه وړاندې شول سربېره پر دې، کله چې به غوړه مال، خپل مخاطب ته خبرې کولې نو د خپل بدن حرکات یې هم باید په کنټرول کې وای او د ستاینو د باران د ورولو لپاره ورته پکار وو چې د ویلو مناسبه طریقه ومومي.

په فارسي او اردو ادب کې د قصیدې ژانر د شاهانو او اشرافو د بریاوو د یادولو له لارې د دوی د مدحې لپاره وکارېدۀ. دا د زورور د فتوحاتو، سخاوت او زړه ورتیا په بیا ن کې د مبالغې هنر و، دا سې چې د زور څښتن به یې د دنیا تر ګردو لویو فاتحانو، واکمنو او مشهورو کسانو، لوی او بر معرفي کړ.

مثلا د هند د مغولو د زوال د زماني واکمنو ته ټول هغه صفات منسوبېدل چې د دوی نامي نیکونو لرل. شاعرانو به دوی په مدحو خوشحالول او دوی به د مدحو په مقابل کې شاعرانو ته د ویاړ چپنې وراغوستې او قیمتي سوغاتونه ورکول.

مورخانو هم د غوړه مالۍ لاره خپله کړې وه. ابوالفضل په اکبر نامه کې اکبر پاچا ته داسې لقبونه اخلي او داسې عبارات کاروي چې دی په فوق العاده انسان بدلوي. ابوالفضل لیکي: دی د نجیبې کورنۍ، خوشحاله څېرې، نېک خوی، عالي نبوغ، سپېڅلي نیت، ثابتې عقیدې اوکامل حکمت خاوند دی. دی د ډول ډول استعدادونو، د عزت، د سخاوت، د فوق العاده جرات او د سم قضاوت څښتن دی. د دۀ عفوه حد نلري.



ابوالفضل تعجب څرګندوي چې یو انسان څنګه دومره زیات صلاحیتونه لرلای شي. دا د غوړه مالۍ انتها وه او اکبر پاچا ورنه خوند اخیست.

د غوړه مالۍ نخښه کله نا کله خطا شي. ولز ګات ریجر په خپل کتاب کې چې د غوړه مالۍ ستاینه نو مېږي، ځینې جالبې پېښې لیکلې دي. یوناني مورخ استرابون د مقدوني سکندر د خوشحالولو لپاره په خپل تاریخ کې د سکندر او پورس تر منځ د دوه کسیزې جګړې واقعه هم را اخیستې وه. د استرابون مقصد دا و چې پاچا وستایي او زړه ورتوب یې وځلوي. ده د خپل کتاب دغه برخه د سکندر په مجلس کې چې جنرالان یې هم ناست و و، ولوستله. سکندر یې په اورېدو دومره په قهر شو چې کتاب یې سین ته خطا کړ او مولف ته یې وویل چې ته هم سین ته د غورځولو یې.

یوه بله جالبه کیسه د هولبین ده. دۀ د ان اف کلیویس څېره دومره ښکلې انځور کړه چې اتم هانري د ان د انځور له لیدو وروسته له هغې سره واده وکړ. خو وروسته بیا هانري ته پته ولګېده چې مېرمن ان هغومره ښکلې نه ده لکه په انځور کې چې ښکاري. اتم هانري له وادۀ شپږ میاشتې وروسته هغې ته طلاق ورکړ او هولبین د پاچا له قهره د ځان بچولو لپاره وطن پرېښود.

د فرانسې څورلسم لویي دومره پیاوړی واکمن و چې ویل به یې دولت یعنې زه. خو د غوړه مالي حدود ورمعلوم وو او یو ځل یې د دربار شاعر راسین ته وویل چې: زه به دې ډېر وستایم که مې ته لږ وستایې.

ناپلیون یو ځل یوۀ مارشال ته د خپلو درباریانو په اړه وویل چې: دوی ما د هغو تر ګردو ښکلو ویناوو ویناوال بولي چې ما یې یوه کلمه هم

نه ده ویلي. مارشال د درباریانو دا عمل په دې وجه سم وباله چې: د
نظام د جلال او سرلوړي لپاره دی. د دغسې چارو پوره اجازه ورکړئ.

زموږ په خپله ټولنه کې هم د غوړه مالی. دود غزونې کړې دي. موږ
په دې کار کې تر خپلو نامي اسلافو په هيڅ وجه شاته نه يو. هرځل چې
يو نوی پوځی ديکتاتور د چارو واګې تر لاسه کړي، موږ سمدستي
هغه د دې زماني محمد بن قاسم يا صلاح الدين ايوبي وبولو. د طنز
خبره خو دا ده چې ديکتاتور پخپله هم ورو ورو په دې فکر کې
ولوېږي چې د پخوانو اتلانو روح پکې پوکل شوې ده. نتيجه دا
راووځي چې هر ديکتاتور يا سياسي ليډر د غوړه مالانو او خورا
نژدې دوستانو په کړی. کې ايسار شي او هغوی ورته دم په دم دا وايي
چې ته خو د ملت ناجي يې.

په فيوډالي کلچر کې د واک او ځواک خاوندان د ځانونو لپاره داسې
ستاينې غواړي چې په دوی کې نشته. زموږ په سياسي او اجتماعي
ادارو کې، چې مشران او آمران له مامورينو او لاس لاندې کسانو د
خوشامندو او ستاينو توقع لري، د خپلو مقصدونو د پوره کولو لپاره
د يوې وسيلې په توګه چاپلوسي ورځ په ورځ رخنه کوي. دا د ځان په
لور د زورورو د پام د اړولو لپاره تر ګردو اسانه لاره ده.

تاريخ شاهدي راکوي چې غوړه مالي د خپل مخاطب سترګې ړندوي
او په غلطو لارو يې سموي خو له هيچا سره جرات نه وي چې ورته
ووايي، جناب په غلطو لارو روان شوی يې! د دې وضعيت د دوام
نتيجه زوال او ناکامي وي.



# غوړه مالي او تاوانونه يې

موږ د تاريخ په هر پړاو کې وينو چې په کبر جنو او مغرورو کسانو
باندې د معمولي وګړيو په بدلولو کې غوړه مالي لوی لاس لرلی دی.
په اصل کې به يو ورک او معمولي سړی وي خو چې د واک په ګدۍ
کېني سمدستي نوم او شهرت وګټي او د دنيا ټولې ښېګړې په ده کې
راټولې شي. د ده په تېر ژوند سترګې پټې شي او خپل اوسنی مقام يې
په قهرمان بدل کړي. دی د چوکی. په برکت د سترګو په رپ کې د وياړ
او شهرت وروستيو پوړيو ته وخېژي.

د قدرت څښتن د غوړه مالی. په ميو داسې مست شي چې ورو ورو يې
زړه ته ولوېږي چې د ملت ناجي او ژغورونکی دی، د خدای له خوا
هدايت شوی ليډر دی او د هر ډول مشکلاتو د اوارولو فو ق العاده
صلاحيتونه ورسره دي. ده ته د يوه غوره کس په توګه چې د ملت بېړۍ
د امن او سوکالی. په لور بيايي، درناوی کېږي. ده ته نژدې ملګري
ډاډ ورکوي چې په خلکو باندې تر بل هر چا ګران دی او دا ورباندې
مني چې دوی يې مخلص ملګري او د ده لپاره له سره تېر کسان دي.

د واک څښتن د روشنفکرو ، مامورينو او ملګرو په غوړه مالی. باندې
وغولېږي، د دغو کسانو ملاتړ ته چمتو شي او په رنګارنګ
امتيازونو يې ونازوي. څرنګه چې دوی له واکمنه د ځان په ګټه ډول
ډول استفادې کوي نو هڅه يې دا وي چې هغه په قدرت کې وساتي.

دغه چاپلوسان ښه پوهېږي چې که واکمن بې واکه شو، په دوی به امتیازونه بند شي.

غوړه مالان په حقیقت کې واکمن د هغه د شخصیت په خاطر نه بلکې د هغه د قدرت په خاطر ستایي. ځکه همدا قدرت دی چې د غوړه مال ډوډۍ په غوړو کې ده. د واک څښتن ته د دغه حقیقت پته هغه وخت لګېږي چې له واکه لرې شي. کله چې د سیاسي حالاتو د بدلېدو یا د کودتا په نتیجه کې واکدار له تخته راوغوځي نو سمدستي ځان یوازې او د غوړه مالانو له ملاتړ او خواخوږیو بې برخې شوی ويني. دی یو ځل بیا په معمولي کس واوړي او هغه ټول ویاړونه او لقبونه چې تر دې دمه د ده له نوم سره غوټه وو، د سترګو په رپ کې پوپنا شي.

رسنۍ، روشنفکران او بیروکراتان چې یو وخت د پتنګانو غوندې د ده د واک له ډیوې راتاوېدل، د دهٔ سپکاوي ته متې راونغاړي. هر څوک دې ته تیار شي چې په ده ګوزار وکړي، په تېرو کارونو یې نیوکه وکړي، په دې رڼا واچوي چې دهٔ له قدرته څنګه بده استفاده وکړه او څنګه یې په فساد و درغلۍ کې لاس و. په دغسې شرایطو کې له قدرته غورځېدلي لیډران بهتره ګڼي چې وطن پرېږدي، پاتې عمر په پردېس کې تېر کړي.

موږ د پاکستان په معاصر تاریخ کې د داسې مقتدرو کسانو مثالونه لرو چې د قدرت له زواله وروسته په بې اهمیته کسانو بدل شوي او له خپلو تېرو خاطرو سره مشغولا ته یوازې پرېښودل شوي دي. کله چې مارشال ایوب خان په ۱۹۵۸ کې کودتا وکړه نو ناڅاپه په فوق العاده انسان بدل شو او د یو داسې چا په توګه ډېر وستایل شو چې ملت د ترقي منزل ته رسولی شي. دهٔ ته د اسیا د دوګول خطاب وشو.



ذوالفقار علي بوټو مشوره ورکړه چې ته یو تجربه کار جنرال او لوی سیاستوال یې، نو د دې لپاره چې له نورو جنرالانو دې فرق وشي، ځان فیلډ مارشال وبوله. پیر علي محمد راشدي خو ان وړاندیز ورته وکړ چې د پاکستان پاچا شه.

ایوب خان چې غوړه مالانو ایسار کړی و، وار په وار یې زړهٔ ته ولویدل چې هغه دی دی چې ملت له پرېشانۍ او بحرانه را ایستلی شي.

د قدرت په وروستیو ورځو کې که څه هم ایوب خان محبوبیت بایللی و خو نژدې کسانو او ترې راتاو ملګرو یې ورته ویل چې په خلکو هماغه شان ګران یې. ویل کېږي چې له ایوب خان څخه راتاو کسانو به د دهٔ غلطولو لپاره د اخبارونو هغه مطالب بیاتي کول چې د ایوب خان د خوشحالولو خبرې به پکې وې. دی له دې ناخبره ساتل کېدهٔ چې تګلارې یې غندل کېږي.

خو کله چې یې د فشار په نتیجه کې استعفا ورکړه نو خلکو د خوشحالۍ غونډې وکړې، جشنونه یې جوړ کړل. ایوب خان غلی خپل کلي ته ستون شو او هلته د یوه معمولي کس غوندې ومړ. په مرګ باندې یې نه ملي ماتم اعلان شو، نه یې ستاینې وشوې.

د ایوب خان د ځای ناستو هم همدا برخلیک و. په جنرال یحیی خان باندې له تقاعده وروسته د کترو او کنایو باران ووربد. د دهٔ په کړیو عیاشیو باندې هر چا بد وویل. دی په تاریخ کې د داسې چا په توګه یاد شو چې د شرقي پاکستان د وېشلو مسولیت یې په غاړه دی. کله چې یحیی خان ومړ ډېرو لږو کسانو یې مرګ ته اهمیت ورکړ.

جنرال ضیاالحق چې د واک په وخت کې (مرد مومن) بلل کېدهٔ، اوس په پاکستان کې د مذهبي افراط د پالونکي او د خپلو سیاسي

مقصدونو د پوره کولو لپاره د ټولو قانوني شرايطو د ماتوونکي په توګه يادېږي.
حقيقت خو دا دی چې د قدرت خاوند له غوړه مالۍ خوند اخلي ځکه د ځان د لويولو تنده يې ماتېږي. چاپلوسي د واک خاوند ته دا احساس ورکوي چې دی تر نورو زيات دی.
د روسيې د نامتو لکيوال ليو تولستوی په قول: حتی په خورا تودو ، خورا دوستانه او خورا صميمانه روابطو کې هم چاپلوسي يا ستاينه داسې ضرور ده لکه ګريس چې د څرخ د تاوېدلو لپاره پکار دي.
ولز ګات رجير په خپل کتاب کې (د غوړه مالي ستاينه) د چاپلوسۍ زيانونه ياد کړي او په دې يې خبرې کړې دي چې ستاينې څنګه د ستايل شوي کس بېخ باسي. د ښاغلي رجير په قول، غوړه مالي د نشې په څېر ده چې له سره عقل اخلي. غوړه مالي خطرناکه ناروغي ده چې خپل ناروغ وژني. غوړه مالي د قدرت خاوند د بدې او ترخې خبرې اورېدو ته نه پرېږدي. غوړه مالي د انتقاد د زغملو وړتيا کموي او بنيادم کبر او کلانکارۍ ته هڅوي. لنډه دا چې د قدرت خاوند د غوړه مالۍ په دوړو کې ورک  او د چاپلوسانو د کړۍ په منځ کې ايسار بندي شي.



# انځورونه بدلېږي

حوادث، مدارک او شننې د تاريخ ليکنې درې اصلي عناصر دي. پېښنه ممکن د اکثرو نورو پېښنو غوندې وي، بېل هويت و خصوصيت ونه لري، خو شننه ورکې معنا و جوهر پيدا کوي. يو مورخ کولای شي چې د بېلو بېلو نظريو او ليدلوريو د شننې له لارې د پېښې په اړه خپله ارزيابي بشپړه کړي.
همدا وجه ده چې تاريخ په بدلېدونکي حالت کې دی او همېشه نوي نوي الهامونه راکوي. چې نوي شواهد ، مدارک او مواد وموندل شي نو مورخ د خپل وخت د سياسي، اجتماعي او اقتصادي شرايطو په رڼا کې ممکن د پېښنو نوی تعبير او تفسير وړاندې کړي.
په تاريخونو کې د طلايي او تاريکو دورونو مفکوره وړاندې شوې ده. دا رنګه مفکورې د خاص وخت او خاصو شرايطو پيداوار وي او مورخان د خپل وخت د حالاتو تر اغېز لاندې تاريخ داسې ليکي چې له هغو حالاتو او غوښتنو سره سمون وخوري. مثلا يو وخت داسې و چې منځنۍ پېړۍ يې عموما د تاريخ تورې شپې بللې او د تاريکې زمانې نوم يې ورکړی و ، خو د منځنيو پېړيو په اړه دغه احساس تر ډېره حده د رنسانس او ريفورمېشن له زمانې سره تعلق لري، له هغه وخت سره چې مورخانو خپل تېر ژوند چې په منځنيو پېړيو کې د کليسا تر هر اړخيزې سلطې لاندې و ، تور او غمجن ليدځ.

دوی هغه زمانه توره بلله چې د کلیسا پادریانو مزې چړچې کولې او
په فساد کې يې لاس و خو که به خلکو د کلیسا له لارښوونو نوکی
غاړه وغړوله نو د عقیدې د لټون د ادارو له خوا يې سخته سزا لیدله.
په ښځو به چې د جادوگرو گومان وشو نو نیول او اور ته اچول يې په
مخ کې وو. له کلیسا او پاپ سره هر ډول مخالفت کفر و او له مرتکب
سره يې بې رحمانه سلوک کېدۀ. ښوونه او روزنه د روحانیونو په کلک
کنټرول کې وه، هیچا ته اجازه نه وه چې د مقدس کتاب د تعلیماتو په
اړه شک وکړي او پوښتنه راولاړه کړي.

د کلیسا په غلبې سربېره سیاسي وضعیت هم داسې و چې عام خلک
ورکې ناراضه وو. د پاچا د بشپړ واک د چلینج امکان نه و او د امتیاز
خاوندانو له ټولو اسانتیاوو د ځان په گټه استفاده کوله. دوی به ټکس
نه ورکاوه او تر قانون لوړ گڼل کېدل. د دې شي نتیجه دا وه چې عادي
خلک د امتیاز د خاوندانو په لاس وځورول شي او سپکاوی يې
وشي. له عادي خلکو سره نه د کلیسا او نه د سیاسي واکدارو ملاتړ
ملگری و. دوی داسې خلک گڼل کېدل چې په تاریخ کې ځای نلري.

د منځنیو پېړیو د اروپا انځور د رنسانس او ریفورمېشن په زمانو کې
وکښل شو او دا هغه زمانې وې چې د کلیسا زور پکې وخوت او
سلطنت ته د ځو نورو دولتي ادارو په منځ کې هغه پخوانی قوت پاتې
نه شو.

د نویو فکرونو او نظرونو یوه نوې ټولنه چې مطلقو اقدارو او دودونو
ته يې غاړه نه ایښوده، راځرگنده شوه. دا د هغه وخت ضرورت و چې
اروپا په نوي او زوړ دوران ووېشي، ماضي وغندي او په سبا کې
رڼایي ووینې.



خو وروسته چې د رومانتیسم حرکت پیل شو او د یو بل تجدد زمانه
راغله نو د منځنیو پېړیو په اړه پیدا شوی نظر په خپل حال پاتې نه
شو. رومانتیک روشنفکران او مورخان له خپل وخته خوشحال نه وو
او په تېر وخت پسې يې سرې ساوې ایستلې. دوی په منځنیو پېړیو
کې کورنی ژوند، اخلاقي اقدار، د شاهانو او اشرافو لخوا د هڅونې
او مالي ملاتړ دود، سوله، هارموني، د موزیک وده، ارټ، معماري
او ادبیات خورا وستایل او ایډیال يې وگڼل. له نوي عصر او د هغه له
پرابلمونو په تنگ شویو مورخانو د اروپا د منځنیو پېړیو له دورانه
داسې طلایي عصر جوړ کړ چې که يې د ژوند د طرز پیروي وشي نو د
تجدد د زمانې ستونزې به اوارې شي.

په ۱۸۳۰ کې هگل په جینا پوهنتون کې د تاریخ د فلسفې په باب خپل
مشهور لکچرونه ورکړل. دۀ ادعا وکړه چې یوازې د اروپا تاریخ اصیل
دی ځکه د تحول خبره پکې کېږي. د دۀ په قول، دغه تاریخ د فطرت د
رازونو غوټې پرانیستلې. دۀ وویل چې هندوستان بې تاریخه دی،
لکه افریقا چې ده. د هگل په قول: افریقا د دې نړۍ د تاریخ برخه نه ده.
نه پکې حرکت شته او نه پکې تحول او پرمختگ لیدل کېږي .. هغه
څۀ چې په افریقا کې وینو هغه یو وروسته پاتې، بې تاریخه روح دی
د هگل نظریات تر ډېرو پورې اروپایي مورخانو منلي وو او د هغو
پیروي يې کوله. د هند د تاریخ په اړه د هگل نظرهندي مورخانو
چلینج کړ او ثابته يې کړه چې د هند تاریخ یوازې د واکمنو کورنیو د
تغییر تاریخ نه دی بلکې نوې مفکورې او نوې نظریې يې هم وړاندې
کړي دي چې په ټولنه يې اغېز کړی او پرمختگ يې راوستی دی.

دغه راز افریقایي او ځینو اروپایي مورخانو دا خبره رد کړې ده چې افریقا بې تاریخه توره لویه وچه وبولي. د دې لویې وچې د تاریخ په اړه ځینې لیکنې په نړیوال تمدن کې د دې قارې برخه ثابتوي.
د مسلمانانو د تاریخ په اړه باید ووایو چې مورخانو یې د طلایي زمانو یادونې کړې دي. دوی د اسلامي نړۍ د وروسته پاتې حالت په وجه د موجود احساس د شنډولو لپاره د طلایي زمانو مفکوره وړاندې کړه. دوی د خپلې ایګو د ارضا لپاره ځینې ایډیال دورانونه وموندل لکه عباسي دوران چې د سولې، نیکمرغۍ او د ادب او هنر د غوړېدو د دوران په توګه وستایل شو. دغه راز، په اسپانیا کې د عربو د واک دوران هم چې د بېلو بېلو کلتورونو او مختلفو مذهبونو ټولنې ته یې وده ورکړه او اروپا یې له کلتوري او روښنفکري اړخه مخ په وړاندې بوتله، د خورا متمدن او باکلتوره عصر په توګه وستایل شو.
مورخان د خپل وخت له شرایطو سره سم او د ټولنې د غوښتنو مطابق د تېرې زمانې انځور بدلوي را بدلوي. د دوی تعبیرونه او تفسیرونه سړو او خاموشو پېښو ته نوی ژوند وربخښي او نوي لیدلوري یې ماضي یو ځل بیا جوړوي.



# چچنامه

محمد علي کوفي چچنامه (د سند تاریخ) په ۱۲۱۶ میلادي کال کې له عربي په فارسي ترجمه کړه. دا معلومه نه ده چې د چچنامې لیکوال څوک دی خو ځینو عالمانو د اثر د متن د سبک په اساس د مولف د پېژندلو هڅه کړې ده او دې نتیجې ته رسېدلي دي چې دغه تاریخ به ممکن ال مدني لیکلی وي.
چچنامه د سند په تاریخ کې مهم ځای لري ځکه دغه اثر په دې اړه چې عربو سند څنګه ونیو او هم په دې باره کې چې د عربو تر غلبې دمخه په سند کې څه حال و، لنډ معلومات راکوي.
دغه تاریخ د د عربو فاتحانو له لیدلوري لیکل شوی او د مغلوبانو لیدلوری پکې په ښکاره له پامه غورځېدلی دی. د دغه متن تحلیل راښیي چې غالبانو څنګه خپل یرغل عادلانه ښودلی او مغلوبان یې غندلي دي.
دا یو څرګند حقیقت دی چې هر یرغلګر هڅه کوي چې خپل تېري ته اخلاقي جواز ومومي. چچنامه هم له دې قاعدې وتلی اثر نه دی. په دې کتاب کې استدلال کېږي چې د چچ کورنۍ واکمني مشروع نه وه ځکه د دسیسې له لارې یې قانوني واکمن له تخته غورځولی او قدرت یې تروړلی و. نو که د داسې غاصبې کورنۍ واکمن له تخته رانسکور شي دا په اخلاقي لحاظ د منلو وړ چاره ده.

په چچنامه کې راجه داهر د قدرت تږی او بد اخلاقه بنیادم معرفي کېږي. دی د قدرت په خاطر له خپلې خور سره واده کوي ځکه نجومیانو پیش ګویي کړې وه چې د دې ښځې مېړه به پاچا شي. نو داسې سړی خو د واکمنۍ لایق نه وي.

چچنامه د یو شمېر مسلمانو ښځو او ماشومانو یادونه کوي چې سمندري غلو ونیول او حجاج له داهره د هغو د خوشې کېدو غوښتنه وکړه مګر خوشي نه شول. دا پېښه په سند باندې د یرغل اصلي دلیل بلل کېږي. البته په چچنامه کې د یرغل اقتصادي سببونو ته اشاره نه ده شوې او دا خبره ناویلې پاتېږي چې عربو د خپل تجارت د مصونیت لپاره غوښتل چې په هند سمندر برلاسي واوسي.

په چچنامه کې د عربو او سندیانو تر منځ شوې جګړې د حق و باطل او ظلم و عدل تر منځ جګړې یادېږي. د دې جګړې یوې خواته د حق او انصاف قوتونه وینو او بل لور ته یې هغه کسان وینو چې خلک استثماروي او ظلم ورسره کوي. راجا داهر کافر، لا مذهب او لعنتي بلل کېږي. د عربو په نظر راجه داهر د شر او ظلمت سمبول دی. له دغو توپیرونو دا نتیجه راوځي چې له عربو سره خدای مل دی او د کافرو ماته محتومه ده. په چچنامنه کې په دې اړه ډېر مثالونه مومو چې د اسلام لښکرې څنګه د خدای په مرسته له بلا او مصیبته وژغورل شوې.

یو ځل یوه قبایلي لیډر کاکه بن کوتل وغوښتل چې په عربو باندې د شپې په تیاره کې حمله وکړي او تباه یې کړي خو له کاکه لاره ورکه شوه او سپاهیانو یې کړۍ شپه په سرګردانۍ کې تېره کړه. کله چې کاکه له عربو سره سوله وکړه نو اعتراف یې وکاوهٔ چې: خدای ورنه لاره ورکه کړې او کړۍ شپه یې په زحمت او سرګردانۍ کې تېره کړې



وه. دغه راز د دهٔ د ملک نجومیانو او صادقو کسانو د ستوریو د حساب له مخې معلومه کړې وه چې د مسلمانانو پوځونه به دغه ملک نیسي. دهٔ دا معجزه د مخه لا لیدلې وه او دی ډاډه و چې دا الهي اراده ده او هیڅ وسیله او خدعه به له مسلمانانو سره د مقابلې وس نه لري.)

په چچنامه کې څو ځایه لولو چې سندیانو د خپلو نجومیانو پیش ګویي چې ماته به خوري، تایید کړې ده او په همدې وجه دوی عربو ته له تسلیمېدو او د هغوی د حکومت له منلو پرته بله لاره نه لري. د دغسې کسانو یو مثال برهمن دی چې د دیبال له کلا راووت او د عربو له قواوو سره ملګری شو ځکه دهٔ لیدل چې خدای د عربو پر خوا دی. برهمن عربو ته وویل چې کلا به د معبد په ورانولو سره چې یو بیرغ ورکې رپېږي، ونیول شي. برهمن، محمد بن قاسم (عادل لیډر) بولي. له یوې خوا د نجومیانو پیش ګویانې وې چې سندیان یې پخپله ماتې قانع کول او له بلې خوا د عربو عقیده وه چې خدای ورسره مل دی او د الهي هدایت په برکت به کامیابېږي. نو سند چې عربو لاندې کړ عرب یې مشروع مالکان شول. دوی په سند باندې د حکومت کولو حق وموند او د سند ثروت ورته د غنیمت په مال بدل شو.

خو سند په اسانه ونه نیول شو. راجه داهر په مېړانه وجنګېد او له عربو سره په جګړه کې ومړ. د دې معنا دا ده چې سند په سوله ییزه طریقه نه بلکې له مقاومته وروسته ونیول شو. دغه شي عربو ته د سند د نیواک او پر هغه د حکومت کولو حق ورکاوهٔ.

مورخان د چچنامې له شننې وروسته دې نتیجې ته رسېدلي دي چې دا لیکنه د تاریخ او اسطورې ګډوله ده.

په دې اثر کې داسې ګڼ اصطلاحات وينو چې د عربو د نيواک په زمانه کې رواج نه وو. مثلا د شهنا کلمه په سلجوقي زمانه کې کارېده. د اقطا د توري استعمال د آل بويه په زمانه کې پيل شو. دغه راز د حيوان په خام پوستکي کې د مجرم ګنډل د مغولو دود و. نو دا کيسه چې محمد بن قاسم ته د جزا ورکولو لپاره هغه د حيوان په پوستکي کې وګنډول شو، سمه نه ده. محمد بن قاسم د بدنامۍ په حالت کې ومړ. (ځينې مورخان باوري دي چې خودکشي يې کړې ده.)

سند د هند براعظمګي يوازينۍ برخه ده چې عربو ونيو. وروسته بيا چې په سند باندې ځايي خلکو حکومت وکړ يا ترک توکمو وربانديې واکداري وچلوله، محمد بن قاسم د تاريخ له کتابونو ووت. دی د شلمې پېړۍ په شلمو کلونو کې يو ځل بيا راڅرګند شو. دا په ټول هند کې د کميونالزم (فرقه واريت) د خپرېدو دوران و. په دې دوران کې تاريخ هم د فرقه واريت ښکار شو. مسلمانانو د ځان لپاره داسې تاريخ اختراع کړ چې دوی ته يې وياړ او افتخار باخښۀ او په خپل هويت پورې يې لا زيات ښښلول. دوی سند ته باب الاسلام ويل پيل کړل او له محمد بن قاسمه يې يو داسې ځوان اتل جوړ کړ چې د کفر لښکرو ته يې ماتې ورکړه او سند يې د عباسي امپراطورۍ د برخې په توګه مسلمان کړ.

خو له ۱۹۵۵ کاله وروسته يو ځل بيا د محمد بن قاسم په اړه او د عربو په لاس د سند د نيولو په اړه په تاريخي تصور کې تغييرات راغلل. کله چې په پاکستان کې ون يونټ اعلان شو او سند صوبه ختمه او د مغربي پاکستان يوه برخه شوه نو له دغو تحولاتو سره د مقابلې لپاره سندهي نشنليزم ميدان ته راووت او د سند د تاريخ د بيا تفسير او تحليل هڅې پيل شوې. دغه وخت د مغلوبانو اواز چې مورخانو تر



دې دمه پورې غلې کړې و، د سند د ناسيوناليستو ليډرانو په ليکنو کې واورېدل شو. دوی د محمد بن قاسم انځور بدل کړ. هغه يې يو تيريګر او يرغلګر وباله چې پرته له کوم اخلاقي جوازه يې د سند په خاوره بريد وکاوۀ. په دې نوې هڅه کې راجا داهر د خپل ملک په دفاع کې وژل شوی اتل معرفي شو.

دغو تحولاتو د سند د تاريخ د پيل وخت هم بدل کړ. تر دې دمه که د سند تاريخ د عربو له راتګه (۷۱۲-۷۱۱ ميلادي) پيلېدۀ، تر دې وروسته د اندوس وادي له تمدنه پيل شو. جالبه دا ده چې هغه ماضي چې يو وخت غير اسلامي او بې اهميته بلل کېده، تر دې وروسته د وياړ سبب وګرځېده او په دې ډول د سند تاريخ ليکنه غير مذهبي شوه.

# د احساساتو ځای په تاریخ کې

د انسان په ژوند باندې د احساساتو د اغېز مطالعه د اروا پوهانو د کار ساحه ګڼل کېدله خو اوس چې مورخانو د تاریخ د علم ساحه غځولې ده، د تاریخ په جوړېدو او پرمختلو کې یې د احساساتو د اغېز مطالعې ته هم متې رانغښتې دي. مورخ د احساساتو مطالعه له تاریخي منظره کوي او دا ګوري چې په بېلو بېلو زمانو کې احساساتو څهٔ معنا لرلې او په کومه سترګه ورته کتل شوي دي.

د مثال لپاره به قهر را واخلو. د قهر په وسیله هر څوک خپله نهیلي، بېوسي او کله کله په نورو باندې برلاسي څرګندوي. د قهرېدلي کس کاوړ (غصه) نه یوازې د هغه د بدن له حرکاتو او له څېرې اوري بلکې د هغهٔ د خبرو له ډوله هم راښکاري.

قهر د کمزورو طبقو د کنټرول لپاره د یوې وسیلې کار هم ورکوي. له یوې خوا سپارښتنه کېږي چې ممتازې طبقې باید په خپلو نوکرانو غصه وکړي چې هغوی په وېره کې واوسي او له بلې خوا له کمزورو طبقو توقع کېږي چې د زورورو له استثمار او بې عدالتۍ سره سره باید خپله غصه څرګنده نه کړي.

د انلز د مکتب مورخان د تاریخ په مطالعه کې د نویو ساحو له موندلو سره دلچسپي لري. د دې مکتب یو مورخ ممکن د احساساتو تاریخ ولیکي. باربارا روزین وین یو کتاب خپور کړی دی چې (د قهر ماضي: په منځنیو پېړیو کې د احساساتو اجتماعي اړخ) نومېږي. دغه کتاب



په تېر وخت کې د قهر د بېلو بېلو اړخونو په باب د یو شمېر تکړه مورخانو د مقالو ټولګه ده. په دغو مقالو کې لولو چې قهر له مختلفو طبقو سره څنګه رابطه لرله او دوی په خپلو خاصو شرایطو کې خپل قهر څنګه څرګنداوهٔ.

مثلاً د روحاني طبقې کاوړ له مذهب سره اړوند و. واکمنو، اشرافو او فیوډالانو چې قدرت ورسره و او سلوک یې استبدادي و، له قهره د لاس لاندې کسانو د کنټرول په مقصد استفاده کوله. بېوزلو خلکو او بزګرانو خپل قهر نه څرګنداوهٔ، پټ یې ساتهٔ او ټولې ربړې یې په پټه خوله زغملې.

د منځنیو پېړیو د قهر مختلفې څېرې وې. یوه څېره یې د قهر په حالت کې ښېرا وه. د ښېرا ماهیت د وګړې اجتماعي او مذهبي حالت ته اشاره کوله. که به سړی مذهبي و نو هغه به له خدایه د مخالف لوري تباهي غوښته. مثلاً د دهٔ په ښېرا کې به دا رنګه جملې وې: خدای دې یې غوښې د هوا د مرغانو او د مځکې د ځناورو خوراک کړي! د خدای په لعنت دې ککړ شي! دوزخ دې یې ځای شي!

د خدای په لاس د یو چا د تباهي یا ځورېدو غوښتنې دوې خبرې څرګندولې. یوه دا چې قهرېدلی کس خورا کمزوری دی، د بدل اخیستلو وس نلري، نو د خدای مرسته غواړي. بله دا چې قهرېدلی د مخالف لوري د ځورېدو د مسولیت منلو ته تیار نه دی. ارزو یې دا ده چې خدای یو شه او د مقابل لوري تباهي.

غیر مذهبي کنځلې له مذهبي هغو بېلې وې. دلته مخالف لوری داسې کنځل کېدهٔ چې اجتماعي موقف ته یې صدمه رسېده. مثلاً که به څوک حرمونی وبلل شو نو معنا یې دا وه چې حلالي نه دی، او په دې ډول یې اجتماعي حیثیت خرابېدهٔ.

له بلې خوا، هغوی چې لاسبري وو او د قهر په وخت یې تر لاس لاندې کسان لټ، احمق، بې سواده او بې کلتوره وحشیان بلل. شاهانو په عادي حالاتو کې هڅه کوله چې ځان ارام وښيي خو باغیانو، جنایت کارو او متمردو ته به یې د خپل قهر زور ورښود. دا یو دود و چې د پاچا د فرمان له صادرېدو وروسته به یادونه هم کېدله چې که ونه منل شو نو د پاچا له قهره به هیڅوک په امان کې پاتې نه شي.

په تېرو زمانو کې د مرات الامرا په نوم تعلیمي کتابونه وو. دغسې کتابونه چې واکمنو ته به یې په مختلفو حالتونو کې د چلند او سلوک طریقې ورښودلې، په ختیځ او لویدیځ دواړو کې لیکل شوي دي. په دغه ډول کتابونو کې واکمنو ته لارښودنه کېږي چې په قهر او مهرباني دواړو کې اعتدال وساتي. که اعتدال ونه ساتي نو ګډوډي او انارکي به خپره شي.

مثلا خپلو معاصرو مورخانو په جلال الدین خلجي باندې نیوکه کړې ده چې د جنایت کارو او باغیانو په مقابل کې تر حد زیات مهربان و او دا رنګه سلوک یې د حکومت د کمزورۍ سبب شو. له بلې خوا بلبن او علاوالدین خورا سخته رویه کوله او جنایت کارو او باغیانو ته یې خورا شدیدې سزاګانې ورکولې. خو ځای ناستو یې برعکس، خلکو ته بې حده ازادي ورکړه چې په نتیجه کې د دوی د لړۍ د واک ختمېدو ته لار پرانستل شوه. هم په نرمۍ او هم په سختۍ کې افراط واکمن په بلا اړوي.

په منځنیو پېړیو کې چې بزګران وحشي او بې کلتوره بلل کېدل نو د دوی غصه به چې د دوی د اجتماعي حیثیت په رڼا کې ورباندې قضاوت کېدۀ، بابېزه چاره حسابېدله. د بزګر قهر یو په ځای عکس العمل نه بلکې داسې کار بلل کېده چې اغتشاش، اړودوړ، بې نظمي



او بې قانوني زېږوي. د هغه وخت مورخانو د بزګرانو شورشونه د احمقانه قهر نتایج بللي او غندلي یې دي. نهم پاپ ګریګوري په ۱۲۳۳ میلادي کال کې په بریمن کې د باغي بزګرانو په خلاف د جهاد اعلان وکړ او بزګران یې وحشي بلاوې وبللې. واکمنو طبقو د بزګرانو په شورشونو کې دې اړخ ته پام نه کاوۀ چې له استثماره په تنګ شوي او راپاڅېدلي دي بلکې د حکومت په خلاف بغاوت ورښکارېدۀ او د اطاعت نه کولو فتنه یې پکې لیدله.

پاول فریمن په خپله مقاله (په منځنیو پېړیو کې د بزګرانو قهر) کې لیکي چې: په هغه وخت کې چا دا نه ګڼله چې د بزګرانو شورش د بې عدالتۍ په مقابل کې عکس العمل دی او دا خو ډېره لرې خبره وه چې بامقصده اجتماعي غورځنګ وبلل شي. تصور دا و چې بزګران که سم کنټرول نه شي نو د دوی په شډل فطرت کې پروت قهر طغیان کوي. دا معمولا ناممکنه ګڼل کېدله چې بزګران دې د حیثیت د ساتلو یا بدل اخیستلو لپاره حساب شوی او سوړ قهر ولري.)

په طبقاتي اساس وېشل شوې ټولنه کې د بزګرانو بغاوت ته ځکه په سپکه سترګه کتل کېدل چې د بزګرو وظیفه خو خواري مزدوري وه او دا خو د شوالیه وو حق و چې جګړه وکړي. د بزګرو غصه او د غصې په نتیجه کې بغاوت نادوده چاره ګڼل کېدله، همدا وجه وه چې په بې رحمۍ سره مقابله ورسره کېدله.

فرانسوي مورخ مارک بلچ په منځنیو پېړیو کې د خلکو د احساساتي حالاتو د علتونو په باب پلټنه کړې ده. دی وايي چې د دغو خلکو د قهر یو علت دا و چې مغذي خواړۀ نه ور رسېدل، بله دا چې دغو خلکو د نظافت شعور نه درلود. دغه دوه علته وو چې د منځنیو پېړیو اوسېدونکو په ورځني ژوند کې احساساتي چلند کاوۀ. په دې سربېره

د واک له خاوندانو، له کاختی، له ساري ناروغیو، د تشدد له واقعیاتو او له شکنجې وېره د دې سبب شوې وه چې د منځنیو پېړیو اوسېدونکي د ناامنۍ له احساس سره واوسي.

رنسانس په اروپا کې بدلون راوست. په نوي بدل شوي چاپېریال کې د قهر کنټرول او نرم چلیدل په اخلاقي فضیلت او حسن بدل شول. په اوسني وخت کې د ټولنې په بدن کې د دیموکراسي د روح په داخلېدو سره د قهر په ماهیت کې نور تغییر هم راغی. اوس خلک نه بلکې دا چاروا کي دي چې د خلکو له قهره وېرېږي.



# د سترګو شهوت

د تجسس او کنجکاوي عنصر د تاریخ په جوړېدو، بدلېدو او تکامل کې لویه برخه لرلې ده، ځکه د تجسس او کنجکاوي شوق بشر همېشه هڅولی دی چې د طبیعت رازونه راڅرګند کړي، ناویلې خبرې راوسپړي او د منع شویو ساحو لټون وکړي.

لټون د نویو دنیاګانو د موندلو سبب کېږي او له نویو نظریو مو خبروي. لټون د پېړیو پېړیو زاړهٔ دودونه او تاریخ تېر ارزښتونه بې اعتباره کولای شي. همدا وجه ده چې ټولنې او ممتازې طبقې د تجسس د بهیر مخې ته خنډونه اچوي او د دې مخنیوي په کار کې له مذهبي او اجتماعي قوانینو چې وایي د موجود معرفت له پولو به نه ور اوړې، استفاده کوي.

په مقدس کتاب (بایبل) کې تجسس د سترګو شهوت بلل شوی دی او خبرداری ورکول کېږي چې بنیادم باید تر هغې پوهې چې خدای پر انسان لورولې ده، ورها خوا څه زده نه کړي. د ټولنې محافظه کارو او زورپالو کړیو د لټون او کنجکاوي پلویان باغیان بللي او غندلي یې دي.

خو تجسس دومره پیاوړی اشتیاق دی چې له ټولو تابوګانو او بندیزونو سره سره، ساینس پوهان، مورخان، ادیبان او هنرمندان همېشه په لټون بوخت دي او د معرفت په سین کې نوې مرغلرې مومي.

په تېرو زمانو کې ښځې ملامتې وبلل شوې چې د معرفت په لټه کې یې پولې ماتې کړې، حد یې ونه پېژاند. په لرغوني ادب کې ایو (په عبري ژبه کې حوا ) او پاندورا (په یوناني اساطیرو کې لومړنۍ ښځه) د سرغړوونکو مېرمنو په توګه مشهورې دي. په منځنیو پېړیو کې چې ښځې له فعال ژونده منع وې نو پخپله دوی د کنجکاوي او تجسس په موضوع بدلې شوې. په منځني پېر کې ګومان کېدهٔ چې ښځې له ځینو رازونو خبرې دي او په تېره بیا په اروپا کې ښځې د کوډګرو په نوم ونیول او وځورول شوې. دغه ښځې ګویا د ځینو بوټو له طبي خواصو خبرې وې. د دوی د تعقیب مقصد دا و چې له دې شیطاني پوهې محرومې شي. خو په حقیقت کې دا د ښځو د اېلولو او په اجتماع کې یې د اهمیت د کمولو لپاره د نارینه وو هڅه وه.

کله چې اروپايي قدرتونو نوې دنیا (امریکا ) وموندله او د هغې د اوسېدونکو بدوي ژوند یې ولید نو دا د لټون او کنجاوي احساس و چې کاشفانو د امریکا د اصلي اوسېدونکو د تېر تاریخ او کلتور د پېژندلو هڅه پیل کړه. دغه پېژندنه د نوې دنیا په اصلي اوسېدونکو باندې د غلبې لپاره پکار راغله. د مستعمرو د خلکو د پېژندلو لپاره د انتروپولوجي او اتنو ګرافي نوي میتودونه وکارول شول او په دې ډول د لټون شوق له استعمار او امپریالیزم سره مرسته وکړه چې مختلفې ټولنې او د دوی کلتورونه وپېژني.

د لرغوني او منځني پېر سیلانیان چې به د نورو هېوادونو له سیاحته راګرځېدل نو د لیدلیو وطنونو د جالبو کیسو د کولو له لارې به یې اورېدونکي په ځان راټولول او د هغوی د کنجکاوي حس به یې تخناوهٔ. دغسې یو سیلاني مارکوپولو و چې چین ته په سفر کې یې ډېر ملکونه ولیدل. د ده په سفرنامه کې د اسماعیلیه وو په لاس په



الموت کلا کې د جوړ شوي جنت ذکر شوی چې په حقیقت کې د خاورینې دنیا په مخ د موجود جنت د اسطورې انعکاس دی.

مارکوپولو وايي چې په یوه دره کې د دنیا تر ګردو لوی او ښکلی باغ و. په دې باغ کې د دنیا د تر ګردو ښو مېوو ونې ولاړې وې، بې حده شانداره ودانۍ یې لرلې چې په سرو زرو او د دنیا په ټولو ښکلاوو ښکللي وې. په دې باغ کې ځلور ویالې بهېدلې. یوه د شیدو، بله د شاتو، دریمه د شرابو، څلورمه د اوبو. دلته د نړۍ د مخ تر ګردو ښکلې پېغلې او مېرمنې شته وې چې په نڅا او په ساز او په سندرو کې یې مثل نه و.)

د سیلانیانو په راپورونو سربېره د خلکو د مشغولا لپاره د پردو ملکونو په باره کې کیسې هم لیکل کېدلې. په اسلامي دنیا کې سندباد او د هغه نکلونو د ګڼو کسانو توجه جلب کړې وه ځکه چې د نورو وطنونو مفصل داستانونه پکې وو.

سوداګرو نه یوازې د نورو ملکونو هغه مالونه په بازارونو کې خرڅول چې د عامو خلکو پکار وو، بلکې ځینې نادر شیان یې هم راوړل چې شتمنو یې د پېرودلو وس درلود او شتمن یې په لرلو ویاړېدل.

د لټون لېوالتیا وګړي خطرناکو سفرونو او د دنیا له ګوټ ګوټه د راز راز شیانو راوړلو ته هڅول. کله چې د لرغون پېژندونکو د هڅو په برکت د لرغونو تمدنونو په خاورو کې پټ اثار وموندل شول نو دې شي د موزیم جوړولو مفکوره راپیدا کړه چې د تېرو زمانو اثار پکې د پخواني میراث په توګه وساتل شي.

لومړنی موزیم په ۱۵۸۱ کال کې د ایټالیا په یوفیزي ماڼۍ کې جوړ شو. واتیکان په ۱۷۴۰ کې د موزیم ځښتن شو. برټش موزیم په ۱۷۵۳ کې تاسیس شوی دی. وروسته بیا نورو اروپايي هېوادونو هم د

موزیم لرلو هڅه وکړه او له کابو هر ښار سره دا شوق پیدا شو چې خپل موزیم ولري.

د تجسس عنصر د یو شمېر کسانو په تېره بیا هغو لپاره چې ځینې پخواني اثار سپېڅلي ګڼي او ساتي یې، د مینې او ذوق په کار بدلېږي. دغسې اثار هم په شخصي کلیکسیونونو کې او هم په کلیسا ګانو ، معبدونو او جوماتونو کې چې د ایمان خاوندان د خپلې روحي تندې د ماتېدو لپاره ورځي، ساتل کېږي.

شتمن او وسیالي په نادرو شیانو پسې ګرځي چې ویې مومي او له ځان سره یې وساتي، ځکه د نوادرو لرل یې په ټولنه کې اهمیت ورزیاتوي. هغوی چې په تاریخي شیانو خپل انحصار غواړي په حقیقت کې په نورو باندې د لاسبري لپاره د پوهې د انحصار په فکر کې دي.



# کمیونالیزم او تاریخ

د مولانا شبلي دود او سنت د هغهٔ شاګرد مولانا سید سلیمان ندوي جاري وساته. البته، د استاد او شاګرد یو توپیر دا و چې شاګرد د هندوستان د تاریخ په باره کې لیکنې کولې.

سلیمان ندوي د هندیانو او عربو د روابطو په اړه ژوره څېړنه کړې ده. د دهٔ دغه څېړنه د عربو هېوادونو او هند براعظمګي تر منځ په اجتماعي او کلتوري روابطو باندې رڼا اچوي.

په اردو تاریخ لیکنه کې عبدالرزا ق کانپوري هم د ستاینې کارونه کړي دي. د هغه دوه کتابونه، الابرامکه او نظام الملک توسي د خراسان په یوې اشرافي کورنۍ او یوهٔ سلجوقي وزیر باندې بحث کوي.

په اعظم ګړ کې د مولانا شبلي په لاس جوړې شوې ادارې، دارالمصنفین، د هند او اسلام د تاریخ په موضوع باندې ګڼ کتابونه خپارهٔ کړل که څه هم د دې انستیتیوت پوهانو عربي او فارسي ژبې ښې زده وې او د اول لاس ګڼې منابع یې لرلې چې استفاده ورنه وکړې خو دوی د تاریخ لیکنې د علم له بنیادي پرمختګونو ناخبره وو. د دوی بل مشکل دا و چې د اسلام د تاریخ په متنازع فیه موضوعاتو یې له دریځ خپلولو ډډه کوله او دا یې بهتره بلله چې د دغسې موضوعاتو له شننې تېر شي ، په مازې روایت او یادونه یې اکتفا وکړي.

په نتیجه کې د دوی لیکنې په زړه پورې نهٔ دي او لوستونکي یې هغه
نتیجه ګیرۍ او کانکلوژنونه نهٔ شي منلای چې د دوی د وار مخکې
قضاوت پیدا وار دي.

د پان- اسلامیزم په اساس تاریخ لیکنه ځکه دود شوه چې د هند
مسلمان شخصیتونه د اسلام د شانداره ماضي د روښانولو شوقیان
وو. دوی د هند په تېر تاریخ کې د سلطنت او مغولو د دوران
حکومتونو ته پام نه کاوهٔ خو د ډیلي، اګرې او فتح پور سکري په
ځای یې په پوره شوق او جذبه د بغداد ، قاهرې او قرطبې د شان و
شوکت یادونې کولې. دوی مبهمې او ناڅرګندې ماضي ته مهاجرت
تر دې غوره بالهٔ چې د خپل عصر شړ لو او معمولي واقعیتونو ته
وګوري.

د دغه وخت اردو شاعرانو ، اردو ناول لیکونکو او مورخانو د هند د
مسلمانې ټولنې لپاره د منلو وړ چوکاټونو په منځ کې د خیالي ماضي
د جوړولو په کار کې له یو بل سره سیالي کوله. عجبه دا ده چې دوی ته
په خپل چاپېریال او شاوخوا کې د سلطنت او مغولو د وخت ورانو
ویجاړو ودانیوا و یادګارونو الهام نه شوای ورکولی.

دوی چې د اروپایانو په مقابل کې ځان وروسته پاتې لیدهٔ او د
حقارت احساس یې کاوهٔ نو له دغه روحي حالت سره د مقابلې لپاره
یې خپلو ګومانونو او فرضیو ته پناه یووړه. دوی وویل چې اروپایانو
خپل تمدن او پرمختګ له مسلمانانو پور کړی دی او اسپانیا چې
مسلمانانو، مسیحیانو او یهودو پکې په سوله کې ژوند کاوهٔ د خورا
پرمختللي کلچر مرکز و منځۍ وه چې د پوهې مشالونه یې بل کړل او
همدې مشالونو اروپا ته رڼا یي وروسته، اروپا یې د وروسته پاتې



والي له منګولو وژغورله. د دغه لید طبیعي نتیجه دا وه چې دوی
توقع لرله چې اروپایان خپله ګرده ترقي د مسلمانانو له برکته وګڼي.

د نولسمې پېړۍ په وروستیو او د شلمې پېړۍ په ابتدا کې په اردو
تاریخ لیکنه کې یو نوی تمایل پیدا شو چې د نړۍ په حالاتو کې د
تغییراتو په وجه و. دا هغه وخت دی چې د اروپا استعماري قوتونو یا
اسلامي ملکونه نیولي یا یې د نیولو په حال کې وو. له بلې خوا
عثماني امپراطوري په چټکۍ سره مخ په زوال روانه وه. په بالکان کې
د شوررشونو د ځپلو لپاره د عثماني امپراطوري اقداماتو خونړۍ
شخړې وزېږولې او دې پېښو هندي مسلمانانو ته اندېښنه پیدا کړه
چې د اروپایي قدرتونو د شریکو هڅو په نتیجه کې عثماني
امپراطوري د ماتېدو په حال کې ده.

ځینو هندي مسلمانانو د بالکان ټکرونو ته د اسلام او عیسویت د
ټکر په سترګه وکتل. له بلې خوا په همدې وخت کې ګڼو اروپایي
مستشرقانو په اسلام او د اسلام په کلچر او تاریخ باندې حمله وکړه
چې د ګڼو مسلمانانو د روحیې د کمزورۍ سبب شوه. دغه شي هم په
اردو تاریخ لیکنه باندې اغېز وکړ.

په اردو تاریخ کې یو ځل بیا د هندوستان له تاریخه اسلامي تاریخ ته
توجه واوښته. سرسیداحمد خان په خطبات احمدیه کې یو شمېر
مقالې ولیکلې او شبلي خپل پام د مسلمانانو د حکومت د برپاوو او
د مسلمانو واکمنو د عملونو د دفاع موضوع ته واړاوهٔ.

د شلمې پېړۍ تر شلمو کلونو پورې د هند په تاریخ کې ځینې
تغییرات راغلل. د خلافت او نه همکارۍ د نهضت ناکامي کمیونالیزم
وزېږاوهٔ چې په نتیجه کې یې تاریخ هم په یو ډول سره د فرقه واریت
(کمیونالیزم) ښکار شو. هندو فرقه پرستو مورخانو استدلال وکاوهٔ

چې مسلمانان تېريگر وو او په هند کې د دوی حکومت د پردو او
بلوسگرو حکومت و. دوی هغه کسان وستايل چې له مسلمانو حمله
کوونکو سره يې ډغرې وهلې وې. د دوی په نويو اتلانو کې پاراتوي
راج، رانا پاراتاب او شيواجي يادولای شو. د هندي فرقه پرستو
مورخانو په ځواب کې مسلمانو مورخانو محمد بن قاسم، محمد
غوري او محمود غزنوي د خپلو نويو اتلانو او د اسلام د مدافعانو په
توگه راوړاندې کړل.

کله چې د اورنگزيب په مذهبي پاليسي باندې نيوکه وشوه نو شبلي د
اورنگزيب ناکامه دفاع وکړه. د تاريخ سياسي کولو او د اجتماعي او
مذهبي ډلو د تعصباتو په خم کې د تاريخ رنگولو ، هم د هندوانو او
هم د مسلمانو په روحيې باندې خورا ژور اغېز وکړ.

جالبه دا ده چې دغه وخت د هند په مسلمانه ټولنه کې يو سوال راپيدا
شو چې د مغولو د حکومت د زوال مسوليت د چا په غاړه دی؟ د اکبر
که د اورنگزيب؟ د مسلمانو کميوناليستو په اند، اکبر د هندي
مسلمانانو د زوال ذمه دار دی ځکه دهٔ په خپل حکومت کې ګڼ شمېر
هندوان شامل کړل چې دا کار د دهٔ له حکومته د مسلمانانو د ځنډې ته
کېدو سبب شو. په اردو تاريخ ليکنه کې دغه بحث اوس هم يو له تودو
بحثونو څخه دی.



# بهکتي غورځنګ

په دیارلسمه او څورلسمه میلادي پېړۍ کې په هندوستان کې ژور
سياسي، اجتماعي، کلتوري او مذهبي تحولات روان وو. د ترکو
واک کوچيني حکومتونه ختم کړل او د داسې سلطنت بنياد يې
کېښود چې د هندوستان شمال يې په سياسي لحاظ متحد کړ. له بلې
خوا ديني علماوو، چې د مسلمانې دنيا له بېلو، بېلو برخو راغلي
وو، د کافر او مسلمان تر منځ د ديني توپير د رابرسېره کېدو هڅه
کوله او پر حکومت يې فشار اچاوهٔ چې شريعت عملي کړي. دغه راز،
په دې زمانه کې د مختلفو سلسلو صوفيانو د مذهب دود شوې بڼه
چلينج کړه او د مذهبي زغم تبليغ يې وکاوه. چې ترک د واک په ګدۍ
کېناستل هغه واکمن د واک له ګدۍ پرېوتل چې برهمن يې نازواو
پالل. دې پېښې برهمن د ټولنې د سين ځنډې ته ځپ وهل. چې فارسي
د دربار ژبه شوه، د سانسکريت اهميت ورسره کم شو او دې تحول
برهمن نور هم کمزوري کړل.

په دې سربېره هغې تکنالوژي هم د هند ټولنه ډېره بدله کړه چې ترکو له
ځان سره راوړه. دې نوې ټکنالوژي زراعتي پيداوار زيات کړل او د
نويو کسبونو له رواجېدو سره يې مرسته وکړه چې ورسره د کسبگرو
اجتماعي مقام لوړ شو.

د لوړو طبقو دا نه خوښېدل چې ټيټې طبقې دې د لوړو هغو ځای ته د
ختلو امکان ومومي. همدا وجه ده چې د سلطنت د زمانې مورخ ضيا

الدين برني ټيټو طبقو ته په خورا سپکه سترګه ګوري او واکمنو ته نصيحت کوي چې دوی ته لوېې چوکۍ ورنه کړي.

بهکتي غورځنګ د ديارلسمې او څورلسمې پېړۍ د دغسې اجتماعي ـ کلتوري چاپېريال پيداوار و. ايا دغه نهضت د ټيټو طبقو او بې وسه خلکو اواز و چې هغه دودونه او رواجونه وګواښوي چې له دوی سره د تعصب او تبعيض سبب کېدل؟ او که يې نور سببونه لرل؟ مورخانو په دې اړه مختلفې خبرې کړې دي. د ځينو په نظر د نهضت مقصد دا و چې اسلام ته د هندوانو د اوښتلو مخه ونيسي او د هندوانو په ټولنه کې چې د اسلام له چلينج سره مخ وه، له لاندې خوا اصلاحات راولي. له بلې خوا ويل شوي دي چې بهکتي نهضت په هندوايزم کې د مسلمانانو د شاملولو هڅه وه. د مشهور مورخ کې اين پينکار په نظر، د مسلمانانو غلبې هند ژوبل کړ او بهکتي نهضت د هند د زخمي بدن لپاره ملهم و. روسي مورخانو دغه نهضت د فيوډاليزم په خلاف د خلکو پاڅون تعبير کړی دی. د ځينو نورو په اند دغه غورځنګ د هغو باورونو او مناسکو د پرېښودلو له لارې د هندو اومسلمان د وحدت نهضت و، چې د دغو دوو ديني ټولنو تر منځ يې اختلاف پيدا کاوۀ.

د بهکتي غورځنګ ټول ملاتړي او شارحان د ټيټو طبقو کسان وو او په دې وياړېدل چې له دغو طبقو سره اړه لري. دغه واقعيت دا راښيي چې په ټولنه کې تحرک پيدا شوی و او د کاست فولادي نظام د ماتېدو په حال کې و. د بهکتي نهضت بله ځانګړنه دا وه چې په مذهبي چارو کې يې د ملا او پنډت واکداري، د مذهب ظاهري او قشري تعبير او مذهبي شعاير چلينج کړل. دوی له خدای سره په بې واسطې او مستقيم ارتباط ډېر تاکيد کاوه. له خدای سره نېغې رابطې



په مذهبي ډله کې غړيتوب ته اړتيا نه لرله. د خدای مينې ټول تعصبات او اختلافونه ختمول او خلک يې طبقې، عقيدې او توکم ته له پامه پرته سره يو ځای کول. د دې نهضت دريمه لويه ځانګړنه دا وه چې مشرانو يې د خلکو د خوځولو او هڅولو لپاره د شعر مختلف ژانرونه وکارول. دا په نالوستې ټولنه کې خورا اغېزمنه او جذابه طريقه وه. دوی به کلي په کلي ګرځېدل او له خدای سره د مينې شعرونه به يې اورول. د دې غورځنګ بل مهم خصوصيت دا و چې لارويانو يې خپل فعاليت په کليو پورې محدود وساتۀ. د دوی په اند ښارونه د فساد او حرص ځالې وې. نو دوی د کليو عادي خلکو ته مخاطب شول. دوی د عادي خلکو په زړونو کې د ژغورنې د اميد زړي وکرل او د بدمرغيو د زغملو روحيه يې ورکړه.

بهکتي نهضت د سګونا او نيرګونا په دوو فکري مکتبونو ووېشل شو.

د سګونا په عقيده د خدايي قدرت د لمانځنې او عبادت لپاره يو شکل او فورم ته اړتيا ده. د دې فرقې پيروانو د بتانو او اصنامو عبادت اختيار کړ. د اصنامو د عبادت لپاره معبدونه پکار شول او په معبد کې د مقدسو کتابونو لوستل او اورول پکار راغلل. د دې مکتب په لويو استادانو او شارحانو کې د سر داس، تولس داس، ميرا بهايي، چايتينيا، او ويديا پي نومونه اخيستلای شو. دغه مکتب د هندوايزم په لوی سين کې حل شو.

په مقابل کې نيرګوما د خدای د عبادت لپاره په هيڅ ډول فورم عقيده نه لرله. دوی د خدای د عبادت لپاره نه کوم معبد ته تلل او نه يې مذهبي مناسک او شعاير تر سره کول. د دوی له عقيدې سره سم خدای له هر چا سره شته نو معبد يا جومات ته اړتيا نشته. کسبګر، کارګران

او وړه کي سوداګر چې د د دې فرقې غړي وو د کتابونو په معرفت
پسې به يې ټوکې کولې. کبيرجي، راۍ داس، اخو ، بهګت، چرن داس
او دادو ديال د دې مکتب ليډران وو.

بهکتي غورځنګ د هندو او مسلمان روحاني د ريا او تعصب په
چلينجولو سره د هندوستان په ټولنه کې زغم زيات کړ او د بېلوبېلو
مذهبي ډلو د ټکرونو او تناقضاتو په منځ کې يې هارموني راوسته.
که څه هم دې فرقې په مذهب کې واکداري ونه منله خو په خپلو
پيروانو يې ټينګار وکړ چې د مرشد او ګورو ومني.

په دې نهضت باندې دا نيوکه کېږي چې د وګړي په ژغورنه يې تاکيد
وکړ خو د ټولنې د ژغورنې لپاره يې هڅه ونه کړه. بله دا چې د ژغورنې
په چاره کې يې ډېر څه خداى ته حواله کړي وو او عقيده دا وه چې
خداى به ظالمانو او مظلومانو ته سزا او جزا ورکوي.

خو په مهاراشترا کې، بهکتي نهضت چې رام داس خپور کړی و ،
مهاراشترا دهرم رامنځ ته کړ. رام داس له مغولو سره په مقابله کې د
شيوا جي ملاتړ وکاوۀ او خپله امپراطوري يې جوړه کړه. په پنجاب
کې ګورو نانک د نيرګونا مکتب پيروي وکړه خو پيروانو يې ورو
ورو دا لاره پرېښوده او سيک ټولنه يې د مغولو پر خلاف پوځي کړه.

که څۀ هم بهکتي نهضت د تاريخ برخه ده، خو سندرې يې تر اوسه
پورې خلک په هيجان کې راولي او د ورځني ژوند له هغه خشن او
تريخ ماحوله يې چې پکې اوسي راباسي. خلک د سولې، روغې
جوړې او هارموني دنيا ته وربولي.



# په خوراکي نظام کې تحول

خوړو د ژوند په سټېج کې همېشه مهم رول لوبولی دی. نامتو
انټروپولوجيسټ لويي سټراوس د بشر تاريخ د خوراک د طريقو د
بدلانۀ په اساس په دريو دورونو وېشي: يو هغه دور و چې بنيادم
ناپاخۀ شوي خواړۀ خوړل. بل هغه دور دی چې بشر اور کشف کړی او
د غوښو وريتول يې پيل کړي دي. په دريم دور کې بشر اېشېدلي
خواړۀ خوري. د سټراوس په نظر دغه هر دور د بشري تمدن د
پرمختګ د يو پړاو او د خوړو په عادت کې د تحول څرګندونه کوي.
چې د خوړو ذايقې وده کړې ده د بشر په جسم او ذهن کې هم بهترې
راغلې ده.

خوراک له بدن سره خاصه رابطه لري. د همدې رابطې په اساس
غوښتنه کېږي چې د بدن د ضرورت تر اندازې زيات خواړۀ بايد ونه
خوړل شي. کله چې انسان د ښکار له لارې خواړۀ تر لاسه کول نو ډاډه
نه و چې په منظم ډول به خواړۀ ومومي. همدا وجه وه چې ډېره ډوډۍ
يې خوړه ځکه نه پوهېده چې بل ځل به خواړۀ چېرته او څه وخت په
ګوتو ورځي. چې زراعت وده وکړه د خوړو عادتونه نور شول. نور نو
ډوډۍ په اسانه موندل کېدله او په ورځ کې د درې ځله خوراک کولو
عادت پيدا شو.

کله چې ټولنه په طبقو ووېشل شوه، هغوی چې سخت کارونه کول،
چاغ نه شول او ځانونه يې روغ وساتل خو هغوی چې د نورو د زحمت

ډوډۍ خوړله چاغ او لټ شول. دوی ته چاغښت او کار نه کول د نېکمرغۍ او شتمنۍ نخښې ښکاره شوې. په سند کې د تالپور میرانو چاغوالی د ښکلا سمبول ګاڼۀ.

د تمدن د انکشاف په یوه پړاو کې د بشر مسالو ته پام شول چې د خوړو خوند زیاتوي. اروپايي سوداګر په مسالو پسې اسیا ته راغلل چې استعمار ته یې لار پرانیستله. په دغو مسالو کې مالګه مهمه وه. مالګې نه یوازې ډوډۍ خوندوره کوله بلکې غوښه یې هم له ورستېدو ساتله. همدا د مالګې اهمیت و چې حکومتونو د مالګې تولید انحصار کړی او ټکس یې ورباندې لګولی و. په ځینو هېوادونو کې مالګه د پیسې په توګه استعمالیده او په تنخواه کې ورکول کېده.

خوارۀ په هر کلچر کې مقدس ګڼل کېږي او د ارباب النواعو او الهو د رحمت او حمایت د ترلاسه کولو لپاره هغو ته وړاندې کېږي. دا دود هم و چې خوارۀ د اولیا و الله ګانو او مقدسینو په نوم د خوارانو په منځ کې ووېشل شي. عقیده وه چې په زیارتونو کې پخه شوې ډوډۍ خپل چاپیریال مبارکه کړې ده او چې زیارت ته راغلي کسان یې وخوري شفا به ومومي. په مذهبي مراسمو کې د خاصو خوړو د پخولو دود تر ننه پورې پاتې دی. مثلاً په محرم کې حلیم (په افغانستان کې بیا شولۀ زرد پخېږي. ژباړن) او یا د برات په شپه حلوا نن هم معمول دي.

په ځینو دینونو کې ځیني خوارۀ منع دي. هغه خوارۀ چې په اسلامي کلچر کې ورباندې بندیز نشته حلال بالۀ شي او د یهودو حلال خوارۀ کوشر بلل کېږي. په هندو ټولنه کې د ډوډۍ د پاکۍ او ناپاکۍ مفهوم ژورې ریښې لري. پخوا د لوړې طبقې هندوانو د لاندې کاست له وګړیو سره ډوډۍ نه خوړه. د لوړې طبقې ځیني کسانو به غوښه ببخي نه خوړه، تر دې حده چې پیاز او اوږه یې هم چې د غوښې په پخولو کې



پکارېدل، نه خوړل. د دوی په اند ، اشپزخانه مقدسه ساحه وه چې بل هیچا د ورتلو اجازه نه لرله. البته ، په اوسنۍ هندو ټولنې کې د دغو خبرو اهمیت کم شوی دی.

د اشرافو لپاره پخلنځی د حیثیت یوه ذریعه هم وه. د اشرافي د کور اشپز د ډېر اهمیت ځښتن و ځکه دۀ داسې ډول ډول خوارۀ برابرولای شوی چې د بل چا د وس خبره نه وه. اشرافي به د خپل ثروت او مېلمنه پالنې د ښودلو لپاره خپل دوستان او خپلوان دعوتول او نوي نوي خوارۀ به یې ورته پخول چې مېلمانۀ تر تاثیر لاندې راشي. په یوۀ دسترخوان باندې کېناستلو وګړي سره نژدې کول. د ډوډۍ د بلنې نه منل د کوربه د سپکاوي معنا لرله.

له بلې خوا ، وږی کس ټولنې ته خطر ګڼل کېدۀ. هغه د خپلې ګېډې د اور د وژلو لپاره هر جنایت ته تیار و. تاریخ دا هم راته وایي چې د کاختۍ په وختونو کې خلکو د خوړو په منځ کې د حلال او حرم فرق نه دی کړی. لوږې او کاختۍ اخلاقي اقدار هم له پښو غورځولي دي. په داسې حالاتو کې میندو او پلرونو د یوې ګولې ډوډۍ لپاره ماشومان پلورلي دي. لوږې او کاختۍ ښځې تر نارینه وو زیاتې ځورولې او فحشا او بې عزتۍ ته یې اړایستلې دي.

د جګړې، وچکالۍ یا کاختۍ په وختونو کې به خوارۀ په جیره ورکول کېدل. په دغسې حالاتو کې به د سوداګرو غوا لګنه شوه، ښې ګټې به یې وکړې.

په ځینو دیني عقیدو کې د معنوي پیاوړتیا لپاره د لوږې ګالل هڅول شوي دي. ویل شوي دي چې بودا ځکه د معنویت لوړو مدارجو ته ورسېد چې لوږې یې وګاللې. موږ د صوفیانو په سلوک کې هم د بېوزلۍ ستاینه وینو ځکه عقیده ده چې یوازې وږی بنیادم ډېر ژور او

متمرکز فکر کولای شي. د صوفیانو په اند، خواړۀ د جسم لپاره خو لوږه د روح لپاره اړین دي. همدا وجه چې صوفي بزرګانو بېوزلي ستایلې او شتمني غندلې ده.

د حیرانتیا خبره دا ده چې د هغو طبقو خلکو چې د تاریخ جوړوونکې یې ګڼو، خپلې ګېډې د بزګرو په اضافي تولیداتو مړې کړې دي. د ښار د اوسېدونکو ډوډۍ د استثمار شویو کلیوالو په لاسونو برابرېږي. دا هم د تاریخ یو حقیقت دی چې که ښارونو ته غلې دانې او نور خواړۀ ورنه شي، له وګړیو تشېږي، په ډاګونو بدلېږي.



# د محصلانو غورځنګونه

نن سبا په ګرده نړۍ کې محصلان په سیاسي، کلتوري او اجتماعي فعالیتونو کې فعاله برخه اخلي او د ځپونکي دودیز سیستم په خلاف اواز اوچتوي.

دا د دیموکراسي او د هغې د موسسو نتیجه ده چې محصلان او زده کوونکي د یوۀ فعال قشر په څېر را څرګند شول. تر دیموکراسي دمخه په منځنیو پېړیو کې محصلان له هر ډول سیاسي او اجتماعي ارتباطاتو جدا په خپلو تعلیمي ادارو کې ایسار وو.

د محصلانو په سیاسي فعالیتونو کې درې عاملونو لوی لاس لرلی دی. اول باید صنعتي انقلاب یاد کړو چې په انګلستان کې پیل او په نوره اروپا کې خپور شو او د فیوډالیزم کلچر یې ختم کړ. د دې کلچر د ختمېدو په نتیجه کې د فرد حیثیت د هغۀ په لیاقت او تخصص پورې اړه پیدا کړه او دغه شي د یوې فعالې کارګرې طبقې له پیدا کېدو سره مرسته وکړه چې د ټولنې د جوړښت د بدلېدو سبب شوه.

صنعتي انقلاب په تعلیمي نصاب هم اثر واچاوۀ، ځکه فابریکو ماهرو منیجرانو او ټکنیشنانو ته اړتیا لرله. دې شي منځنیو اقشارو ته یو چانس په ګوتو ورکړ چې خپل اولادونه د مناسبو دندو د تر لاسه کولو لپاره تعلیمي ادارو ته واستوي.

دویم لوی عامل د فرانسې د ۱۷۸۹ کال انقلاب و چې سلطنت او فیوډالیزم یې ختم کړل او د ملي دولت بنیاد یې کېښود. ملي دولت د

تعلیم کا ر د کلیسا له ګوتو وایست، ملي یې کړ. دې پېښې د منځنۍ
طبقې ډېرو ماشومانو ته ګټه ورسوله.

د محصلانو په سیاسي کولو کې دریم لوی عامل د فیلسوفانو،
مفکرانو، ناول لیکونکو، هنرمندانو، او شاعرانو وو چې ټولنې ته
یې سیاسي او اجتماعي شعور ورکړ. ښوونکو او استادانو شاګردان
وهڅول چې په عملي ژوند کې برخه واخلي او د سیاسي او اجتماعي
بدلون لپاره مبارزه او مجاهده وکړي.

دغو پېښو په شریکه په اروپا کې د محصلانو د غورځنګونو پیلېدو
ته لاره اواره کړه. کله چې ناپلیون جرمني، روسیې، ایټالیې او استریا
ته ماته ورکړه او په نتیجه کې یې په مغلوبو ولسونو کې د خپلو
ملکونو د ازادۍ لپاره نشنلزم غزونې وکړې نو د محصلانو په
غورځنګونو کې لا ډېر قوت پیدا شو.



په ۱۸۱۵ میلادي کال کې د ناپلیون له ماتې وروسته، د استریا
صدراعظم میترنیخ اروپا ته زوړ نظم (د اولډ ارډر) ستون کړ چې
محصلانو ونه مانه. د میترنیخ له اقدام سره د مقابلې لپاره د جینا
پوهنتون محصلانو یوه اتحادیه جوړه کړه چې د بورشن شافتن په نوم
یادېږي. د دې اتحادیې څانګې د جرمني په کابو ټولو پوهنتونونو کې
په لنډ وخت کې جوړې شوې. پخوا به محصلانو نشې کولې، بلواوې
به یې جوړولې یا به یې د غیرت په نوم له یو بل سره ډغرې وهلې خو
دلته د محصلانو بل ډول مبارزې پیل شوې. دا سیاسي مبارزې وې.

د اتحادیې غړیو د وطنپالنې جذبه لرله او شعار یې شرف، ازادي او
وطن و. اتحادیې په ۱۸۱۷ کې په وارت بورګ کې د محصلانو
عمومي غونډه راوبلله. راغونډېو شویو محصلانو په خپلو کې
ملګرتوب احساس کړ او د بورشن شافتن د شعار ملاتړ یې وکاوه.



دوی په ۱۸۱۹کې یو ځل بیا په جینا کې سره راغونډ شول او
اتحادیې ته یې وفاداري څرګنده کړه. بالاخره د جرمن محصلانو
لومړۍ اتحادیه جوړه شوه. دوی تور، سور او طلایي د جرمني ملي
رنګونه وبلل. اتحادیې د محصلانو د ژوند په طرز کې تغییرات
راوستل. دوی اوږدې ځنې او اوږدې ږیرې پرېښودې، د جرمني د
منځنیو پېړیو زمانه یې ایدیاله وبلله او هوډ یې وکاوه چې یوه کلمه
فرانسوي به هم نه وایي.

د محصلانو د اتحادیې محبوبیت جرمني دولتونه ووېرول او په
۱۸۱۹کې یې د بورشن شافتن د بندولو حکم وکاوه. د محصلانو د
توندو حرکتونو د درولو لپاره ځینې قوانین نافذ شول. تعلیمي ادارو
ته پټ جاسوسان واستول شول چې د محصلانو فعالیتونه وڅاري. د
پروفیسرانو لکچرونو ته به جاسوسان ورتلل چې وګوري دوی څه
وایي. ښارګرو به د هغو کتابونو لیستونه کتل چې محصلانو لوستل.
دغو محدودیتونو محصلان پټو فعالیتونو ته اړ ایستل چې د ښار له
ادارو خوندي وي.

د ۱۸۳۰ کال د انقلاب په درشل کې چې قانوني نظام غوښتنه کېدله،
بورشن شافتن بیا فعالیت پیل کړ. که څه هم دغه انقلاب کامیاب نه
شو خو محصلانو د انقلابونو نوې تجربه وکړه. محصلان څو کاله
وروسته په ۱۸۴۸ کې په پاریس، ویانا او برلین کې د نورو انقلابي
ګروپونو د تکړه شریکانو په توګه راڅرګند شول. د ۱۸۴۸ کال د
انقلابونو اجندا دا وه چې په اروپا کې سلطنتي نظام ختم کړي او په
ځای یې د اساسي قانون حاکمیت او دیموکراتیکې ادارې راولي.
دوی له حکومتي قواوو سره چې پوره مسلح وې، مقابلې وکړې او په
لارو کوڅو کې یې مورچې جوړې کړې چې د دغو قواوو د حرکت مخه

ونيسي. محصلان د لارو کوڅو په نښتو کې ډېر تکړه وو، تر اخره په
ميدان کې ودرېدل.
دلته مهم ټکی دا و چې محصلانو د ديموکراتيک مقصد لپاره د
عادي خلکو په خوا کې مبارزه کوله. که څه هم انقلاب ناکام او په درې
واړو ښارونو کې وځپل شو خو محصلانو له خپلو تجربو عملي
سبقونه زده کړل چې په راتلونکو غورځنګونو کې يې ورنه استفاده
وکړه.
په ايټاليا کې محصلان په يوه ګروپ کې چې د کاربوناري (د سکرو
لمبه) په نوم ټولنه يې جوړه وه، شامل وو. دوی واحده ايټاليا غوښته
او په دې لړ کې يې د مازيني د هڅوچې د پردو له منګلو يې د ايټاليا د
را ايستلو لپاره مبارزه کوله، ملاتړ کاوۀ.
وروسته بيا په روسيه کې هم د محصلانو اتحاديه جوړه شوه چې د زار
له استبداد سره مقابله وکړي. دوی په روسيه کې ترور او تشدد ته
مخه کړه چې واکمنه طبقه ووېروي او دا ورته ووايي چې د خلکو د
منافعو په خلاف ګام مه اخلئ.
د دغو غورځنګونو تخم په اسيا، افريقا او لاتيني امريکا کې هم
وکرل شو او هلته محصلانو د ازادۍ په مبارزو کې د مخکښو رول
ولوباوۀ.



# تاريخ او افسانه

کلاسيک مورخان خپله ټوله انرژي د جګړې او د هغې له پيله تر پايه
پېښنو په تفصيلي بيان لګوي. خو د جګړو حالات ممکن له بېلو بېلو
زاويو وځېړل شي. نظامي ماهران او جنرالان بې له دې چې د جګړې
تباهيو ته اهميت ورکړي، ډېر پام د جګړې د تاکتيکونو او ستراتيژي
څېړلو ته کوي خو د تاريخ خپل ماهران د جګړې په علتونو او نتايجو
ډېر غږېږي.
معمولا د فاتحانو د کړو وړو په وړاندې کولو کې مبالغه کېږي او د
اتلانو په څېر انځورېږي. د جګړې په ډګر کې برى ملي احساسات
پاروي. دغه برى په شور وشوق و ولوله لمانځل کېږي او کله نا کله خو
د بري نېټې ان ملي ورځې شي او جشن يې جوړېږي.
تاريخ چې د غالبانو له ليده وليکل شي د مغلوبانو ليد ورکې له پامه
وغورځي. په دغسې ليکنو کې د تېري او مداخلې د عادلانه ښودلو
هڅه روانه وي او افتخار ورباندې کېږي. هر وخت چې په يوۀ ملک
تېرى شوى دى، د تېري لپاره اخلاقي توجيهات تراشل شوي دي.
معمولا ويل شوي دي چې د مداخلې په برکت ولسونه د پرځېدليو
واکمنو له ظلمه ژغورل شوي او له انارکي او ګډوډي راوتلي دي.
د بابر د يرغل د عادلانه ښودلو لپاره، مغولو مورخانو ليکلي دي چې
هغه وخت په هندوستان کې ګډوډي وه، وړې، وړې باچهۍ وې چې په
خپلو کې سره جنګېدلې او هېواد په اجتماعي او اقتصادي بحران کې

لاهو و. مغولو په هند کې انارکي ختمه کړه او سياسي ټيکاو يې راوست.

کله چې انګرېزانو د ايسټ انډيا کمپنۍ په ذريعه په هند کې سياسي واک تر لاسه کړ نو ادعا يې کوله چې د مغولو د امپراطورۍ د زوال په نتيجه کې اداره فاسده شوه، په ملک کې ګډوډۍ و ناامني راغله، پرنګيانو ناسمه اداره ختمه کړه او (انګرېزي سوله) يې راوسته.

په دغو دواړو مثالونو کې د غالبانو ليدلورۍ بيان شوی خو د مغلوبانو ليدلورۍ هېر شوی دی. حقيقت خو دا دی چې هندي ټولنه نه د بابر تر يرغل دمخه او نه د انګرېزانو د مداخلې په درشل کې له بحران سره مخ وه. د مغولو او انګرېزانو د وخت مورخانو ځکه د هند منفي انځور وړاندې کړی دی چې يرغل او غلبې ته پلمې جوړې شي.

د هند د ټولو سيمو او صوبو په نيولو کې د انګرېزانو د مداخلې او غلبې لپاره د توجيه پاليسي دغه يو شان وه. کله چې انګرېزانو په ۱۸۴۳ کې سند ونيو او په ۱۸۴۹ کې يې پنجاب لاندې کړ نو د دغو سيمو د سياسي بحران او اداري کمزورۍ په اړه يې دومره په قوت خبرې وکړې چې خلکو رشتيا وبللې، د تېريګرو نظر يې ومانۀ او ان تر ننه پورې په هند باندې د انګرېز حکومت د خدای رحمت ګڼل کېږي.

خو همېشه داسې نه وي چې مغلوبان د غالبانو ليدلوری ومني. داسې هم شوي دي چې مغلوبانو خپله ماته نه ده منلې، هغه يې د دسيسې او خيانت نتيجه بللې او د لاسه وتلي وياړ د ستنولو لپاره يې مبارزې ته ادامه ورکړې ده.

په دولسمه ميلادي پېړۍ کې محمد غوري څو ځله په هند حمله وکړه. د هغه لويه جګړه په ۱۱۹۱ کال کې د تراين په ميدان کې له پرېتوېراج سره وه چې ماته يې وکړه او د اجل له غشي په تصادف کې بچ شو. له دې



پېښې کال وروسته د تراين په دويمه جګړه کې محمد غوري خپل بدل واخيست. پرېتوېراج مات شو او ووژل شو، خو راجپوتو ماته ونه منله.

د پرېتوېراج راسا په نوم کتاب کې چې د دې جګړې بيان راغلی، تاريخ تحريف شوی دی.

د ځينو مورخانو په قول دا تاريخ هغه وخت و ليکل شو چې پرېتوېراج ژوندی و خو ځينې نور ادعا کوي چې دغه تاريخ څو سوه کاله وروسته په اوولسمه پېړۍ کې ليکل شوی دی. دغه کتاب د پرېتوېراج ماته نه مني او بلکې وايي چې راجا له ماتې وروسته محمد غوري ته بندي راوستل شو. د راجا چې سترګې ترل شوې وې، ورنه وغوښتل شول چې يوه نخښنه وولي خو دۀ محمد غوري وويشت، هغه يې وواژۀ او بيا يې ځان وواژۀ. دا کيسه چې له راجا يې اتل جوړ کړی دی او د پرېتوېراج راسا خورا مهمه برخه ده، په راجپوت قبايلو کې ډېره مشهوره شوه.

د تراين د ميدان ماته په کتاب کې په برې واوښته. دا مثال راښيي چې کله د تاريخ او افسانې تر منځ ټکر واقع کېږي نو افسانه چې احساساتي روايت کوي، له تاريخه ميدان وړي.

په ۱۳۸۱ کې صرب امير، لالازار ته عثمانيانو ماته ورکړه خو صربانو د يوې جوړې کړې افسانې په ذريعه چې د دوی په ټولنه کې خورا مشهوره شوه، ماته په برې واړوله. افسانه وايي چې د جګړې تر پيلېدو دمخه امير ته فرشته راغله، پوښتنه يې ورنه وکړه چې ايا دی په جګړه کې برۍ غواړي چې په فاني دنيا حکومت وکړي او که غواړي چې شهيد شي، خپل قام ته جنت وګټي. لالازار د قام د خير په خاطر شهادت غوره کړ. په دې ډول وينو چې د جګړې په ميدان کې ماته د صربو لپاره په معنوي فتحې بدله شوه. لالازار د خپلې قربانۍ له برکته د کليسا په بزرګانو او مقدسينو کې حساب شو.

نو د تاريخ او افسانې په روايت کې دومره فرق دی.

# د مغولو دولت

د اسیایي دولتونو په اړه ویل شوي دي چې استبدادي جوړښت یې درلود او زورورو واکمنو یې خپله اراده د قانون په چوکاټ کې نه ایساروله. خو سلطنتي نظامونه که په اروپا کې وو یا په اسیا کې، یو شان ځانګړنې یې لرلې. دغه نظامونه خورا متمرکز وو. سلاطینو ته چې اصلي قدرت له دوی سره وو، ځانونه د خدای له خوا ټاکل شوي ښکارېدل.

البته، دغو رژیمونو ځینې موسسې لرلې چې د سلاطینو د قدرت کاغذ باد ته یې چېلک وراچاوۀ. په اروپا کې فیوډالانو وخت په وخت د پاچا واک چلینج کاوۀ او د اداري په اډانه کې یې خپله برخه غوښته. دغه راز په اسیا کې، جاګیردارانو او دیني عالمانو هڅه کوله چې پاچا د دوی د ګټو او غوښتنو خیال وساتي او په دې برخه کې یې خودسرۍ ته پرې نه ږدي.

په اسلامي ټولنو کې د مراة الامرا په نوم یو ژانر و چې واکمنو ته پکې توصیه کېدله چې په عدل وچلېږي او د رعیت خیال وساتي. د نظام الملک سیاست نامه د دې ژانر یو کتاب دی چې د منځنیو پېړیو د مسلمانو واکمنو او امراوو د خوښې اثر و. په سیاست نامې سربېره د مسلمانو امیرانو د لارښودنې لپاره نور ګڼ کتابونه هم کښل شوي دي.



مورخانو د مغولو د دولت د جوړښت په اړه مختلفې خبرې کړې دي. یوه ډله وایي چې دا یو پیاوړی مرکزي دولت و چې اداره یې د بیروکراسي په لاس کې وه. ځینو مورخانو ورته د (میراثي بیروکراتیک دولت ) عبارت کارولی دی. د مورخانو بلې ډلې ویلي دي چې په دغه دولت کې واک دومره متمرکز نه و بلکې په بېلوبېلو اداري واحدونو کې وېشلی و. د دغو اداري واحدونو اداره کوونکو مستقل واک درلود او له ځایي غوښتنو سره سم سیاست یې کاوۀ. په دې منځ کې امپراطور د مرکز او ولایتونو تر منځ یوازې د ارتباط ذریعه وه.

د مغولو د دوران مورخانو خپل پام دربار او مرکز ته اړولی دی او د هغو په اړه یې رپورټونه ورکړي دي خو اوس د نوموړي دوران د تاریخ په مطالعه کې یو بل تمایل پیدا شوی دی. اوس پوهان غواړي چې د اداري په بدلونونو او د پالیسیو په جوړولو کې د هغه وخت د ولایتونو نقش او اهمیت مطالعه کړي.

فرحت حسن په خپل کتاب کې چې (د مغولو په هند کې دولت او ولایتونه) نومېږي، وایي چې قدرت د دولت د موسسې یو مهم عنصر و. قدرت له یوې خوا ، واکمنو او زورورو طبقو د خپلو ګټو د ساتلو لپاره استعمالاوۀ او له بلې خوا د حکومتي مقاماتو او ځمکه والو له فشار او ظلمه د خلکو د ساتلو لپاره استفاده ورنه کېدله. دی دا هم وایي چې په منځنۍ پېر کې د اشرافیت د وفادارۍ مفکوره نه وه. اشرافو به د خپلو شتو او امتیازونو د ساتلو لپاره د وفادارۍ لوري بدلول رابدلول.

ځینې مغول اشراف د همایون (۱۵۳۰ – ۱۵۵۵) له درباره وتښتېدل، د ګجرات د پاچا بهادرشاه (۱۵۲۷ – ۱۵۳۷) په دربارکې یې پناه

واخیسته. کله چې همایون ګجرات ونیو، د بهادر شاه اشراف
سمدستي د همایون ملګري شول خو بزګرو او سوداګرو د همایون
واک ونه مانهٔ او خپل پاچا ته یې د مالیې ورکول جاري وساتل. د دوی
دغه چلند همایون په غصه کړ، خپلو عسکرو ته یې د لوټ، تالان او
قتل عام امر وکاوهٔ. دا پېښه راښیي چې که به واکمن عادل و، عامو
خلکو ورسره وفا کوله.

فرحت حسن له محبوب واکمنه د خلکو د ملاتړ یو بل مثال ورکوي. د
ګجرات پاچا سلطان محمود دومره کمزوری و چې ان د خپل رعیت
دوو اشرافو یې اطاعت نه کاوهٔ او همېشه یې ورته د سیسې جوړولې.
سلطان یوه ورځ بازار ته ووت او په عوامو یې غږ وکاوهٔ چې له دغو
دوو یې وژغوري. خلکو چې د سلطان شکایت واورېد، د دواړو
کسانو په کورونو ورغلل، کورونه یې وروسځول، شتمني یې ورتالا
کړه او مجبور یې کړل چې ښار پرېږدي، وتښتي.

له همایونه وروسته، نورو مغولو واکمنو د هغه له سیاسي تجربو
ځینې درسونه زده کړل. فرحت حسن په نیول شویو سیمو کې د مغولو
د بري په علتونوغور کړی دی. دی وایي چې د مغولو دولت محلي
اشراف، علما او صوفیان په دولتي کارونو کې استخدام کړل او د
دوی د وفادارۍ د ترلاسه کولو لپاره یې لقبونه او جاګیرونه ورکړل. له
بلې خوا په هغه دوران کې بزګرانو ته هم خاصه توجه کېدله ځکه چې
له دوی سره د عوایدو یوه لویه برخه غوټه وه.

حسن د سورت او کامبې مثالونه ورکوي چې مغولو والیانو هلته د
ځایي اشرافو او سوداګرو په همکارۍ حکومت کاوهٔ. والیانو د
مرکزي حکومت نماینده ګي کوله او ځایي اشرافیت ته په اداره کې
برخه ورکړه شوې وه. دا ښیي چې د مغولو دولت مطلق العنانه نهٔ و



بلکې د ځایي خلکو په مرسته یې حکومت چلاوهٔ. د بازار خلکو او
سوداګرو به د فاسدو او نالایقو چارواکو په خلاف مظاهرې کولې او
د هغو د عملونو په اړه به یې پاچا ته معلومات ورکول. پاچا معمولاً د
خلکو غوښتنه منله او نامحبوب افسران یې تبدیلول.

خلکو له چارواکو د شکایت څرګندولو بېلې بېلې طریقې لرلې. یوه
طریقه یې دا وه چې په چارواکي پسې به یې سپکې سپورې و ویلې،
سپکه به یې ورواړوله او د خندا او د ټوکو به یې کړ.

په ۱۶۸۵ کال کې چې د مارکیټ د چارو مسوول شیخ عبدالوهاب د
قیمتونو په کنټرول کې پاتې راغی، نو خلکو یې په ګاډۍ باندې تېرې
وورولې او توهین یې کړ. په ۱۷۲۴ کې د کامبې د والي احسان الله په
کاروان باندې هم خلکو همدا ټوکه وکړه، د تیږو باران یې ورباندې
ووراوهٔ. احسان الله د خلکو خورا بد ایسېدهٔ.

د مغولو د دوران په هندوستان کې دا هم وینو چې سوداګرو او
دوکاندارانو د حکومت د پالیسو خلاف خپل دوکانونه بند کړي او
چارواکي یې د خپلو غوښتنو منلو ته اړ ایستلي دي.

تاریخ راته وایي چې عوامو د بې عدالتۍ او فساد پر خلاف همېشه
اواز اوچت کړی دی او داسې نه وو چې دوی دې یوازې لاس تر زنه
کښیني، د نورو د قدرت د لوبې ننداره دې وکړي.

# د قبرونو ډبرلیکونه

د مړي خښول خورا پخوانی دود دی. دا عقیده چې مړي به یوه ورځ راپاڅي او ژوندي به شي، د دې سبب شوې ده چې ټولنه او خپلوان د مړي خپل شیان په قبرکې ورسره خښ کړي چې په بیا ژوندون کې یې پکار راشي. په دغو شیانو کې خټین لوښي، ډوډۍ، وسلې، جواهر او زیورات شامل وو. په قبرونو کې اېښودل شویو شیانو لرغونپوهانو ته د پخوانو ټولنو د کلچر او تاریخ په اړه ډېر څه وروښودل.

کله چې په ګڼو ټولنو کې د شخصي جایداد د لرلو او میراث مفکوره خپره او د مړي د اولاد او خپلوانو تر منځ د هغهٔ د جایداد د وېشلو چاره عامه شوه، په قبرونو کې د شیانو د اېښودلو رواج له پامه وغورځېد.

د قبر د پاسه ډبرلیک ځکه رواج شو چې د قبر خاوند وپېژندل شي. ډبرلیکونه مازې نخښې نه وې بلکې د مړي د ژوند په اړه معلومات، د هغهٔ بریاوې، وړتیاوې، ځانګړنې، او د هغه لپاره دعا چې په بله دنیا کې یې جنت په نصیب شي، دا ټول پکې راتلای شوی. کله نا کله به په ډبرلیک باندې د فاني دنیا په اړه او د دنیایي خوندونو په یاد د مشهور شاعر اشعار ثبت شوي وو. په ډبرلیکونو به دا یادونه هم راتله چې د ژوند وروستی منزل دغه دی.

مورخانو چې د مختلفو زمانو د قبرونو ډبرلیکونه ولوستل، هڅه یې وکړه چې د بېلو بېلو زمانو د کلتوري او اجتماعي اقدارو او رواجونو



د تاریخ په تدوین کې ورنه کار واخلي. مثلا که ټولنې په قیامت عقیده لرلې ده نو د هدیرو ډبرلیکونو یې په بله دنیا کې د اجر و جزا په اړه د خلکو باورونه را اخیستي دي. که ټولنه بېخي بې دینه وه نو د قبرونو ډبرلیکونو یې د خدایانو او د هغوی د غضب او جزا ګانو په اړه خبرې نه دي کړې.

په تاریخي لحاظ د بلې دنیا وېره هالهٔ را پیدا شوه چې لویو دینونو ظهور وکړ او د ښو چارو لپاره په جنت کې د اجر او د بدو چارو لپاره په دوزخ کې د جزا مفکوره وغوړېده. په بې دینو ټولنو کې د مرګ وېره نه وه. مړینه له اندېښنې پرته طبیعي ښکارنده انګېرل کېده.

د قبرونو د ډبرلیکونو په بحث کې د رومیانو د قبرونو لیکنې خورا جالبې دي. مورخانو او لرغونپېژندونکو د رومي قبرونو کابو سل زره ډبرلیکونه لوستي دي. دغه لیکنې راښیي چې دوی په قیامت باندې چندان عقیده نه لرله او ان د مرګ په وخت یې هم د دې دنیا له چارو سره دلچسپي وه. دا د روم د اشرافو او شتمنو رواج و چې له ښاره راوتلې لارې په غاړه به یې قبر جوړاوهٔ. په دې کار کې مقصد دا و چې لارویان او مسافر قبرته ودرېږي او ډبرلیک ولولي. د ډبرلیکونو موضوعات د مړیو له شخصي مسایلو سره اړه لري. په ګڼو ډبرلیکونو باندې دوستانو او خپلوانو ته د قبر د څښتن ورمونه او لارښوونې او غلیمانو ته یې کنځلې او غندنې لولو. لارویانو ته د ښه سفر هیله یوه بله هغه خبره ده چې په رومي ډبرلیکونو کې یې ډېره وینو.

د یوهٔ رومي قبر په ډبرلیک باندې لارویو ته ویل شوي دي چې: لارویه، ولوله هغه څه چې ما په دې دنیا کې کړي دي. او اوس چې تا ډبرلیک ولوست نو ښه سفر درته غواړم. ) په ځواب کې یوهٔ لارووي په دغه قبر باندې کنبلي دي چې: ځان ته یې هم وغواړه. )

ځينو کسانو د خپلو قبرونو په ډبرو خلکو ته خپل پيغامونه پرې ايښي او ورته ويلي يې دي چې د دوی د ژوند له تجربو سبق واخلي. د يوهٔ رومي قبر په ډبره کښل شوي دي: زما چې څومره ژوند و ټول مې په ذلت او کنجوسۍ کې تېر کړ. زه درته نصيحت کوم چې تر ما له ژونده ډېر خوند واخله. دا ژوند دی: تر دې ځايه راورسېدې او نور به يې وغځوې. ما د خپل استاد نصيحت ته هيڅوخت اعتنا ونه کړه. له ډاکترانو سره پام کوه. دوی زما په قاتلانو کې شامل دي. )

ځينو کسانو ان د قبر له منځه هم خپل غليمان او مخالفان نه دي هېر کړي او سپکې سپورې يې ورته ويلي دي. يوهٔ اشرافي هغه څوک چې دهٔ ازاد کړی او هغه ورسره خيانت کړی و ، د خپل قبر په ډبرليک باندې قطاع الطريق او لاره وهونکی بللی دی. يوهٔ پلار ويلي دي چې نهٔ منونکې لور ته ميراث نه ورکوي. يوې مور په بلې ښځې تور لګولی چې د دې زوی ته يې زهر ورکړي دي. د يوهٔ قبر په ډبرليک باندې د مړي دا ارزو کښل شوې ده چې د دهٔ ګناهکار او شرير ملګری دې د اسمانونو د خدايانو په غضب ګرفتاره شي.

د ماشوم يا ځوان په مړينه د وير او خپګان خبرې هم د قبرونو په ډبرليکونو لوستلای شو. يو ځای لولو: باکس (په روم کې د شرابو خدای) دی وتښتاوهٔ چې د ځان دوست او ملګری يې کړي.

د شخصي ژوند تاريخ په نوم کتاب مولف پاول وېن ليکي چې: مونږ په دې باندې د يوهٔ حقيقت په توګه پوهېدلي يو چې کله به يو رومي د يو څه مطالعې شوق وکړ نو له ښاره به ووت. د قبرونو د ډبرليکونو لوستل د بدخطو کتابونو تر لوستلو اسانه وو. هلته به هيڅا د ويرجنو د وير خبره نه کوله، ټولو د مړي د اجتماعي رول او د کورنۍ او ملګرو په مقابل کې د هغه د وفا او تر سره کړيو کارونو ذکر کاوهٔ. دا يو



اجتماعي عيب نه و چې د چا په مېلمستيا کې دې د هغهٔ د قبر د ډبرليک په اړه خبرې وشي. د کوربه په ذهن کې به شايد غمجن فکرونه ورتېر شوي وای خو هغه به دا ډاډ تر لاسه کړی و چې له مرګه وروسته به يې هم د خلکو په خاطرو کې درناوی کېږي. )

د تېرو وختونو د ډبرليکونو مطالعه راښيي چې څنګه د مرګ مفکوره وخت په وخت بدله شوې ده. خو يو شی يقيني دی او هغه د انسان دا ژوره ارزو ده چې له مرګه وروسته هم هېر نه شي. ځينې کسان د لنډ وخت لپاره په حافظو کې پاتېږي، ځينې نور چې نېکمرغه دي، د ژغورونکو او اتلانو په حيث د ډېر وخت لپاره په يادونو کې پاتېږي. مونږ د مړهٔ بنيادم د ياد په ژوندي ساتلو کې د قبرونو د ډبرليکونو له روله انکار نه شو کولای.

# تنباکو

په طبي لحاظ خو اوس دا معلومه ده چې سګرټ څکول د روغتيا
لپاره د زهرو حيثيت لري او له همدې کبله د دې عادت د پرېښودلو
او کمولو په مقصد قوانين تصويب شوي او اجتماعي بنديزونه
لګېدلي دي چې عمومي ځايونه د تنباکو له لوګيو پاک وساتل شي.
خو داسې زمانه هم وه چې اروپايان د تنباکو په ليدو ګېنې نيول او د
زړهٔ له تله يې غوښتل چې له امريکا څخه په دې نوي راوړل شوي بوټي
عادت شي. تمباکو په لومړي ځل له امريکا څخه اروپا ته اسپانويانو
راوړل.
په کيوبا کې د کولمبس ملګرو د ځايي خلکو تنباکو څکول ليدلي وو.
دغه مشاهده په اسنادو کې دا رنګه ثبت شوې ده: دوی دا يو سر بلوي
او دا بل سر زبېښي، ژدويي يې او هغه لوګی کشوي چې تېر ته يې
ننباسي، چې ورسره يې بدن کرخت کېږي، ګواکې نشه کېږي، دوی
وايي چې دا چم وکړي بيا نو ستړيا نه پېژني.)
تمباکو په اروپا کې ژر عام شول. پرتګاليانو تمباکو جنوبي هند ته
راوړل او له همدې ځايه د اسد بېګ په نوم يوه اشرافي په لاس په
(۱۶۰۴–۱۶۰۵) کې د اکبر دربار ته راوړل شول.
اکبر پاچا، اسد بېګ بېجاپور ته د خپل استازي په حيث استولی و.
دلته دهٔ تنباکو وليدل او څرنګه چې پوهېدهٔ چې اکبر د نويو او نادرو
شيانو شوقي دی نو فيصله يې وکړه چې تنباکو د سوغات په توګه



اکبر ته يوسي. د اسد بېګ په قول اکبر يې په ليدو تعجب څرګند کړ،
د تمباکو په باره کې يې چې په پايپ کې و، پوښتنې وکړې، ويې
ويل، دا څه دي، له کوم ځايه دې راوړي دي. نواب خان اعظم ورته
وويل چې: دا تنباکو دي، په مکه او مدينه کې ورسره خلک ښه بلد
دي. دغه طبيب تاسې معظم ته د دوا په توګه راوړي دي.)
اکبر کنجکاو شو او ويې غوښتل چې ويې څکوي. اسد بېګ ورته يو
ښکلی چيلم راوړ. دا چيلم چې درې زرعې (د لاس د منځوی ګوتې له
سره د څنګلې تر سره پورې فاصله چې په متوسط ډول نيم ګز کېږي.
ژباړن) اوږد و، په ښه طريقه وچ شوی او رنګ شوی و. دواړه سرونه
يې جواهر نشانه او مينايي شوي وو. د دربار طبيب هڅه وکړه چې
پاچا د يوې نا اشنا دوا له څکولو راوګرځوي، ځکه شايد صحت ته
خطر پېښ کړي خو اکبر ونه منله او د اسد بېګ د خوشحالولو لپاره
يې لږ تمباکو وڅکول. وروسته بيا اکبر له دوا پېژندونکي څخه چې د
تنباکو او د هغه د خواصو په اړه د معلومات ورکولو لپاره دربار ته
رابلل شوی و، پوښتنې وکړې. دوا پېژندونکي وويل چې د دهٔ په
کتابونو کې د تنباکو په باره کې هيڅ نه دي راغلي. وروسته بيا د
تمباکو په اړه يو جالب بحث وشو چې د اکبر په دربار کې د
روشنفکری د چاپېريال ښودنه کوي. يوهٔ طبيب وويل: دا يوه ناتجربه
شوې دوا ده چې طبيبانو يې په باره کې هيڅ نه دي ليکلي. نو موږ
تاسې معظم ته د داسې ناپېژندل شويو شيانو خواص څنګه بيا ن
کړو؟ دا به ښه نه وي چې تاسې معظم يې امتحان کړئ.)
اسد بېګ طبيب ته ځواب ورکړ: اروپايان احمق نه دي چې تنباکو به
نه پېژني خو څکوي به يې. په دوی کې عاقل کسان شته چې په ندرت
سره تېروځي او خطا کوي. تاسې څنګه کولای شئ چې د يو شي تر

تجربه کولو او د هغه د خواصو تر معلومولو دمخه، د هغه په اړه قضاوت وکړئ، د داسې شي په باره کې چې ممکن له طبيبانو، پاچهانو، لویو کسانو، او اشرافو سره تعلق ولري؟ په شیانو باید د هغو د ښو یا بدو خصوصیاتو په اساس قضاوت وشي او فیصله باید د موضوع د حقایقو مطابق وي.

طبیب ځواب ورکړ: موږ د داسې عادت په منلو کې چې زموږ عاقلانو تجربه کړی او منلی نه وي، د اروپایانو پیروي نه کوو.

اسد بېګ ورته وویل: دا نو عجبه خبره ده. له ادمه تر دې دمه هر دود یو وخت نه یو وخت نوی و. عادتونه او دودونه ورو ورو پیدا شوي دي. کله چې په یوه ټولنه کې یو نوی شی پیدا کېږي او د دنیا خلک ورسره ښه بلد ېږي نو هر څوک یې مني. د یوهٔ شي د ښه والي یا بد والي په اړه باید طبیبان او هوښیاران فیصله وکړي. د یوهٔ شي ښهٔ خصوصیات ممکن وار له واره معلوم راڅرګند نه شي.)

اکبر له دې مباحثې خوند واخیست او تبصره یې وکړه چې: واقعا موږ باید یو شی چې د نورو ملتونو هوښیارانو منلی دی، یوازې په دې دلیل چې دا خو زموږ په کتابونو کې نشته، رد نه کړو. کنه نو څنګه به پرمختګ کوو؟

اسد بېګ ډېر تمباکو او یو شمېر چلمونه راوړل چې خپلو ملګرو او اشرافو ته یې سوغات ورکړي. اکبر بل ځل تمباکو ونه څکول. د مآثر رحیمي لیکوال هم دغه تنباکو چې په اول ځل د اکبر په زمانه کې راوړل شول او د مغولو اشرافو په ټولنه کې په لنډ وخت کې رواج شول، وڅکول. البته، داسې ښکاري چې د تنباکو له څکولو سره کلک مخالفت هم شوی دی. جهانګیر پاچا په ۱۶۱۷ کې په خپل توزک کې یادونه کوي چې: څرنګه چې د تنباکو څکول د ګڼو خلکو په ذهن او



صحت بد اثر کړی و نو ما امر وکړ چې هیڅوک دې یې نه څکوي. زما ورور، شاه عباس، هم د تنباکو له ناوړه اغېزو خبر دی او د هغو استعمال یې منع کړی دی.)

داسې ښکاري چې په اوولسمه پېړۍ کې د تنباکو له څکولو سره پراخ مخالفت وشو. په هغه وخت کې د انګلستان پاچا لومړي جیمز هم د تنباکو استعمال منع کړ. عثماني امپراطور سلطان مراد (۱۶۲۳ – ۱۶۴۰) هم په تنباکو بندیز ولګاوه. له بندیزه د غاړه غړوونکي جزا اعدام وه.

انګرېز سفیر توماس رو ته چې د شپاړلس سوه پنځلس او شپاړلس سوه اتلس کلونو تر منځ موده کې د مغولو دربار ته تللی و، په هندوستان کې د تنباکو موندل مشکل شول، ځکه بندیز ورباندې لګېدلی و. دئ په انګلستان کې خپل یار، پاپ ول ته ولیکل چې د هغه د خپل مصرف لپاره څلور، پنځه پونډه تنباکو ورواستوي. کله چې جرمن سیاح ماندېسلو د شاه جهان په زمانه کې هند ته لاړ، هلته یې ولیدل چې د تنباکو استعمال هم په اشرافي ټولنه کې او هم په عادي خلکو کې عام دی.

تاریخي اسناد راښیي چې وروستنو مغولو واکمنو د بانډار خانې په نوم د تنباکو د څکولو لپاره بېله شعبه لرله. شاهانو، نوابانو او اشرافو به د چلیم د څکولو لپاره خاص ترتیبات نیول. کله چې انګرېزان هندوستان ته راغلل، دوی هم په اوله کې همداسې وکړل. چې یو څه وخت تېر شو، عوامو هم د چیلم د څکلولو لپاره پېچلي رواجونه په شوق سره ومنل. چیلم د خلکو او ولس د ورورګلوۍ یو سمبول شو.

# غزنوي محمود

د شلمې پېړۍ په شلمو کلونو کې چې د هند سیاست د فرقه پرستۍ (کمیونالیزم) ښکار شو، د هند په تاریخ باندې هم دغه ټوکه وشوه. د دواړو غاړو مورخانو خپل اتلان وغټول او د نورو په اتلانو پسې یې بد و رد وویل. هندو کمیونالستو غزنوي محمود (۹۶۸ – ۱۰۳۰) وحشي او ډبرزړی بنیادم وبالۀ چې هند ته یې تباهي راوسته، په شاهي خزانو او معبدونو کې راټوله شوې شتمني یې ولوټله او هند یې په سیاسي انارکي او اقتصادي بحران دوچاره کړ. د محمود له خوا د معبدونو ورانېدا او د بوتانو بې احترامي د هندوستان د خلکو مذهبي ژوند پرېشان کړ. د دغو کمیونالستو په نظر، محمود یوه وژونکې بلا وه چې هند ته یې نه جبران کېدونکي تاوانونه واړول.

له بلې خوا مسلمانو کمیونالستو مورخانو د محمود فتحې په ډېر شد و مد وستایلې او د بت شکن په لقب یې ولمانځۀ. ایم، ناظم په خپل کتاب (د غزنوي محمود ژوند او زمانه) کې هغه یو داسې لوی جنرال یاد کړی دی چې هیڅ وخت یې ماته ونه کړه، ټول خنډونه یې له مخې لرې کړل او په خپلو ګردو پلانونو کې بریالی شو.

محمود شیراني په خپلو څو مقالو کې د دې تور د ردولو هڅه کړې ده چې غزنوي محمود له لوی شاعر فردوسي سره په خپله ژمنه ونه درېد او هغومره پیسې یې ورنه کړې چې ورته ویلې یې وو. شیرواني وايي چې محمود سخي سړی و، د علم او ادب د خاوندانو حامي و. د دۀ په قول، دا تورونه غلط دي چې محمود حریص او کنجوس و.



محمد حبیب په خپل کتاب (غزنوي محمود) کې د محمود نقش له سکیولر او غیر مذهبي لیدلوري شنلی دی. د حبیب په نظر محمود د فتحه شویو سیمو د نیواک او له ځان سره ساتلو شوقي نه و. د دۀ دلچسپي دا وه چې له هنده ثروت یوسي او په مرکزي اسیا کې یې د خپلې امپراطورۍ په جوړولو ولګوي. دۀ له ځان سره له هنده د کسب او کمال خاوندان بوتلل چې خپل پایتخت، غزني وربانديې ښکلی ودان کړي. غزني د محمود په زمانه کې په لنډ وخت کې د علمي او ادبي فعالیتونو زړۀ او مرکز شو. محمود د مذهب په چارو کې متعصب نه و. د زغم څښتن و او په خپل پوځ کې یې هندیان هم شامل کړل. دۀ پنجاب له خپل قلمرو سره یو ځای کړ او لاهور یې ورته پایتخت وټاکۀ. لاهور په لنډ وخت کې په یو ۀ اسلامي ښار بدل شو. دې ښار ته له ګردې اسلامي نړۍ پوهان، دیني علما، صوفیان او شاعران راغلل.

د محمود پراخې او مظبوطې امپراطورۍ د بغداد د خلیفه سیاسي قدرت ته خطره پېښوله. په نتیجه کې د غزني د سلطنت او په بغداد کې د عباسي خلافت تر منځ اختلافونه پیدا شول. چې څومره محمود سلطنت پیاوړی کاوۀ هغومره په بغداد کې د خلافت قدرت او اقتدار کمېدۀ. دغه حالت په اسلامي دنیا کې یو تغییر راوست او خلکو د خلیفه په ځای له خپل سلطان سره چې د دوی ساتندوی او مدافع و، وفاداري څرګنده کړه. خلیفه د اسلامي نړۍ تش په نوم مشر باندې بدل شو. سلاطین چې پوره مستقل شول نو د خپلو خلکو د هویت ځلولو او د ځایي کلچر غوړولو ته یې مټې راونغښتې. د دې کار یوه نتیجه دا راووته چې اسلامي نړۍ ووېشل شوه او محلي واکمنو په خپلو ټولنو کې د خپل قدرت رېښې وځغلولې.

دغه سیاسي تغییر، په غزنوي دربار کې د فارسي ژبې او کلچر د احیا سبب شو. دې کار دعربي ژبي سلطه وګواښله او فارسي یې د علم و ادب په ژبې بدله کړه.

محمود خپل دربار ته د لویو ادبي څېرو او پوهانو په وربللو سره د فارسي ژبې حمایت وکاوۀ. ابن سینا یو هغه څوک و چې د محمود بلنه یې ونه منله. خو نورو د محمود بلنه ومنله، د هغه دربار ته لاړل او له امتیازونو برخور شول.

ستر شاعر فردوسي د شاهنامې په ليکلو سره د ايران لرغونی افسانوي تاريخ تدوين کړ. شاهنامه د ايراني نشنليزم لپاره د مقدس کتاب حيثيت لري. شاهنامه له عربي کلچر سره د مقابلې او د ايراني دودونو او ارزښتونو د ستايلو او غځولو لپاره يوه پياوړې وسله وه چې له عرب امپرياليزم سره په مقابله کې د ايران نشنلستې غورځنګ ته په لاس ورغله. شاهنامې په فارسي ژبې سيمه کې د عربي کلتور وده ورو کړه او وېې دروله. د هند مسلمانې ټولنې هم تر عربي کلچر ايراني کلچر ډېر ورخپل کړ، ځکه اسلام د ايران له لارې هند براعظمګي ته ورسېد. د محمود زمانه د فارسي ژبې د رنسانس زمانه بلل کېږي.

د محمود په لاس د هند فتحې نامتو عالم البيروني ته هم دا چانس ورکړ چې هند ته راشي او هندي کلچر و تمدن له نژدې مطالعه کړي. د دۀ تحقيق (کتاب الهند ) د هند د مذهب، فلسفې، دودونو او شعايرو د پېژندلو لپاره تر ګردو ښه او تر ګردو دقيق سند دی. کتاب الهند د مسلمانې دنيا او هندوستان تر منځ د فاصلې په سين باندې د تفاهم او پوهاوي يو پل وتارۀ.

دلته يو تاريخي درس دی چې زده کړه يې پکار ده: د غزنوي محمود په لاس لويه جوړه شوې امپراطوري د هغه له مړينې وروسته په لنډ وخت کې ونړېده خو په ذهنونو باندې د شاهنامې او کتاب الهند اغېزان تر ننه پورې پاتې دي.

د انګرېزانو او افغانانو تر منځ د دويمې جګړې په زمانه کې برطانوي پوځ د هندوانو د خوشحالولو او د افغانانو د سپکاوي په خاطر د سومنات دروازې له غزني څخه هندوستان ته يوړې. خو مخکې تر دې چې په معبد کې ودرول شي، معلومه شوه چې دغه دروازې له خورا ورستيو وختونو سره تعلق لري. شايد مقاماتو به شرم او سپکاوی احساس کړی وي چې دروازې يې په اګره کې په يوه زېرخانه کې کېښودلې او د هغو په هکله يې بيا هيڅکله هيڅ ونه ويل. په دې ورستيو کې، روميلا تاپار د سومنات په اړه خورا عالي مقاله ليکلې او هغه ټوله افسانه يې راسپړلې چې په دې اړه موجوده ده.



# حقونه او مقاومتونه

ستمګرو واکمنو طبقو د تاريخ په هر پړاو کې ولسونه استثمار کړي دي او چې ولسونو په ټولنه کې د محترم ځای د لرلو، عدالت او مساوات غوښتنې کړې د دوی له غوښتنو سره مخالفت شوی دی.

د استبدادي سلطنتونو په زمانه کې چې ټول واک له ټولواک سره و، له هغه سره مخالفت بغاوت بلل کېدۀ. بغاوت لوی جرم و او باغي ته په بې رحمۍ سره سزا ورکول کېدله. باغيان شکنجه کېدل، د دوی کولمې را ايستل کېدلې او په ښکاره اعدامېدل چې نور خلک سبق واخلي. خو له سختو سزاګانو سره سره، د خلکو چې هر وخت وس رسېدلی د ظالمانو په خلاف يې اواز او چت کړی دی.

دا به شايد له ازادۍ، برابرۍ او عدالت سره فطري مينه وي چې خلک له رسمي او منل شويو رواجونو سره مقابلې ته وربولي. ډېر ځله وينو چې خلکو له هغې وروسته هم مبارزې ته دوام ورکړی او له سربښندنې يې لاس نه دی اخيستی چې د پوره مسلح دولتي قواوو په وړاندې يې د برې تمه شلېدلې ده. د خواشينۍ ځای دا دی چې مورخانو له خلکو سره خواخوږي نه ده لرلې. مورخانو د خلکو د مبارزو د ثبتولو په ځای پاڅون کوونکي د ټولنې غليمان ياد کړي او د نظام د ثبات د ختمولو عاملان يې بللي دي. د تاريخ ليکونکو د دې سلوک نتيجه دا ده چې

اوس د اکثرو تېرو مقاومتونو په باره کې معلومات نه لرو او د ماضي
په دوره کې رانه پټ و ورک دي.
په معاصره زمانه کې مورخان هڅه کوي چې د تېرو مقاومتونو تاريخ
راپيدا کړي. بزګرو د ډېرو ټکسونو او د اضافي حاصلاتو د نه ترلاسه
کولو په وجه د ملاکانو په خلاف پاڅونونه کړي دي. غلامان د اجباري
کار او ناوړه چلند په خلاف راپاڅېدلي او کسبګر، کارګر او
دوکانداران د چارواکو کبر و کلانکاري، چې د دوی وس ته يې نه
کتل خو پيسې ورنه غوښتې، پاڅون ته مجبور کړي دي. خلکو په
ښارونو کې مظاهرې کړې او د بدې ادارې يا د خوړو د لوړې بيې په
مقابل کې يې تحريکونه چلولي دي. دغو تحريکونو د اخوت يو
احساس پيدا کړی او دغه احساس خلک د خپلو غليمانو په مقابل
کې يو موټی کړي دي.
د مقاومت له دغو تحريکونو سره په ټولنه باندې تلپاتې اثرات پرېوتل
ځکه د ټولنې حساس او مهم سياسي، کلتوري او مذهبي مسايل رڼا
ته راوتل او بېداري راتله نو تغيير ته متې رانغښتل کېدې.
البته دغه اغېز د ټولنې په ټوليزه حافظه کې پاتېږي او په راتلونکو
نهضتونو باندې ژور اثر غورځوي. مثلا په اوولسمه ميلادي پېړۍ
کې په انګلستان کې د ډيګرز او ليولرز په نوم د مقاومت دوه
نهضتونه رامنځ ته شول چې راديکالې غوښتنې يې لرلې. دوی
غوښتل چې بزګرو ته دې د ناکرل شويو ځمکو د کرلو اجازه ورکړه
شي، شخصي ملکيت دې لغوه شي، په اجتماعي او سياسي لحاظ
دې له ټولو وګړيو سره برابر چلند وشي، د رايو حق دې لازياتو کسانو
ته ورکړ شي، او د لاردانو جرګه دې ختمه شي.



دغه تحريکونه له روحانيونو سره هم وران وو ځکه هغوی د منل شويو
رسمي اصولو چې د عوامو له ګټو سره په ټکر کې وو، ملاتړ کاوه.
خو د مقاومت ځينې تحريکونه په دومره بې رحمۍ سره ځپل شوي چې په
ټولنه يې هيڅ اثر ونه شينده. په هندوستان کې بزګرو او قبايلو د
استعماري حکومت په خلاف بغاوت وکاوه خو د دوی هڅې په کاميابۍ
سره وځپل شوې.
سنتالي په ۵۷-۱۸۵۵ کې، د نيلو کرونده ګرو په ۱۸۶۲ کې، په پونه کې
مرهټه بزګرو په ۱۸۷۶ کې، او د شرقي بنګال بزګرو په ۱۸۷۲ کې د
استعماري دولت خلاف بغاوتونه وکړل خو دغه ټول بغاوتونه وځپل شول.
د ۱۸۷۶ او ۱۸۹۶ کلونو په منځ کې د هند د جنوب د موپلا بزګرو د ملاکانو
او برطانوي حکومت په خلاف دوه ويشت ځله پاڅون وکاوه.د دوی پاڅون
هر ځل وټکول شو او په ۱۹۳۰ کال کې يو ځل بيا چخني شو. خو هغه څه چې
څرګند دي دا دي چې دغو باغيانو هيڅ وخت ماته ونه منله.
کله چې د مقاومت يو غورځنګ کاميابېږي، نو خلکو ته روحيه ورکوي
چې له يوې نوې انرژۍ سره په ټولنه کې ريفورم راولي. خو که وځپل شي
نو خلک تر څه وخته پورې په روحي لحاظ مړاوي وي. دې ته کافي وخت
پکار وي چې خلک له کوما ډوله حالته راووځي او په ځان کې يو ځل بيا
د مقاومت انرژي احساس کړي.
هغه ليډران چې په ماضي کې له سرونو تېر شوي د اتلانو په څېر
راڅرګندېږي. مثلا د روم د امپراطورۍ په خلاف راپاڅېدلی غلام،
سپارتاکوس چې په شپېتمو او اويايمو کلونو کې د راديکالو ګروپونو
سمبول شو. نن ورځ زپاتا، چيګوارا، او بګت سينګ چې له ستمګرو
رژيمونو سره وجنګېدل، د اتلانو مقام لري. که څه هم دوی په خپل وخت
کې ناکام شول خو وروسته بيا د راتلونکو نسلونو لپاره د الهام
بخښونکو په توګه وځلېدل.

# په شمالي هند باندې د ترکو غلبه

په یولسمه او دولسمه میلادي پېړۍ کې د هندوستان په شمالي سیمو باندې ترکانو حملې وکړې چې په نتیجه کې یې د ډیلي سلطنت تاسیس شو. مورخانو د دغو فتوحاتو د اغېز په اړه بېلې بېلې خبرې کړې دي. د تاریخپوهانو یوې ډلې دا حملې، فتحې او نیونې د هندوستان لپاره مصیبت او افت بللې دي ځکه د هند د تاریخ بهیر یې مختل کړی دی او د هندي ټولنې په وده او پرمختګ کې یې ګډوډۍ پېښې کړې دي.

د دوی په نظر د دغو فتوحاتو په نتیجه کې یو بهرنی عنصر د هند د سیاست، ټولنې او اقتصاد په میدان کې لاسبری شو. دغه عنصر د هندوستان خپل خلک د خپل وطن په چارو کې له فعال رول لوبولو راوګرځول او په دویم درجه کسانو یې بدل کړل. بله دا چې د یرغلګرو او مدافعانو تر منځ جګړې د ګڼو هندیانو د وژلو سبب شوې او د هند خلک یې بې سېکې کړل. دغو حملو هندوستان ته په کلتوري او معنوي لحاظ لوی تاوانونه ورسول.

خو ځینې نور مورخا ن وایي چې د ترکو حملو هندیان له درانۀ خوبه راپاڅول او دوی یې له نویو چیلنجونو سره مقابلې ته چتمو کړل دوی چې خطر ولید نو وسله یې راواخیسته او خونړۍ جګړې یې وکړې. د مقاومت روحیې په هندي ټولنه کې نوې سا پوه کړه او د لید ونظر ساحه یې ورپراخه کړه.

دغه مورخان دا هم وایي چې د ترکو تر فتوحاتو دمخه شمالي هند په وړو ، بې اهمیته دولتونو وېشلی و چې کمزورو خو مستبدو واکمنو ورباندې حکومت کاوۀ. دغه واکمن به له خپلو غلیمانو سره په جګړو بوخت وو او



خپل قوت او امکانات یې د هیڅ لپاره لګول. د ترکو د استیلا یوه مهمه نتیجه دا وه چې دا وړې واکمنۍ ختمې او په یوه واحد سیاسي سیستم کې چې سوله او ثبات یې راوړ، مدغمې شوې.

ترکو له ځان سره یو نوی کلچر راوړ او هندي ټولنه یې په لنډ وخت کې په ځو کلچرواله ټولنه بدله کړه. د کلچر تنوع د هندي ټولنې په رګونو کې چې یوازې شوې وه او نویو نظریو ته یې اړتیا وه، تازه وینه جاري کړه. یو مثال به راواخلو: د ترکو تر نیواک دمخه پوځي خدمات یوازې په کشتریا طبقې پورې محدود وو، نورو طبقو د وسلو لرلو اجازه نه لرله. د ترکانو استیلا دغه انحصار ختم کړ او ټولو طبقو ته یې د پوځي خدمت اجازه ورکړه.

څرنګه چې نویو فاتحانو په ښارونو کې واړول او خپل پوځونه یې د ښار په کلاګانو کې دېره کړل نو له دې سره ښاري انقلاب راغی چې د ښار ټول جوړښت یې بدل کړ. نوي ښارونه ودان او پخواني ښارونه پراخ و بهتره شول. د علیګړ د نامتو مورخ، محمد حبیب په نظر، دغه ښاري انقلاب په هندي ټولنه کې عظیم تغییرات راوستل.

نجس او د ټیټو طبقو خلک چې د ښار په چاردیوالي کې یې د اوسېدا اجازه نه لرله، د ښار په داخل کې له نورو طبقو سره اوسېدلو ته پرېښودل شول. د محمد حبیب په نظر دې نوې پالیسي ښاري جوړښت مظبوط او د تېرې په مقابل کې د ښارونو د مقاومت قوت زیات کړ. په ښار کې ژوند د دې سبب شو چې کسبګر او صنعتګر خپل مهارتونه لا زیاتو خلکو ته وروښیي.

اشرافو او شاهي کورنیو ښې جامې، پسولونه، جواهر، فرنیچر او د اسونو او هاتیانو لپاره وسایل پکار وو. دغه صنعتګر په شاهي کارخانو کې استخدام شول چې د اړتیا وړ شیان جوړ کړي. د صنعتګرو اقتصادي سوکالي په ټولنه کې د دوی قدر زیات کړ. حال دا چې دوی په پېړیو پېړیو په بې قدرۍ کې ژوند کړی و.

کله چې فارسي د دربار ژبه شوه، د سانسکریت ژبې او برهمن طبقې چې د سانسکریټ زده کړه یې په انحصار کې وه، اهمیت کم شو. برهمنانو، چې

نور ورته په دربارونو کې ځای و ډوډۍ نه وه، نورو کارونو ته مخه کړه. دوی له سوداګرو سره کاتبان و محاسبان شول او په دې ډول یې په ټولنه کې قدر کم شو. لکه څنګه چې البیروني وايي، ځینې برهمنان د محمود له یرغله وروسته کشمیر ته او د هندوانو نورو واکمنیو ته ولېږدېدل چې په دربارونو کې ډوډۍ پیدا کړي او بې قدره نه شي.

خالق احمد نظامي په خپل کتاب (د دیارلسمې پېړۍ په هند کې د مذهب او سیاست ځینې اړخونه) کې لیکلي چې: له اتمې پېړۍ را په دې خوا هندوستان له بهرنۍ دنیا سره بې ارتباطه پاتې و. په شمالي هندوستان باندې د ترکو د غلبې یوه لویه بریا دا وه چې دغه انزوا یې ختمه کړه او هند د هغې زمانې په پېژندل شوې دنیا کې خپل ځای وموند.

په ستراتېژیکو ځایونو کې د کلاګانو جوړولو تجارتي لارې له غلو وساتلې او د هند مارکیټونه له خارجي مالانو مالامال شول. سوداګرۍ د دې سبب شوه چې یو قانوني سیستم وده وکړي او د تعرفو لپاره مقررات جوړ شي. کله چې ترکو پاچایانو خپلې پیسې را وایستلې، اقتصاد پولي شو او داخلي و خارجي تجارت یې وغوړاوه.

لوی مورخ عرفان حبیب وايي چې د ترکو د غلبې په وجه هند ته نوې تکنالوجي راغله او د صنعتګرو په لاس یې لا ښې وسیلې ورکړې چې د دوی تولیدي ورتیا یې لوړه کړه. د دې شي په نتیجه کې د ټیټو طبقو ټولنیز حیثیت بهتره شو او په ټولنه کې د محترم ځای د لرلو په لټه کې شول.

د دې لټون په وجه پیدا شوی اجتماعي ټکر د هغه وخت په ادبیاتو کې منعکس شوی دی. لوړې طبقې او خواص د ټیټ ذاتو له لاسه، چې په ټولنه کې یې د محترم ځای د لرلو هڅه کوله، شکایت کوي چې کلانکاره شوي دي. دغه ټکر د بلبن په زمانه کې (۱۲۸۷-۱۲۴۶) چې په لوړو دولتي څوکیو کې یې د ټیټ ذاتو مقررول منع کړل، ډېر څرګند دی. خو، کله چې د بدلون بهیر پیل شو، دا مشکله شوه چې مخه یې ونیول شي. نو، کوم بدلون چې په هند کې له ترکو سره راغی په دې ټولنه یې دایمي اثر وکړ.



# د استعماري دوران له تاریخ سره د چلند ډولونه

د اسیا او افریقا هغه هېوادونه چې د استعمار دوران یې لیدلی دی د استعماري قوتونو په لاس د خپل تاریخ او کلتور د شکل د بدلېدو او مسخه کېدو ترخه تجربه لري. له خپلواکۍ وروسته د دغو هېوادونو یو لومړی کار دا و چې خپل تاریخ له سره ولیکي او هغه ځایونه پکې سم کړي چې استعمار د خپلو سیاسي ګټو په خاطر بدل کړي او یا له قلمه غورځولي وو.

له استعماري ماضي سره چلند د دوی لومړی مشکل و چې ورسره مخ شول. خپلې دې ماضي دوی ته ماته، بې حیثیتي او وروسته پاتې والي وریادول. دغو هېوادونو له خپل ماضي سره دوه ډوله چلند وکړ: یو دا چې د مستعمره کېدلو له بهیره څه زده کړي او د خپلو ټولنو په وروسته پاتې حال ځانونه پوه کړي. دوی وغوښتل چې د هغه شاته پاتې حال چې په نتیجه کې یې د نورو تر لاس لاندې شول، علتونه ومومي او له تاریخه دا درس واخلي چې بیا هغسې حال ورباندې رانه شي.

دویم چلند دا و چې د خپلې ماتې د هېرولو او د استعماري قوتونو په لاس د خپلې غلامۍ د هېرولو لپاره یې په استعماري ماضي ځانونه ناګاره واچول. دغه کار اسپانیاوالو هم کړی و. د اسپانیا مورخانو د خپل ملک د تاریخ د لیکلو په وخت عرب له پامه وغورځول، لکه

عرب چې بېخي اسپانیا ته راغلي نه وو. دغه پالیسي د بالکان مسیحي دولتونو هم خپله کړه. دوی د نیواک د دوران د هېرولو لپاره له خپل تاریخه د عثماني دوران خاطرې وایستلې.

د براعظمګي مورخان هم له دې مشکل سره مخ دي چې د بریتانیا د واک دوران څنګه تحلیل کړي او څه معامله ورسره وکړي؟ په دې دوران سترګې پټول ممکن نه دي. دا یو داسې تاریخي حقیقت دی چې مورخ ورنه په اسانه ټوپ نه شي اچولی. پوښتنه دا ده چې: ایا د انګرېز دوران د هند د تاریخ په بهیر کې مداخله وه او که له دخالت او لاس وهلو سره سره یې د داسې دور په توګه تحلیل کړو چې د هند د تاریخ پیوستون او اتصال پکې په خپل حال پاتې شو؟

یوه بله فرضي پوښتنه دا ده چې که په هند کې برطانوي راج نه وای، د براعظمګي بڼه به څنګه وه؟ بې شکه چې د انګلستان راج په هند کې تغییرات راوستل او د نویو اقدارو موسسې یې جوړې کړې چې له پخوا سره یې رابطه وشلوله او د تاریخ تداوم یې ونه ساته. لا مهمه دا چې ټولنه یې په دوو ډلو ووېشله: یوه د غربي شویو ډله وه چې د اروپا په طرز یې د هند عصري کول غوښتل. دویمه ډله په وطني اقدارو پورې ونښته او له هر ډول تغییر سره یې مخالفت وکړ. لومړۍ ډله په خپله ماضي شرمېدله خو دویمه ډله پې ویاړېدله. دا وېش تر اوسه پورې په هند و پاکستان کې وینو.

هغوی چې د پردو د واک پلویان دي، استدلال کوي چې که یو پرمختللی قدرت په یوه وروسته پاتې هېواد واکمني وکړي، نو د عصري کېدو بهیر به یې چټک شي او کنه نو په ترقي به یې ډېر وخت ولګېږي. د دغه استدلال په اساس، بریتانیا پلوي ډلې وایي چې د انګرېزانو د واک په وجه هندیان له نویو فکرونو سره بلد شول او



سیاسي ګوندونه یې جوړ کړل. د مستشرقانو څېړنو د هند د ماضي په اړه پټ او ناڅرګند معلومات رڼا ته راوایستل. د اروپایانو ساینس او فلسفې د هند په تعلیم یافته طبقه کې نوی شعور او معقولیت پیدا کړ. د لویدیځ مادي کلچر اقتصادي سوکالي او اسوده ګي راوړه او وګړیو هڅه وکړه چې له ژونده خوند واخلي او مزې پکې وکړي.

سیاسي او اجتماعي موسسو ټیټو طبقو ته د تعلیم کولو امکان برابر کړ او د عزت څښتنان یې کړل، حال دا چې په پېړیو پېړیو د دوی له محترم ګڼلو انکار شوی و. استعمار نوې کاري څانګې لکه ډاکتري او وکالت وزېږولې چې منځنۍ طبقه یې پراخه او په ټولنه کې یې د هغې رول پیاوړی کړ.

دغه دلایل په دې اساس رد شوي دي چې انګرېزانو دا هر څه د خپلو ګټو لپاره وکړل. البته، تاریخ شاهدي ورکوي چې د انګرېزانو حکومت د ټولنې د بنیادي جوړښت او سټرکچر د بدلولو هڅه نه کوله. انګرېز حکومت لوړو طبقو ته اجازه ورکړه چې له حکومت سره د همکاري په بدل کې خپل امتیازات وساتي.

جې، الویسیوس په خپل کتاب (په هند کې بې ملته نشنلیزم) کې لیکي چې د بریتانیا واکمني د هند ټولنه په چټکۍ سره بدله نه کړه. د بریتانیا د راج عصر له ماضي سره د انقلابي پریکون عصر نه بلکې تر ډېره حده د ماضي د ادامې عصر بللای شو. دی دا ادعا هم سمه نه ګڼي چې انګرېزانو هند واحد کړ. دی لیکي چې: د یوالي پروسه نیمګړې وه. د براعظمګي کابو دریمه برخه خاوره د نوابانو تر کنټرول او ادارې لاندې پاتې شوه چې له مرکز سره یې تفاوتونه لرل...

د الویسیوس استدلال دا دی چې په حقیقت کې برتانوي حکومت هندي ټولنه بدله نه کړه او بلکې د سیاسي ثبات په خاطر یې د هغې

زاړهٔ اقدار او دودونه په ځای وساتل. مثلا کله چې انګليسي سرکاري ژبه شوه، د برهمنو په څېر لوړو طبقو زده کړه او خپل پخوانی موقف يې وساته. په تجارت او سوداګرۍ کې مرواريس او بنياس د شرقي هند کمپنۍ ته د نماينده ګانو په څېر کار کاوهٔ او ډېرې ګټې يې وکړې. په کليوالو سيمو کې فيوډالانو له انګرېزانو سره همکاري لرله او د دوی ملاتړ ورته حاصل و. د دې حالت په نتيجه کې دغه طبقې ونه توانېدې چې د بدلانهٔ د نماينده ګانو رول ولوبوي او ټولنه لږ و ډېر په خپل حال پاتې شوه.

د انګرېزانو د دوران په اړه د مطالعې يو بل اړخ وايي چې په دې دوران کې هندي او اروپايي تمدنونه سره غاړه غړې شول او دې شي د هند په بې حرکته کلچر کې نوې سا وغړوله. نويو وسايلو او ميتودولوژۍ له هندي منورينو سره مرسته وکړه چې د خپلې ټولنې د زوال علتونه وڅېړي او ويلټې او دغه راز مرسته يې ورسره وکړه چې دا وڅېړي چې نويو چلينجونو ته د ځواب ورکولو لپاره بايد څنګه پخپله ټولنه کې ريفورم راولي. د راجا رام موهن رای نهضت او د سرسيد ريفورمونه د دې پروسې نتايج دي. د ريفورم دغه حرکتونه د دوګم په ځای تر ډېره حده د عقلانيت په رڼا کې د ارزښتونو او دودونو قضاوت ته لاره پرانيستله.

نو موږ نه دا ويلی شو چې استعماري دوران بې تاثيره و او پخوانۍ ټولنه په خپل حال پاتې شوه او نه دا ويلی شو چې انقلابي بدلونونه يې راوستل او ټولنه يې ګرد سره بدله کړه. البته دا يقيني ده چې د برېتانيا رول په ځينو اړخونو کې بدلونونه راوستل خو په زوړ سټرکچر يې غرض ونه کړ. نو موږ د هند په تاريخ کې د استعمار په نتيجه کې هم اتصال او هم پرېکون وينو. دغه شی له موږ څخه د برېتانيا د وخت د هند د تاريخ دقيقه مطالعه غواړي له ټولو پېچلتياوو او ضمني اړخونو سره.



# د مغولو د زوال برطانوي روايت

باور عام دا دی چې برېتانيا ځکه د هند واکمنه شوه چې د مغولو امپراطورۍ د غروب په حال کې وه. دغه وخت هندي ټولنه ټوک ټوک شوې وه او د وحدت ځای ورکې تفرقې نيولی و. د هند اقتصاد شړېدلی و، اخلاقي و معنوي ارزښتونه يې بې سبکه شوي او په دودونو او موسسو کې يې اعتبار و اقتدار پاتې نه وو. د دغو کمزوريو په وجه پيدا شوې خلا د شرقي هند کمپنۍ په اسانۍ سره ډکه کړه. کمپنۍ چې قدرت ته ورسېده، په هند کې نوې دوره پيل شوه، کورنۍ جګړې ختمې شوې، قاتلان و داړه مار وځپل شول، سوله او سوکالي بيا راغله او د يوه داسې حکومت تېږه يې کېښوده چې سياسي او اقتصادي ثبات ورسره مل و.

د مغولو د دوران د ختمېدو او د انګرېزانو د دوران د پيلېدو په اړه دغه پاسنی تعبير ډېره موده منل شوی و او شک پکې نه کېدهٔ. خو د دې زمانې ته ژوره کتنه او نوي اسناد د نوموړي تعبير نيمګړتيا او يو اړخيزوالی راښيي. اوس دا خبره کېږي چې برطانوي مورخانو او سياستوالو په هند باندې د انګرېزانو د سلطې د توجيه کولو لپاره د مغولو د زوال په باره کې له مبالغې سره اخښلې تيوري جوړه کړې وه.

په دې کې شک نشته چې د مغولو امپراطورۍ د اورنګزيب له مړينې وروسته (۱۷۰۷) مخ په ځوړ وه. په دربار کې توطيو او دسيسو اشرافيت په مخالفو ډلو سره وويشهٔ او دولت يې کمزوری کړ. دا د

دولت د کمزورۍ نتیجه وه چې نادرشاه افشار او احمد شاه ابدالي په
هندوستان حملې وکولې او د مغولو راټوله کړې شتمنۍ يې خپلو
ملکونو ته یوووړه. په اخر کې امپراطور ته اهمیت و پرستېژ پاتې نه
شو او د مرهټه وو یا د کمپنۍ رحم و کرم ته کېناست. د امپراطور د
شان و شوکت په ختمېدو سربېره د شاهي کورنۍ غړي او اشراف
مفلس او په مالي تنګسه کې ګرفتار شول. هغوی چې د دربار او
اشرافو دغه حال ته د ډيلي له ليدلوري کتل، دې زوال ته يې د ټولنې د
زوال په توګه کتل. خو حقيقت بېخي بل شان و. ډيلي چې له خپل تېر
برم سره خدای پاماني وکړه نو په ولايتونو کې حکومتونه د خپل رول
د لوبولو لپاره له نوي ځواک او انرژي سره راڅرګند شول.
لکنهو، بنګال، حيدراباد، بکانر، جيپور او پونه د کلتوري
فعاليتونو مرکزونه وو. د پونې دولتي اسناد د پونې د حکومت په
قلمرو کې په ښارونو او کليو کې د ژوند حال په تفصيل سره راکوي.
دغه اسناد مو پوهوي چې د هغه وخت په ټولنه کې ګډوډي يا ناخوښي
نه وه. جالبه دا ده چې د بريتانيا د حکومت په زمانه کې مورخانو اجازه
نه لرله چې دغه اسناد وګوري، ځکه له حکومت سره وېره وه چې د
زوال په افسانه باندې به شک وشي. په ۱۹۱۷ کې د بمبۍ ګورنر،
سي، اي، کنکاډ ته خوښه ورنه کړه چې په مرهټه وو باندې خپل
ليکلی کتاب خپور کړي. له ګورنر سره تشويش و چې دغه کتاب به د
حکومت په رسمي ليدلوري باندې لوستونکي بې باوره کړي.
نوې څېړنې دا هم ښودلې ده چې د مغولو د امپراطوري زوال د هغې د
موسسو زوال نه و. راوروسته حکومتونو لکه په بنګال کې د مرشد
قلي خان او علي وردي خان ادارو په خپل قلمرو کې د مغولو سيستم



ته ادامه ورکړه او ان د نولسمې پېړۍ په منځ کې رنجيت سينګ د
مغولو ډېرې موسسې په خپل حال وساتلې.
دغه راز، نه سياسي سقوط او نه د واحد حکومت په ځای د څو
حکومتونو ظهور، له هندي ټولنې خپله خلاقه انرژي واخيستلی شوه.
په دې ټول دوران کې هندي ټولنې په پوره شوق و جذبې کلتوري و
اجتماعي نوښتونه وکړل.
هرمان ګوتز په خپل کتاب کې چې: په اتلسمه پېړۍ او د نولسمې
پېړۍ په سر کې د هندي تمدن بحران نومېږي، ليکلي چې: ايا ممکنه
ده چې د جيپور، جودپور، ډګ، اوديپور، لاهور، لکنهو، مرشد اباد،
اوپونې خيال ته ورته قصرونه او باغونه له پامه وغورځوو؟ ايا د هغې
زمانې له بې شمېرو ظريفو، ښکلو انځورونو انکار کولای شو؟ ايا د
اردو، بنګالي او مرهټه ادب زرين عصر د هېرېدو دی؟ ايا د هغو
وختونو د موزيک و نڅا په عظمت کې شک کولای شو؟ او يا په هغې
ټولنه کې د ښځو مهم مقام او د اجتماعي ژوند مهذب والی د دې دی
چې سترګې ورباندې پټې شي؟ ايا موږ بايد دې نتيجې ته ونه رسېږو
چې د اتلسمې پېړۍ او د نولسمې پېړۍ د ابتدا پېر نه يوازې د
سياسي او اقتصادي زوال پېر نه و بلکې د هندي کلچر د ظرافت و
لطافت د اوج مهال و؟ )
د مغولو د زوال يوه مثبته نتيجه دا وه چې د دربار او اشرافو په کړۍ
کې ايسار شوی عالي کلچر د درباريانو او اشرافو له انحصاره
راووت، په ټول هند کې خپور شو. هنرمندان، شاعران، مورخان او د
کسب و کمال خاوندان د حاميانو او پالونکو د موندلو په نيت په ټول
هندوستان کې خپاره شول. دوی چې د ډيلي له درباره راوتلي وو، نوی
ژوند يې تجربه کړ او نوې تجربې يې خلاقيت ور زيات کړ. دوی د کار

نوی چاپېريال ومومند او د اظهار لپاره نوي موضوعات په ګوتو
ورغلل چې په نتيجه کې هندي کلچر لا شتمن شو.
په دې دوران کې د اقتصاد ولاړ او ساکن حالت د دې سبب نه شو چې
ټولنه وشړېږي. سوداګرو خپل کار ته ادامه ورکړه او د ټول هند
مارکيټونو ته يې مالونه ورسول. موږ په دې اړه ډېر جزييات موندلای
شو چې په ښارونو او ښارګوټو کې څنګه نوي مارکيټونه ودان او
تجارتي فعاليتونه پکې وار په وار زيات شول. سي، اې. بېلي په خپل
کتاب کې (بازاريان او بازارونه: د ۱۷۷۰ او ۱۸۷۰ کلونو تر منځ د
بريتانيا د نفوذ د خپرېدو په وخت د هند د شمال ټولنه) د دغو
بازارونو په اړه ډېر اسناد خوندي کړي دي.
د دې وخت يو بل مهم خصوصيت دا و چې د خلکو مذهبي تعصبات
کم شول. يو عام پسنده، ولسي مذهب چې د ټولو مذهبونو د خلکو يو
ځای کولو ته مايل و، د راڅرګندېدو په حال کې و. مقبرې او زيارتونه
به له معمولي خلکو ډک وو. دلته به خلکو خپل مذهبي توپيرونه
خاورو ته وسپارل او سره ګډ او مخلوط به شول.
نو، ويلی شو چې د مغولو د زوال او د هغو په ځای د انګرېزانو د راتلو
ټوله تيوري برطانوي مورخانو جوړه او په دومره قوت يې خپره کړه
چې د تاريخ په ثابت حقيقت بدله شوه. د افسانو شاربل او د واقعيت
او دروغو بېلول، وخت غواړي. په هندوستان کې د قدرت ګدۍ ته د
انګرېزانو د ختلو او د مغولو د راکوزېدلو په اړه دغه شاربل تر سره
شوي دي او اوس دا ثابته شوې ده چې د مغولو زوال په مجموع کې په
هندي ټولنې اثر ونه کړ. سياسي بلواوې ونه توانېدې چې له دې ټولنې
ژوند، تحرک او انرژي واخلي.



# قهوه خانه اوس نشته

پخوا به خلکو د تفريح او وزګارتيا وخت له يارانو سره په ناسته او د
ورځنيو مسايلو په اړه په خبرو اترو تېراوۀ. د دغو ناستو اسانتيا په
ميخانو کې مهيا وه. د شرابو نشې به بحثونه تاوده او احساساتي کړل.
کله کله به نشه شويو ډلو يو بل ته لاس واچاوۀ، اخ و ډب به يې جوړ کړ او
ګډوډي به راغله. په دغسې وختونو کې د ميخانې چلوونکي ته د
خشمېدليو مشتريانو کنټرول مشکل و.
همدا وجه وه چې سپين روبو او درنو کسانو دا رنګه ځايونو ته له تلو ډډه
وکړه. په فرانسه کې اشرافي مېرمنو د داسې ناستو لپاره سالونونه جوړ
کړل چې منورين او فرهنګيالي به ډېر ورتلل او د مهذبو ملګرو له
ملاقاته به يې خوند اخيست. په نورو هېوادونو کې هم کله دلته او کله
هلته شخصي غونډې جوړېدلې چې د لوړو طبقو او لوړو سويو کسانو به
په مهذبه طريقه له يو بل سره بحثونه کول او نظرونه شريکول.
نو د قهوه خانو رواج د لوړو طبقو او منورينو په کلتوري ژوند کې يو
نوی تغيير راوست. قهوه خانې د ليکوالو، هنرمندانو، مهندسانو،
ښوونکو، ډاکترانو، سوداګرو او حقوقپوهانو په څېر اقشارو لپاره په
اول ځل د ناستې او د خپلې خوښې په موضوعاتو د بحث کولو ځای برابر
کړ.
د قهوه خانو او ميخانو ډېر توپير و. په قهوه خانه کې نشې نه کېدلې.
دلته راټول کسان نه بېسده کېدل. څرنګه چې دلته معمولا منورين او د

مهارتونو څښتنان راغونډېدل نو ان په ډېرو شدیدو بحثونو کې هم د
ادب و درناوي خیال ساتل کېدۀ. د قهوه خانو مالکانو هم د خپلو
مشتریانو د اسوده ساتلو او ښه خدمت په وسیله د هغو لپاره د طبعې
چاپېریال برابر کړی و. معمولا به د قهوه خانو فرنیچر ښه په سلیقه
اېښودل کېدل او له یو بله به بې دومره فاصله وه چې د راز د خبرو او د
خواله امکان به موجود و. د ژمي په موسم کې به د قهوه خانې د منځ د هوا
د ماتولو لپاره د سکرو منقلونه اېښي وو. که به د خبرو لپاره څوک نه وو
نو یوازې کس د قهوې له ښښلو سره په یوه وخت کتاب لوستلای یا شعر،
کیسه، یا لیک لیکلای شوی.

سټیوراټ لي الین په خپل کتاب کې چې (د شیطان پیاله) نومېږي، د
قهوه خانو په تاریخ غږېدلی دی. دی لیکي چې لومړنۍ قهوه خانه په
استانبول کې په ۱۵۵۵ کې پرانستل شوه. دغه نوښت د ډېرو کسانو
خوښ شو او ورو ورو د ترکیې په بېلو بېلو ښارونو کې قهوه خانې
پرانیستل شوې. په هره قهوه خانه کې به یو بېل کلتوري فعالیت و. مثلا
ځینې یې په دې مشهورې وې چې مشتریان پکې شعرونه وایي. په ځینو
نورو کې به تمثیلي پروګرامونه وو او یو شمېر نورو قهوه خانو د
موسیقي په خپرولو کې نوم درلود. د قهوه خانې دود مصر و ایران ته لاړ
او په دغو هېوادونو کې په لنډ وخت کې هر ځای قهوه خانې جوړې شوې.
د استریا مرکز ویانا د اروپا لومړنی ښار و چې په اوولسمه پېړۍ کې
قهوخانه پکې جوړه شوه. دلته له قهوې سره شیدې او پیروی هم یو ځای
شول چې د قهوې تریخوالی کم کړي. وروسته بیا په نورو اروپایي
ملکونو کې قهوه خانې پرانیستل شوې. په لندن کې په لومړي ځل
اکسفورډ قهوه خانه په ۱۶۵۲ کې یوه یهود جوړه کړه. په انګلستان کې د
دې نوښت هرکلی وشو نورې قهوه خانې پرانیستل شوې او تر یو زر او
اوولس سوه کاله پورې یې شمېر دوه زرو ته ورسېد. دغو قهوه خانو د



انګلستان د ټولنې په سیاسي، کلتوري او روښنفکري پرمختګ کې
مثبت رول ولوباوۀ. مثلا په ترکس هېډ کافي هاوس کې مشتریانو ته د
رایو یو صندوق ایښی و چې د روانو حالاتو په اړه خپل نظر په یوه ټوټه
پاڼه ولیکي او صندوق ته یې واچوي. دا یوه نوې روده او طریقه وه چې
وګړیو ته یې اجازه ورکوله چې د استخباراتو د ادارو له وېرې پرته په پټه
د زړۀ خبره له زړۀ راوباسي. ځینو مشهورو کمپنیو هم خپلو کارکوونکو
ته قهوه خانې جوړې کړې، لکه ایل، لویډس کافي هاوس، بالتیک کافي
هاوس، او د شرقي هند کمپنۍ یورشلیم کافي هاوس. د قهوه خانو ارام
او خلوت چاپېریال کاروباریانو ته اجازه ورکوله چې په خپلو پرابلمونو
باندې په سړه سینه غور وکړي.

په انګلستان کې ځینې خاصې قهوه خانې وې چې لیکوالو، هنرمندانو
او ساینسپوهانو ورته تګ راتګ کاوۀ. اسحاق نیوټن به یوناني قهوه
خانې (ګرشن کافي هاوس) ته همېشه ورتۀ. جاناتان سویفت او
الکساندر پوپ (ویل کافي) خوښوله. ریچارډ سټیل چې په کافیانو کې
جالبو خبرونو او اوازو ته پام شو نو یوه ورځپاڼه یې خپره کړه. دۀ خپل
خبریالان په بېلو بېلو قهوه خانو کې کېښنول چې دۀ ته له هغو ځایونو د
تازه خبرونو په اړه معلومات ورکړي. د دۀ ورځپاڼه چې ټاټلر نومېده،
ډېره ژر د خپلو جالبو موضوعاتو په خاطر مشهوره او محبوبه شوه.

په فرانسه کې کافي په لومړي ځل د څورلسم لویي د دربارترک سفیر
نورو ته وروپېژندله او چې فرانسویانو ته یې خوند ورکړ نو په فرانسه
کې یو شمېر قهوه خانې پرانیستل شوې چې د دغه هېواد اشرافي کړې
یې جذب کړې. د پروسوپیو دل کولتیلي په نوم د سیسل د ټاپو یو سړی
چې په دې پوه شو چې د فرانسې د اشرافو او منورینو په خټه کې له زرق و
برق سره مینه ده نو په پاریس کې یې د شاهانه سلیقې قهوه خانه
پرانستله. د دې قهوه خانې مېزونه د مرمرو وو، خورا ظریفې چوکۍ یې

لرلې، چت او ديوالونه يې په هيندارو پوښلي وو، چلچراغونه پکې
ځوړند وو او پياده ګانو يې داسې ارايش کاوه لکه د شاهي دربار نوکران
چې وي. دا قهوه خانه د والتير، روسو، ناپليون او ارستو کراتو د خوښې
قهوه خانه شوه. دغه ځای اوس هم شته او سيلانيان په ګڼ شمېر کې
ورځي.
په هندوستان کې شواهد ښيي چې د مغولو د اشرافو يوې محدودې
کړۍ قهوه څښله. قهوه د ډېرو کسانو د خوښې څښاک نه وه. د انګرېزانو
د واک په زمانه کې قهوه د منورينو او متخصصانو په قشر کې رواج
شوه. په نولس سوه څلوېښتمو کلونو کې انډيا کافي بورډ د هندوستان
په ټولو لويو ښارونو کې قهوه خانې پرانيستلې. په کراره او دوستانه
چاپيريال کې د قهوې ارزانه پياله د دې سبب شوه چې قهوه خانې په لنډ
وخت کې د منورينو د تلو راتلو ځايونه شي. په ډهلي او لکنهو کې قهوه
خانو ته مشهور شاعران لکه مجاز، جوش، سلام، علي سردار جعفري او
نورو تګ راتګ کاوه. د لاهور قهوه خانې هم د ادب د خاوندانو د مباحثو
او خبرو اترو په خاطر مشهورې وې. د هند او پاکستان له بېلېدا وروسته
په کراچي کې زيلين کافي هاوس او ايسټرن کافي هاوس داسې ځايونه
وو چې محصلان، سياستوال، او ليکوال به ورتلل او له يو بل سره به يې
نظريات مبادله کول.
د خواشينۍ ځای دی چې د قهوه خانو په زړه پورې او ارزانه کلچر اوس
نشته. امريکايانو د چټکو خوړو په شان دا دود هم راوايست چې يوه
پياله کافي ژر ژر وڅښه او لاړ شه. نور نو دومره وخت نشته چې تر ډېرو
پورې له يارانو سره کېښېني او له ناستې يې خوند واخلي.
البته خورا ګرانبيه قهوه خانې اوس هم شته چې يوازې شتمن کسان
ورتللی شي.



# ترکان

عربو مرکزي اسيا په نهمه ميلادي پېړۍ کې ونيوله. د دې پېښې په
نتيجه کې ترک قبايل ورو، سوکه او وار په وار مسلمان شول. دوی د
اسلامي ټولنې د ساتلو لپاره لايق او پياوړي پاچايان، زړه ور عسکر
او وفادار غلامان وړاندې کړل. دوی څوک دي؟
د مورخ اندرې وينک په قول، يوازې له شپږمې ميلادي پېړۍ
راهيسې وينو چې د مرکزي اسيا کوچي قبايلو ته د ترک کلمه کارول
شوې ده. د چين خلکو دوی توکوی، يونانيانو تورکوی، عربو اتراک،
ايرانيانو ترکان او د هند خلکو توروشکا بللي دي. هغه قامونه چې له
ترکو سره مخ شوي دوی يې بد خلک معرفي کړي دي.
دا طبيعي خبره ده چې غليمان يو بل بد بولي. ترکان د مريبيونو په توګه
د ټيټې درجې خلک، د عسکرو په توګه د پيسې او ټنګې لپاره
جنګېدونکي کسان او د واکمنو په حيث غاصبان ګڼل کېدل.
مثلا په اسلامي ټولنه کې دوی اوله پلا د غلامانو په توګه راڅرګند
شول. په هره هغه ټولنه کې چې خلک په لوړو او ټيټو طبقو وېشل
شوي وي، هلته غلام ته په درنه سترګه نه کتل کېږي. همدا وجه ده چې
د هغه وخت په ادبي اثارو کې ترکان د تحقير له مخې احمقان بلل
شوي دي. دوی ته هغه وخت يو څه په درنه سترګه وکتل شول چې د
غلامانو په توګه د عباسي خلفاوو په شخصي ګارد کې شامل شول.
چې عباسي خلفا په زور کې وو، دوی يې په اخلاص خدمت وکړ خو د

هغوی د کمزورۍ او زوال په وخت یې بد نوم وګاټه او د خلیفه جوړوونکو په توګه یاد شول. همدا وجه ده چې د عباسي دورې په وقایع نامو او پېښلیکونو کې د ترکو منفي انځور وړاندې شوی دی. دغه انځور ایرانیانو، چې له ترکو سره یې ان له هغه وخته خصومت درلود چې اسلام نه و راغلی، لا بد رنګی کړ. ایرانیانو ته ځان خورا مهذب او با کلتوره ښکارېده خو ترکان یې شډل، وحشي او بې رحمه ایسول. له ترکو سره د ایرانیانو او عربو همدا مشترک تعصب دوی رخنه ګر او د خلفاوو وژونکي معرفي کړل.

طیب الهبري په خپل کتاب کې چې اسلامي تاریخ لیکنې ته بیا کتنه نومېږي، لیکي: د اسلامي امت په بېلو بېلو ټولنو کې له یوې سره هم دومره خصمانه سلوک نه دی شوی لکه له ترکو سره. د ایرانیانو ښکاره تعصب د دې سبب شو چې ترکان د مسلمانانو په تاریخونو او روایتونو کې په بد نوم یاد شي.

په بل پړاو کې ترک د واکمنو په حیث راڅرګند شول. دوی هندوستان په یولسمه او دیارلسمه پېړۍ کې ونیو. په سانسکریټ لیکنو او ادبیاتو کې چې په ټول هندوستان کې خوارهٔ دي، د ترکو نوم خورا بد دی. چاټوپډیایا په خپل کتاب (د نورو معرفي) کې د سانسکریټ یو روایت رانقل کړی چې په هغه کې ترکان تباه کوونکي او قاتلان بلل شوي دي.

د توروشکا حکومت او د دوی د غلبې نتایج داسې توصیف شوي دي : معبدونه چې عبادت پکې بس شو، له پامه وغورځېدل. د معبدونو په منځ کې د میریدانګا (د موسیقي یوه آله) د خواږه اواز په ځای د شغالانو وېروونکې انګولاوې اورېدل کېږي. د بتې د لوګي د



خوشبویي ځای اوس د بوټیو د کباب توږم او د ترکو رذیلانو بد شورماشور نیولی دی.

اروپایان هغه وخت له ترکانو سره بلد شول چې عثمانیانو کنستنتینوپول او د بالکان مسیحي ملکونه ونیول. کله چې سلیمان په ۱۶۸۳ کې ویانا محاصره کړه، غربیانو ته ترکان لوی خطر وبرېښېدل. د ترکو په خلاف په ټوله اروپا کې دا خبرې خپرې شوې چې وحشي، جګړه مار او غیرمتمدن خلک دي.

ایچ، اې، ایل فیشر په خپل کتاب (د اروپا تاریخ) کې د ترکو په باب لیکلي دي چې: ترکان د افکارو څښتنان نه وو. دوی ان تر همدې اوسني کهوله پورې د غرنۍ اسیا د کوچیانو له ژوند او فکر سره مناسبې شیوې ساتلې وې.

اکسفورډ ډکشنري نن هم، ترک وحشي، ستمګر او نه ایلېدونکی کس تعریفوي.

د اوسني هند په تاریخ لیکنه کې دا بحث څو ځله تود شوی دی چې ایا مسلمانانو هندوستان د اسلام لپاره ونیو که د سیاسي ګټو لپاره.

هغوی چې په دې باور دي چې د غزنوي محمود یا شهاب الدین غوري په شان مسلمان واکمن د اسلام په خاطر هند ته راغلل، دوی ته دغه واکمن مقدس جنګیالي ښکاري چې اسلام یې خپور کړ او په هند کې یې اسلامي دولت تاسیس کړ.

جالبه دا ده چې د سید سلیمان ندوي په شان مذهبي عالم وایي چې د ترکو په لاس د هندوستان نیواک د اسلام لپاره نه و، ځکه نیواکګرو پخپله د اسلام په اړه کافي معلومات نه لرل. دوی نومسلمانه کسان وو چې خپل غیر اسلامي قبایلي عادتونه یې لا نه وو پرې ایښې. د دهٔ په نظر د عربو په لاس د سند فتحه د اسلام لپاره وه ځکه عرب سوچه

مسلمانان وو او د اسلام د تبلیغ لپاره سند ته راغلي وو. د مولانا ندوي په نظر د هندوستان په شمال باندې د ترکو غلبې دنیايي مقصدونه لرل، نه دیني. وروسته بیا د علیګړ پوهنتون خالق احمد نظامي هم د مولانا ندوي خبره وکړه. دی دا استدلال نه مني چې د هندوستان نیولو دیني انګېزې لرلې. دی وایي چې ترک جنګیالي مجاهدین نه بلکې مازې تیریګر وو.

په دغو دوو تعبیرونو کې د لید لوري توپیر وینو.

سلیمان ندوي چې دغه فتوحات د سیاسي انګېزو په اساس ګڼي، غواړي د اسلام په اړه تصور د دغو فاتحانو له کړو، چې لوټ یې وکړ، تالان یې وکاوۀ او د خلکو وینې یې وبهولې، بېل کړي. مولانا پوښتنه کوي چې یو مجاهد نو څنګه داسې ظلمونه کولای شي؟ دی وایي چې دوی سم، سوچه مسلمانان نه وو. د دوی ستمونه د اسلام لپاره نه بلکې د خپلو ګټو لپاره وو. تاریخ ښيي چې دوی د مفتوحه سیمې منابع او لوټ کړي ثروتونه د خپلو شخصي اړتیاوو لپاره وکارول نه د عامو مسلمانانو لپاره.

د خالق احمد نظامي تعبیر و تفسیر له سکیولر هندوستان سره سمون خوري. د ده په نظر، ترک تیریګر د نورو تیریګرو او بلوسګرو غونډې وو چې هر ډول جرمونه یې ځانونو ته روا ګرځولي وو. دوی په نوم مسلمانان وو مګر عملونو یې له اسلام سره تعلق نه درلود. دې ته ضرورت نشته چې دوی وستایو او د اسلام اتلان ورنه جوړ کړو.



## د تمدن په نوم

د تمدن د کلمې تعریف ډېر مشکل کار دی او چې داسې ده نو دا هم مشکله ده چې څوک متمدن وبولو، څوک ونه بولو. معمولا پیاوړي ملتونه ځانونه متمدن بولي او له دې شي د کمزورو هېوادونو د لاندې کولو لپاره استفاده کوي. لرغوني یونانیان د نړۍ په هغو لومړیو خلکو کې شامل دي چې د تمدن په نوم یې د ګاونډیو نیولو ته متې راونغښتې. له هغه راهسې نړۍ په متمدنو او وحشي خلکو باندې وېشل شوې او له تمدنه د نورو هېوادونو د نیولو او د هغو د طبیعي منابعو د استثمارولو لپاره یوه پلمه جوړه شوې ده.

د فرانسوي مورخ براډل په قول، د سولایزېشن (تمدن) کلمه په لومړي ځل په اتلسمه پېړۍ کې د فرانسې تر انقلاب لږ دمخه فرانسوي اشرافي میرابو وکاروله. تر دې دمه به دغه مفهوم د پولس، پلیس، یا پولایټ د کلمو په ذریعه ادا کېده. کله چې د سولایزېشن کلمه جوړه شوه، ورو ورو له فرانسې، هالنډ، بیا جرمني او ورپسې انګلیسي ژبو هېوادونو ته ورسېده. جرمنیان د کلچر او سولایزېشن د کلمو تر منځ توپیر کوي. د دوی لپاره کلچر تر سولایزېشن ډېر بامعنا دی.

اروپایان ولې ځانونه متمدن بولي او په نورو ملتونو د وحشي او بربر ټاپه لګوي؟ د لویدیځو مفکرانو په بېلوبېلو تعبیرونو کې د دې سوال ځواب موندلی شو. مثلا، فرانسوي مورخ جیزوت، د اروپايي تمدن په جوړولو کې درې عناصره ویني: په پیل کې اروپايي تمدن له رومي تمدنه

د دولتي موسسو، لکه سنا، ښاروالي، قضا، قوانینو او حکومت چلولو میراث تر لاسه کړ. وروسته بیا اروپایي تمدن دین او سیاست سره بېل کړل ورپسې یې د فردیت او ازادۍ مفاهیم خپل کړل چې د خلاق ذهنیت له ودې سره یې مرسته وکړه. دغو ټولو عواملو د لویدیځ تمدن په جوړېدو کې برخه واخیسته. جیزوت باوري دی چې مذهب د تمدن په وده کې لویه برخه لري او د اروپا په مورد کې وایي چې مسیحیت د تمدن په وده کې لویه ونډه واخیسته.

له بلې خوا توکم پال مفکر ګوبینو د تمدن په جوړېدو کې د مذهب له نقشه منکر دی. د ده په نظر مذهب له بلې دنیا سره تعلق لري نه د دې دنیا له چارو سره. د دۀ په نظر یو سوچه توکم د یوۀ پیاوړي، روغ او شتمن تمدن لوی عامل دی. کله چې د توکم سوچه والي ته زیان ورسي، تمدن بې زوال مومي او بې اهمیته کېږي. نو دا د سوچه توکمونو حق دی چې په ناسوچه او ختمېدونکو توکمونو حکومت وکړي. دې توکم پالې تیوري اروپایانو ته چې د وروسته پاتې او کمزورو هېوادونو د نیولو او په هغو باندې د حکومت کولو په لټه کې وو، یوه بله وسله او پلمه په لاس ورکړه.

هربرت سپنسر یو بل مفکر و چې توکم پاله نظریه یې د داروین د بقای اصلح د تیوري په مرسته پیاوړې کړه. دۀ خپلې نظریې ته د اجتماعي داروینېزم نوم ورکړ او د اروپایانو استیلا یې په اسیایي او افریقایي هېوادونو باندې چې اوسېدونکي یې ګویا په توکمیز لحاظ پریوتي خلک وو، توجیه کړه.

په دوی سربیره دلته ځینې نور مفکران وو چې د تمدن منشا او وده یې وڅېړله. فروید په خپل کتاب کې چې تمدن او مخالفان یې نومېږي، استدلال کوي چې د تمدن د ودې وجه د شک و بې باورۍ هغه حالت دی چې انسان پکې ژوند پیلوي. د طبیعت په مقابل کې د ځان د حفاظت لپاره انسان خپله ټوله انرژي کاروي چې په خپله ګټه د طبیعي منابعو د



استعمالولو په مقصد په چاپېریال برلاسی شي. له طبیعت سره د مقابلې په بهیر کې بشر هم وده کوي او هم له تباهۍ و تخریب سره مخ کېږي. خو دغه ټکرونه انسان د تمدن د ودې لپاره خلاقیت، ابتکار او فعالیت ته اړباسي.

نوربرت الیس په خپل کتاب کې چې د تمدن بهیر نومېږي، لیکي چې دهر تمدن یو مهم شاخص دا دی چې خلک خپل احساسات او د بدن حرکات څنګه کنټرولوي. د دۀ په نظر یو څوک هغه وخت د یوې ټولنې په باره کې قضاوت کولای شي چې د هغې ټولنې عادتونه او رواجونه وڅېړي او په دې ځان پوه کړي چې د دې ټولنې اوسېدونکي څنګه ډوډۍ خوري، څنګه خبرې کوي او چلند یې څه ډول دی.

دی په خپل یو بل کتاب کې چې د دربار کلچر نومېږي، وایي چې دا د درباري آدابو برکت و چې درباریان په دې پوهېدل چې څنګه د پا چا په وړاندې د خپل بدن حرکات کنټرول کړي. دغه کلچر ورو ورو له اشرافو او درباریانو عامو خلکو ته ورسېد او د ټولنې په عادت بدل شو. دی د تمدن په خپرېدو کې پیاوړي دولت او د هغه موسسو ته هم اهمیت ورکوي چې د اشرافو او فیوډالو ملاکانو نفوذ یې کم کړ او بوروازۍ یې وهڅوله چې را مخکې شي. په نتیجه کې تمدن یوازې د اشرافو په ولکه کې پاتې نه شو بلکې نورو طبقو ته هم خپور شو.

د خندا خبره دا ده چې په نړۍ کې ډېرې جګړې د تمدن په نوم شوي دي. په دې جګړو کې د نړۍ د متمدن کولو په ځای د مغلوبو ملتونو مدنیتونه تباه او دوی اړ ایستل شوي دي چې د غالبو هېوادونو اصول او ارزښتونه ومني. دغه پروسه ان تر ننه پورې روانه ده مثلا د امریکا امپریالیزم د تمدن په نوم نور هېوادونه نیسي چې لویدیځ اقدار وساتي او د مغلوبو هېوادونو ارزښتونه ختم کړي. له خپلو ارزښتونو او کلتوره بې برخې شوي مغلوب ملتونه بې کلتوره او غیر مهذب شي. دا حالت د عراق، افغانستان او فلسطین په پېښو کې وینو.

# د تاریخ کشف

تاریخ چې په خپل وخت ونه لیکل شي یا دروغ پکې شامل شي او د حقیقت د معلومولو اصلي منابع له ګوتو ووځي، نو په داسې حالت کې د موادو راغونډول او د ورکو کړیو موندل اسانه کار نه وي. خو له دې سره سره له ازادۍ وروسته د هند براعظمګي مورخانو هڅه وکړه چې د ۱۸۵۷ کال د پېښو څرک ولګوي او له نشنلسټ لیدلوري یې نوی تاریخ ولیکي. د براعظمګي مورخانو په اول قدم کې د انګرېزانو هغه اسناد ولوستل چې د ۱۸۵۷ کال د بغاوت په اړه سرکاري پالیسي پکې بیان شوې وه.

د برطانوي لیکوالو په لیکنو کې د ځینو پېښو ذکر شوی دی چې د ۱۸۵۷ کال د بغاوت په دوران کې مو له هندیانو سره د انګرېزانو له قهرجن چلنده خبروي. په دغو لیکنو کې د هندیانو د کلیو د سوځولو، په مازي شک د وګړیو د اعدامولو، بې له پوښتنې او تحقیقه د وګړیو د وېشتلو، د مسلمانو او هندوانو په بدنونو باندې د سرکوزي او غوايي د وازدې د مښلو له لارې د خلکو د ځورولو، ا و د اعدام د حکم د اورولو په وخت د وګړیو د سپکولو له پېښو خبرېږو. دغسې ټول موردونه دا راښیي چې انګرېزانو د نوموړي کال د پېښو په دوران کې بې رحمۍ او شقاوت ته مخه کړې وه.

د ۱۸۵۷ کال د تاریخ د لیکلو بله منبع د هغه وخت هندۍ ورځپاڼې دي. د جګړې په دوران کې دا ورځپاڼې ازادې وې چې د باغیانو په ګټه



خبرونه او اعلامیې هم خپرې کړې. مثلا د مولوي باقر، دهلي اردو اخبار د باغیانو د هڅو ملاتړ کاوه او دوی یې له بهرنیانو سره جګړې ته هڅول. په دې اخبار کې د نورو ښارونو خبرونه هم خپرېدل. د هغه زوی، محمد حسین ازاد، د کمپنۍ او د هغې د حکومت په خلاف یو نظم ولیکۀ.

بله ورځپاڼه صدیق الاخبار وه چې جمیل الدین هجر چلوله. دې اخبار هم خپلو لوستونکو ته د باغیانو په اړه خبرونه خپرول. دغه اخبار د انګرېزانو په خلاف د بهادرشاه ظفر شاعري خپروله. صدیق الاخبار د کافرانو په خلاف د دیني علماوو د جهاد مشترکه فتوا هم خپره کړه.

پیام ازادي یوه بله ورځپاڼه وه چې د امپراطور لمسی میرزا بیدار بخت یې چلوونکی و. د نانا صاحب یو نژدې ملګری عظیم الله د پیام ازادي په چلوولو کې د میرزا بیداربخت همکار و. په دې اخبار کې د عظیم الله یو مشهور شعر چې د هندوستان خلک یې د خپلې خاورې د ازادۍ لپاره له انګرېزانو سره مقابلې ته رابلل، خپور شو. په اردو سربېره ځینې فارسي خپروونو لکه ګلشن نوبهار، سلطان الاخبار، او سراج الاخبار د جنګ په دوران کې په منظم ډول خبرونه خپرول.

په دې دوران کې د پاچا ځینې فرامین، ځینې پامفلیټونه او پوسترونه هم خپارۀ شول چې خلک یې له پردو واکمنو سره په مقابله کې یو والي ته رابلل.

ظهیر دهلوي په خپل کتا ب (داستان غدر) کې، تر بغاوت پخوا دهلي کې د کلتوري او اجتماعي ژوند انځور او دغه راز د هغه وخت انځور چې باغي پوځ دهلي ته راننوت او هر څه بدل شول، په زړۀ راښکونکي انداز کښلی دی. دۀ د خلکو د لوټېدلو، وژلو او له ښاره د شړلو بدمرغۍ په تفصیل سره بیان کړې دي. دغه اثر د هغو خلکو یو

ژوندی داستان دی چې د کورنۍ غړې يې له لاسه ورکړې او له خپلو
کورونو او جايدادونو محروم شوي دي. دی ليکي: د انګرېزانو فاتح
پوځونو د کورونو لوټ پيل کړ. که به دوی له وګړيو تش کور وليد
سمدستي به ورغلل چې لوټ يې کړي، که به يې په کور کې څوک
وموندل، بې له ځنډه به يې و واژۀ. په يوه محله کې يو سلو څوبښت
کسان ونيول شول او راجګړ ته راوستل شول. هلته په دوی ټولو د
توپکو باړونه وچلېدل او مړي يې سين ته وغورځول شول. ښځې
دومره پرېشانه شو ې چې له ماشومانو سره له کورونو راووتې او
کوهيانو ته يې ځانونه واچول. د کوچۀ چيلان ټول کوهيان د دوی له
مړيو ډک شول... زما قلم نور وړاندې نه شي تلی. )

ډيلي د کلتوري فعاليتونو مرکز و او تباهي يې په اوسېدونکو باندې
د غم، خپګان او مړاويتوب توپان راوست. مېرزا غالب خپلو نژدې
دوستانو ته په خپلو مختلفو ليکونو کې د ښار په تباهي اوښکې
تويوي. په هغو شاعرانو کې چې په ډيلي باندې يې مرثيې کښلي دي
غالب، حالي، داغ، صدرالدين ارزو، ظهير دهلوي، ميرزا قربان،
علي بېګ سالک، منير شکوه ابادي، او مير مهدي مجروح شامل
دي. ماتې، چې د هند د مشرانو د وژنې، اعدام يا جلاوطنۍ سبب
شوه، د هنديانو زړونه مات کړل. د انګرېزانو د بري جشن ډېر شانداره
و. پې، سي جوشي په خپله يوه ليکنه کې هغه ولسي سندرې او کيسې
را اخيستې دي چې له همدې پېښو سره تعلق لري. دا له احساساتو
مالامالې سندرې عوامو جوړې کړې او په ولسونو کې خپرې شوې
وې. په يوه ولسي سندره کې د ميرټ د خلکو قيام په دغو الفاظو بيان
شوی دی:

واه، راشه او وګوره !



د ميرټ په بازار کې
پرنګي ته لاره نيول شوې ده، لاس ورلوېدلی دی
د ميرټ په بازار کې، په رڼا ورځ
وګوره، واه، وګوره، پرنګي وهل کېږي، ټوپک ورنه تښتول کېږي
د هغه اس مړ پروت دی
د هغه تمانچه ټوک ټوک شوې ده
د ميرټ په بازار کې په رڼا ورځ

د جانسي د رانۍ ( د جانسي ملکه ) لپاره هم ګڼې سندرې ويل شوې
دي. يوه سندره وايي چې څنګه : هغه د نارينه په شان زړۀ وره
وجنګېدله، اه، د جانسي رانۍ ( خوب لړې مرداني، اري جانسي والي
راني !) دغه راز کنور سنګ، رانا بيني مدو، تانتيا ټوپ، ګلاب
سنګ، او حضرت محل په سندرو کې ياد شوي دي. دغه سندرې د
ازادۍ لپاره د دوی قرباني ستايي. په دغو سندرو کې د انګرېزانو د
حکومت غندنه او ورنه کرکه وينو. سندرو د ولسونو احساسات
څرګند کړي دي. که څه هم د هندوستان خلکو سياسي او پوځي ماته
وخوړه خو دغو سندرو د دوی ماته په بري بدله کړه او د بغاوت
کوونکو ياد يې ژوندی وساتۀ. ويل کېږي چې د هغه وخت خلکو د
مليت مفکوره نه لرله خو دا سندرې راښيي چې د هند خلکو د خپلو او
پردو واکمنو تر منځ پوره فرق کاوۀ. دوی انګرېزانو ته نه بلکې ځايي
ليډرانو ته وفاداره وو.

وروسته بيا خواجه حسن نظامي او راشد الخيري له ژغورېدليو
کسانو سره د مرکو او د هغو د توضيحاتو په اساس د ۱۸۵۷ کال د
پېښو په اړه مواد راغونډ کړل. دا د هغې ټولنې د حال بيان و چې د
بغاوت د ناکامۍ په وجه يې اډانه تباه شوې وه.

د براعظمګي له ازادۍ راهيسې مورخانو د ۱۸۵۷ کال په پېښو باندې مسلسل کار کړی دی. کله چې په ۱۹۵۷ کال کې د بغاوت سليزه وه، په دې اړه د هنديانو د ليدلوري څو کتابونه خپاره شول. سږ کال (۲۰۰۷) د خپلواکۍ د جګړې د يوسلوپنځوسم کال په مناسبت يو شمېر کتابونو او مقالو د ۱۸۵۷ کال هير شوي اړخونه رڼا ته راوايستل.

د براعظمګي تر ټولو دمخه هندوستاني اکتور او فلم جوړوونکي سهراب مودي د جانسي په رانۍ باندې يو عالي فلم جوړ کړ چې د انګلستان حکومت يې په ښودلو سمدستي بنديز ولګاوه. په دې وروستيو کې په منګل پنډې باندې يو فلم چې اصلي نقش پکې اميرخان لوبولی دی، د سينما په پرده راښکاره شو. دغه فلم که څه هم له تاريخي حقايقو سره پوره سمون نه خوري خو د راج ( په هندوستان باندې د انګرېزانو حکومت ) په خلاف يې د خلکو احساسات ښه څرګند کړي دي.

په دې وروستيو کې مورخانو د ۱۸۵۷ قيام ، د امپرياليزم او توکم پالنې په خلاف مقاومت سره غوټه کړی دی. دا به مشکله وي چې د ۱۸۵۷ حادثه يوازې پوځي بغاوت وبولو او دا ونه وايو چې د انګرېزانو د کلتوري، مذهبي، سياسي، اقتصادي او اجتماعي غلبې په مقابل کې يو عکس العمل هم و. هغه تاريخ چې ورک شوی دی، د کشف کېدو په حال کې دی. نور نو په تاريخ ليکنه باندې د انګرېزانو غلبه ختمېدونکې ده.



# هندوستان داسې ونيول شو

دا د هند په تاريخ کې يو جالب خو مهم سوال دی چې انګرېزانو څنګه او ولې د هندوستان سياسي واګې په اسانۍ سره او بې درد سره تر لاسه کړې؟ ايا وجه دا وه چې د هندوستان سياسي، اجتماعي او اقتصادي نظام دومره وروست و کاواکه شوی و چې د انګرېزانو د غلبې مخه يې نه شوای نيولی؟ اياهغو تحولاتو چې په انګلستان کې راغلل او ټولنه يې بدله کړه، انګرېزانو ته په هندوستان باندې د ځان برګنلو او غلبې روحيه وبخښله؟ او کنه، دا هسې يو چانس و چې انګرېزانو ته په ګوتو ورغی او استفاده يې ورنه وکړه؟

دا هم يو مهم سوال دی چې ايا انګرېزانو واقعا هندوستان په اسانۍ سره ونيو او که له مقاومت سره مخ شول؟ په دې کې شک نشته چې په لومړي پړاو کې د شرقي هند کمپنۍ او د هغې مامورينو سياسي جاه طلبۍ او بلند پروازۍ نه لرلې. د دوی مقصد يوازې تجارت و. دوی غوښتل چې د لا زياتې ګټې لپاره له واکمنو امتيازات واخلي.

د شرقي هند کمپنۍ په داسې وضعيت کې نه وه چې ډېر عسکر ولري. دې ادارې د خپلو فابريکو او کاروباري مرکزونو د ساتلو لپاره محدود عسکر لرل. خو د مغولو د امپراطورۍ د شړېدو په وجه چې مسلح بريدونه پيل او د قطاع الطريقو ګروپونه فعال شول، نو د دې ادارې د عسکرو شمېره زياته شوه. مثلا شيوا جي څو ځله سورت ښار چې تجارتي مرکز و ، لوټ کړ. د کمپنۍ د مسلح کېدو بل علت له فرانسويانو سره رقابت و.

د اتلسمې پېړۍ تر اواسطو پورې د بریتانیا حکومت او کمپنۍ د دغه پوځ مصارف ورکول خو تر دې وروسته حکومت دې نتیجې ته ورسېد چې د نوموړي پوځ مصارف دې یوازې د کمپنۍ په غاړه وي. کمپنۍ تر دې مودې پورې په هندوستان کې په کافي اندازه د منابعو کنټرول تر لاسه کړی و او دا یې په وس کې وه چې د انګلستان له مرستې پرته په خپلو پیسو یو لوی پوځ وساتي.

د پلاسي په جګړه کې بري،کمپنۍ له یوې تجارتي ادارې په یوه سیاسي ځواک بدله کړه. کمپنۍ د سیاسي ځواک په توګه له هندي دولتونو او ایالتونو سره اتحادونو او معاهدو ته ملا وتړله. دغو ځایي دولتونو ته به یې په سود پیسې ورکولې او عسکر یې ورواستول چې دفاع یې وکړي. که به دغو حکومتونو د پور د ادا کولو وس نه درلود نو په بدل کې یې ورنه خاوره لاندې کوله او د خپلو خدماتو په مقابل کې یې مالیه ورنه ټوله. د بکسر ( ۱۷۷۰ ) له جګړې وروسته کمپنۍ د بنګال، بیهار او اوریسې د مالیاتو د غونډولو حق تر لاسه کړ.

د مصارفو د پوره کولو بله طریقه دا وه چې کمپنۍ به د خپلو هغو عسکرو مصارف غوښتل چې د هندي نوابیو او حکومتونو دفاع یې کوله. په ۱۷۷۰ کې د اود حکومتونو د کمپنۍ د دوو غونډونو مصارف په غاړه اخیستي وو چې د اود په سیمه کې دېره وو. د پوځي قدرت د لرلو په نتیجه کې کمپنۍ په ځایي دولتونو امر وکړ چې خپل پوځونه ختم کړي او د ځان د دفاع لپاره یوازې د دې ادارې په پوځ تکیه وکړي. دې شي د ځایي واکمنو قدرت کم کړ او وار په وار یې د کمپنۍ د بشپړ کنټرول په ولکه کې راوستل.

تاریخ شاهد دی چې هیڅ امپریالیست ځواک یوه ساحه او یوه خاوره تر هغو پورې سمه نه شي لاندې کولای چې د سیمې خلک ورسره همکار نه شي. په هندوستان کې له کمپنۍ سره په لومړي پړاو کې سوداګرو،



کسبګرو، صنعتګرو او اجنټانو همکاري وکوله ځکه د کمپنۍ په کاروبار کې دوی ته هم ګټه رسېدله. تاریخ د هغو کسانو نومونه ثبت کړي دي چې په دې سلسله کې یې ډېره ګټه وکړه او په سیټانو بدل شول. د پلاسي په جګړه کې جګټ سیټ او اومیچند د انګرېزانو ملګرتیا وکړه ځکه له دوی سره یې کاروباري تعلقات وو.

په دویم پړاو کې چې کمپنۍ په شمالي او مرکزي هند کې په سیاسي قدرت بدله شوه، هغه بیروکرات ورسره یو ځا ی شول چې د مغولو د حکومت د ړنګېدو په وجه په کور ناست وو او په اداره کې یې لویه تجربه وه . مولانا فضل الحق خیرابادي او سرسیداحمدخان د همدې بیروکراتو دوې مشهورې څېرې دي چې په اخلاص سره یې د کمپنۍ خدمت وکړ.

کمپنۍ د عسکرو په موندلو کې له مشکل سره مخ نه وه. په هند کې د هغو کلیوالو او بزګرو کمی نه و چې کورنیو جګړو ځپلي وو او تېرېدونکو پوځونو یې کروندې ورویجاړې کړې وې. دوی بېلو بېلو جګړه مارو ډلو ته مالیې ورکولو بې وزلي کړي وو او دې ته تیار وو چې کمپنۍ غوندې یوې اداره کې کار وکړي. دغه کلیوال په غالب ګومان په دې نه پوهېدل چې د خپل ملک په نیولو کې له یوه خارجي قدرت سره همکاري کوي. دا ناخبري بې دلیله نه ده. اول دا چې انګرېزان خورا لرې وو او چې د کمپنۍ هندي عسکرو ته به له خپلو منصبدارانو سره د رابطې اړتیا پیدا شوه نو له ځایي منصبدارانو سره به یې رابطه نیوله، نه له خورا عالي رتبه منصبدارانو سره چې انګرېزان وو. هندي عسکرو ته د ځایي منصبدارانو د اوامرو منل مشکل نه پرېوتل.

د ناخبرۍ بل دلیل به ممکن دا و چې د هندوستان په تاریخ کې پخوا هم همداسې شوي وو. یوازینی فرق دا ښکاري چې د غزنوي محمود او بابر په څېر کسان له خپلو ملکونو له پوځونو سره راغلي وو خو انګرېزان په

خورا کم شمېر کې راغلل او د خپل پوځ قشلې یې په هندي عسکرو ډکې کړې. البته، انګرېزانو د جګړې خورا نوي تخنیکونه لرل چې هندیان ورسره بېخي بلد نه وو. د هند ځایي خلکو په دې تمه هم د انګرېزانو ملاتړ وکاوۀ چې ګوندې د کوچنیو حکومتونو له خپلمنځي جګړو به وژغورل شي او انګرېزان به د مغولو د وخت په څېر هندوستان واحد کړي او امن به راوړي.

د هندیانو تېره تجربه دا وه چې بلوسګرو به د هند له نیولو وروسته له خپل اصلي وطن سره رابطه غوڅه کړه، د همېشه لپاره به په هند کې دېره شول. عربو او ترکو همداسې کړي وو خو د انګرېزانو کیسه بل ډول وه. دوی د پخوانو پوځي یرغلګرو غوندې نه وو. دوی تر ډېره حده د تجارتي ادارو مامورین وو او چې په هند کې به یې د کار موده پوره شوه، انګلستان ته به ستنېدل.

البته، دا خبره سمه نه ده چې انګرېزانو له هر ډول مقاومته پرته هندوستان نیولی دی. انګرېزان دلته د هرې سیمې د نیولو لپاره جنګ ته مجبور شوي دي. مقاومت هم فردي و او هم ډله ییز. د مغولو له زواله وروسته په هند کې ځینو ځایي حکومتونو د بریتانیا د غلبې په مقابل کې ډېر مقاومت ونه کړ، په اسانۍ سره یې نیواک ته غاړه کېښوده. د حیدراباد او اود حکومتونه همداسې وو. خو ځینو نورو لکه د سیکانو، مرهټه وو او میسور واکمنیو له انګرېزانو سره خونړۍ جګړې وکړې او له شدید مقاومته وروسته یې ماتې ومنله.



د بریتانیا د راج مطالعه او د هغې شننه موږ ته دا تاریخي بصیرت راکوي چې یو خارجي قدرت څنګه د داخلیانو په همکارۍ یوۀ هیواد ته داخلېږي او نیسي یې. دا خبره که پرون سمه وه نن هم سمه ده.



# اورنګزیب عالمګیر

د مغولو وروستی لوی امپراطور اورنګزیب عالمګیر په ۱۷۰۷کې ومړ. دۀ یوه لویه امپراطوري په میراث پرېښوده چې د دۀ له مړینې سمدستي وروسته یې تجزیه پیل شوه. داسې ځکه وشول چې د اورنګزیب ځای ناستي بې کفایته کسان وو.

اورنګزیب د هند په تاریخ کې یو متنازع فیه شخص دی. د دۀ په باره کې متضادو قضاوتونو د شلمې پېړۍ په دویمه لسیزه کې زور واخیست. دا هغه زمانه وه چې په هند کې کمیونالیزم خپور شو او تاریخ لیکنه یې هم تر اغېز لاندې راغله.

د اورنګزیب په غندنه کې ویل کېږي چې متعصب او توند لاری سړی واو دا دی و چې د مغولو امپراطوري یې د زوال لوري ته تاو کړه. د اورنګزیب ستایونکي هغه د تقوا څښتن او د عالي استعداد خاوند بولي. دوی وایي د اورنګزیب په زمانه کې ځینې لوی بحرانونه راغلل خو دۀ بیا هم، امپراطوري اداره کړای شوه.

که څه هم په پاکستان کې د مغولو د وروستي لوی امپراطور په باره کې اکاډیمیک تحقیق نه دی شوی مګر ځینې کړې چې د ټولنې د اسلامي کولو په اړه خپل فکرونه لري، له اکبر او دارا شکوه سره د اورنګزیب د مقایسې په وخت دې نتیجې ته رسېږي چې اورنګزیب د دوی لپاره د لارې د مشال او اعلی مثال په شان دی، خو هغه نور دوه

د اسلام په لار برابر نه دي او د هند د مسلماني ټولنې ګټو ته یې تاوان رسولی دی. په هندوستان کې له جدونت سرکاره وروسته د هند په تاریخ کې د اورنګزیب د نقش په اړه ځینې مقالې او کتابونه لیکل شوي دي.

له یوۀ نوي تحقیق سره سم، اورنګزیب عالمګیر باید د قدرت د سیاست په رڼا کې مطالعه شي. دی یو پراګماتیک واکمن او د عمل سړی و چې خپلو سیاسي هدفونو ته د رسېدو لپاره یې له دینه استفاده کوله. دۀ د خپلو ورونو د اعدامولو لپاره سیاسي نه بلکې مذهبي دلایل وموندل ځکه دا یې په ګټه وه. دا د ملایانو یوه شورا وه چې د شهزاده داراشکوه د اعدام حکم یې وکاوۀ او دلیل یې ورته دا راوړ چې شهزاده له خدایه منکر دی. د اورنګزیب د ورور د اعدام لپاره د قصاص له حکمه استفاده وشوه. دیني علما د اورنګزیب تر اغېز لاندې وو او دۀ له خپلو مقصدونو سره سمې فتواګانې ورباندې جاري کولې.

مثلاً، د ستارا د محاصرې په دوران کې څلور مسلمانان او نهۀ هندوان د جنګي اسیرانو په توګه راوستل شول. اورنګزیب له قاضي د اسیرانو د جزا پوښتنه وکړه. د قاضي فتوا دا وه چې هندو اسیران که ایمان راوړي خوشې دې شي او مسلمان اسیران دې بندیان وي. په اورنګزیب باندې دا فتوا ښه ونه لګېده. قاضي یې سپک کړ او ورته ویې ویل چې یوازې حنفي فقه خو نه ده، نورې هم شته. قاضي په خبره ورسېد او د ټولو اسیرانو د وژلو فتوا یې ورکړه.

خو له بلې خوا، د دربار سني اشرافو له اورنګزیبه خواهش وکړ چې شیعه اشراف له لویو دولتي مقامونو لرې کړي. اورنګزیب یې



غوښتنه ونه منله، ورته ویې ویل چې سیاست و مذهب له یوبله بېل دي.

ځینې کسان په ګجرات، بنارس، ټاټا او ماتورا کې د اورنګزیب په لاس د هندوانو د یو شمېر معبدونو د ړنګولو خبره کوي خو د اورنګزیب پلویان وایي چې دغه معبدونه په هغه وخت کې د سیاسي دسیسو مرکزونه وو. البته، داسې سند نه لرو چې د اورنګزیب د پلویانو دغه ادعا ورباندې ثابته شي. په حقیقت کې د معبدونو تخریب د اکبر پاچا د صلح کل له پالیسۍ د مخ اړولو په معنا و. د صلح کل د سیاست په اساس د امپراطورۍ له ټولو اتباعو سره د مساوي کسانو په توګه د چلند غوښتنه کېدله. د معبدونو په ړنګولو سره اورنګزیب غوښتل چې خپل زور وښیي او د اکبر د سیاست پیروۍ ته د پای ټکی کېږدي.

په دې وروستیو کې د اورنګزیب ځینې فرامین موندل شوي چې د هندوانو، سیکانو او جین فرقې د مختلفو معبدونو د ودانولو په کار کې مو د حکومت له مالي مرستې خبروي. اورنګزیب په دکن کې، چې د عمر وروستي کلونه یې هورې وو، هیڅ معبد ړنګ نه کړ. ځکه هلته د دۀ په ګټه نه وه چې د خلکو مذهبي احساسات وپاروي.

د اورنګزیب د جزیې د حکم په باره کې مورخ ساتیش چندرا وایي چې امپراطور دغه حکم د خپلې پاچهۍ په دوه ویشتم کال په ۱۶۷۹ کې وکړ او دا هغه وخت و چې امپراطور د دکن د امارتونو له واکمنو او راجپوتو سره په جګړه بوخت و او غوښتل یې چې د جزیې په جاري کولو سره د مسلمانانې ټولنې خواخوږي تر لاسه کړي. البته، وروسته معلومه شوه چې د جزیې د ټولولو مامورین په درغلۍ بوخت دي.

همدا وجه وه چې اورنګزیب په ۱۷۰۴ کې د جزیې ټولول منع کړل.

اورنگزيب د حکومت چارې پټپله کنټرولولې. په جامو او آرايش کې يې ساده ګې خوښوله. د لوکسې زندګۍ شوقي نه و. دغه ټکسونه چې اسلامي نه وو او خلک ورسره په تکليف وو، لغوه کړل. په دربار کې يې په ساز او نڅا بنديز ولګاوۀ. خو د هغه له تقوا او امساک سره سره، واکمنې طبقې ښځې بل ډول ژوند کاوۀ. کابو ټول عالي رتبه مقامات په درغلۍ بوخت وو. د اورنگزيب قومندانانو به د مرهټه وو د کلاګانو محاصره بې موجبه اوږدوله چې رشوت ورکولو ته يې مجبور کړي. خلکو د اورنگزيب د حکومت چارواکي چې په استثمار بوخت وو، بد ايسول. د دۀ په وخت کې ان قاضي عبدالوهاب هم په درغلۍ مشهور و. د دۀ د زمانې په اشرافي ټولنه کې شراب څښل او زنا کول عام وو. اورنگزيب د دغه حالت په کنټرولولو يا اصلاح کولو کې ناکام و.

د اورنگزيب په کرکټر کې ځينې کمزورۍ وې. دۀ په هيڅ او ان خپلو زامنو باور نه کاوۀ. دۀ نهه څلوېښت کاله پاچهي وکړه خو په دې ټوله موده کې يې خپلو اولادونو ته اجازه ورنه کړه چې په سياست او اداره کې تجربه تر لاسه کړي. دې دغه راز د راجپوتو، مرهټه وو او جټانو د راڅرګندېدونکو هويتونو په پېژندنه کې پاتې راغی. دغو خلکو غوښتل چې په خپلو سيمو کې مستقل رول ولوبوي او اورنگزيب يې په غوښتنو سم پوه نه شو. دۀ د دکن په سيمه کې د جنوبي هند له واکمنو سره په جګړه کې اوولس کاله تېر کړل او په دې ډول يې د خپلې امپراطورۍ انرژي ورباندې ختمه کړه. په دکن کې اوږدې استوګنې په اورنگزيب باندې د هند شمال هېر غوندې کړ، حال دا چې د هند شمال د امپراطورۍ اصلي مرکز و.

ايا اورنگزيب د مغولو د واکمنۍ د زوال ذمه وار دی؟ د دې امپراطورۍ په زوال کې د دۀ برخه شته خو يوازې دی نه بلکې نور عوامل هم وو.



# د وروستيو مغولو مالي مشکلات

کله چې شاه عالم (۱۸۰۶-۱۷۸۸) د انګرېزانو تر حمايت لاندې ډيلي ته ستون شو، د دۀ واکمني په سري کلا پورې محدوده شوه. دی مجبور و چې د خپلو نيکونو د کورنيو ګڼ شمېر غړيو ته چې په سرې کلا کې اوسېدل، خرڅ ورکړي.

د شاه عالم محدود شوي عوايد دومره نه وو چې د مغولو د سردارخېلو چاره ورباندې وشي خو د مغولو د امپراطور په توګه د دوی ساتندوی و او دا د دۀ دنده وه چې د هغوی مصارف برابر کړي.

د مغولو د زوال په زمانه کې د دربار د مالي مشکلاتو يو مثال دا دی چې کله مرهټه په قدرت کې وو نو امپراطور ته هغوی د مياشتې اوولس زره روپۍ ورکولې، حال دا چې د امپراطور لګښتونه پنځه څلوېښت زره روپيو ته رسېدل.

کله چې اکبر شاه (۱۸۳۷-۱۸۰۶) په تخت کېناست نو سلطنتي غړيو ته د ډوډۍ برابرولو لپاره کافي پيسې نه وې. دوی مجبور وو چې په ښوزلۍ او مشکلاتو کې ژوند وکړي. په ۱۸۰۹ کې ګورنر جنرال ويلزلي د سرې کلا واکمن او دربار ته د مياشتې اويا زره روپۍ مستمري وټاکله خو ان دا پيسې هم د سردارخېلو د کورنيو چې د غړيو شمېر يې ورځ په ورځ ډېرېدۀ، نه بس کېدلې. دغه وخت د امپراطور يوازينۍ انديښنه دا وه چې د خپل دربار او اړوندانو لګښتونو ته مدارک ومومي. له هغه وخت راهيسې چې د شرقي هند

کمپنۍ د اداري چارو ټول کنټرول په خپل لاس کې اخیستی و
،امپراطور نه سیاسي واک او نه اداري صلاحیت درلود. د سرې کلا
څښتن یوازې په نوم پاچا و.

اکبر شاه د خپلو مالي مشکلاتو د اوارولو په فکر کې و او خواجه
فرید یې وزیر وټاکه چې له مالي بحرانه د راوتلو لپاره د عوایدو نورې
منابع پیدا کړي. وزیر د عواید و د زیاتولو او د مصارفو د کمولو
لپاره درې لارې وموندلې : یو دا چې د سلطنتي کورنیو د غړیو
معاشونه یې لس فیصده کم کړل بله دا چې ځینې سلطنتي کارخانې او
د سلطنتي پخلنځي ځینې څانګې یې بندې کړې . دریم دا چې د عام
دربار د سالون د چت سرهٔ زر او مس واخیستل شول چې په ضرابخانه
کې په سکو واوړي. د ډیلي خلکو به ویل چې د چتونو سپین زر
نادرشاه افشار لوټ کړل او سرهٔ زر و مس یې خواجه فرید یوړل. خو د
خواجه فرید حل لارې دایمي نه وې ، د لنډ وخت چاره ورباندې کېدله.

بهادر شاه (۱۸۵۸-۱۸۳۷ ) د خپل سلطنت په ټوله موده کې له کمپنۍ د
نورو پیسو غوښتنه کوله. دهٔ ته کمپنۍ د میاشتې سل زره روپۍ
معاش ټاکلی و. جالبه دا ده چې د مغولو دربار دغه پیسې باج بللې خو
کمپنۍ د تنخواه نوم ورکړی و. د دغو دوو اصطلاحاتو په حقوقي
معنا کې ډېر توپیر و. زورور له کمزورو باج اخلي خو تنخواه تر لاس
لاندې او مامور ته ورکوله کېږي .کله چې کمپنۍ بهادرشاه د خاین په
حیث محاکمه کاوهٔ نو د تنخواه او باج په معنا کې همدا حقوقي
تفاوت د محاکمې بنیاد و.

مالي پرابلمونو د سلطنتي کورنیو په ژوند ډېر اثر غورځولی و. پاچا ،
د هغه مېرمنو او شهزاده ګانو د وروستۍ ذریعې په توګه د خپلو
زیوراتو او د کور د سامان خرڅولو ته مخه کړه.



سره کلا د مرهټه وو ، جټانو ، روهیله وو ، او د نادرشاه افشار او
احمدشاه ابدالي عسکرو لوټ کړه . لوټمارو نه یوازې د مغولو
پاچایانو راغونډه کړې خزانه یووړه بلکې د سرې کلا د دیوالونو
چتونه او دیوالونه یې سوري کړل چې ګوندې پټې شوې خزانې په
ګوتو ورشي. غلام قادر روهیله خو ان د سلطنتي کتابتون په کتابونو
هم صرفه ونه کړه ، په بازار کې یې وپلورل.

د دغو پېښو نتیجه دا وه چې د سلطنتي کورنۍ غړیو په بېوزلۍ کې
ورځې شپې تېرولې. دوو خارجي مېرمنو چې سرې کلا ته ورغلې او د
سلطنتي کورنۍ غړي یې لیدلي، د هغوی د تریخ ژوند په باره کې
ځینې معلومات راکړي دي. مېرمن فني پارک لیکلي دي چې د سرې
کلا په هغه ځای کې چې سلطنتي کورنۍ اوسېده ، د پخواني عظمت
پته نه لګېده. د سالون له دېوالونو خپګان ورېدهٔ. شهزاده ګۍ هدایت
النسا د قیمتي ملغلرو د غاړه کۍ په ځای د ګلونو امېل په غاړه و چې
د لویو مغولو دود یې بېخي نه وي هېر کړی.

مېرمن حسن علي هم چې په اصل کې انګرېزه وه او د لکنهو له یوهٔ
مسلمان نواب سره یې وادهٔ کړی و ، سرې کلا ته ورغلې وه.دې لیکلي
دي چې: زه د ملکې لخوا د ګلدوزۍ شوي ټکري د سوغات په راکولو
خوابدې شوم ځکه په دې پوه وم چې هغه تر دې ډېره بې وسه ده چې
سوغاتونه ورکړي او د مېلمنو توقعات پوره کړي.البته ما یې تحفه
چې زما د ویاړلو په نیت راکړه شوې وه، ومنله. ما یې تحفه قبوله کړه
خو د هغو احساساتو د ژوبلېدو په بیه چې ډېر ورته درناوی لرم.
ملکې یوه وړه ارزانبیه ګوتې راپه ګوته کړه او ویې ویل: چې در په یاد
مې کړې.

لویې امپراطورۍ د برم و بري په وختونو کې د خپل ویاړ و عظمت د ښودلو لپاره لوی یادګارونه جوړوي . کله چې امپراطوري زوال ومومي او واکمنان یې د مالي مشکلاتو په وجه په ساتلو کې پاتې راشي، نو د شاندارو ماڼیو ویجاړېدا پیل شي. له مغولو سره همداسې وشول. شاه جهان آباد چې د شاه جهان پاچا د خوبونو تعبیر و، او ډیلي چې د تېرونسلونو مانۍ، مقبرې او باغونه پکې وو، د مغولو د حکومت په وروستیو کې یې حال ابتر و.

د ډیلي د دغه وخت بد حال د ګڼو خارجي سیلانیانو په لیکنو کې انځور شوی دی. ریجلنډ هیبر د پاسني هند ولایتونو ته د خپل سفر ( ۱۸۲۵-۱۸۲۴ ) په یادښتونو کې د ډیلي په باب لیکلي چې: د اګرې له دروازې رانیولې د همایون تر مقبرې پورې په ډېرینه ، سپېره، ناکرل شوې ځمکه چې ان یوه ونه پکې نه وه ولاړه، هر ځای او هره خوا د ورانۍ او تباهۍ بوږنوونکې منظره لیدل کېدله. په کنډوالو پسې کنډوالې، په مقبرو پسې مقبرې، ماتې خښتې، د توږل شویو تیږو پارچې، د مرمرو خورې ورې ټوټې. یوازې دوه ځایه د ځمکې وړه ساحه اباده وه. )

دلته د تاریخ درس دا دی چې کله د زوال وخت راشي نو نه یوازې بېوزلي خلک بلکې واکمنې او زورورې طبقې هم تحقیر، بېوزلې او بدمرغي احساسوي.



# د اتلسمې پېړۍ هندوستان

د هندوستان د اتلسمې پېړۍ تاریخ په زړه پورې دی. دغه دوران له جالبو پېښو او د هند په سیاسي او اجتماعي جوړښت کې له چټکو تغییراتو مالامال دی. د دې زمانې مورخانو نه یوازې سیاسي پېښې لیکلې بلکې هغه اجتماعي، کلتوري، او اقتصادي حالات یې هم کښلي دي چې دوی یې پخپله شاهدان وو.

د مغولو د قدرت د زوال او د واکمنو او اشرافو د مالي بحران په وجه مورخانو ته مشکله شوه چې په دربارونو کې کار او تنخواه پیدا کړي. مورخان له دربارونو راووتل او د حالاتو په باره کې یې د خپلې خوښې مستقلې لیکنې پیل کړې.

د دغه وخت د تاریخ لیکنې لویه ځانګړنه دا ده چې د لویو شخصیتونو له محوره نه راتاوېږي بلکې د ټولنې په نورو خواوو خبرې کوي. البته ، دغه مورخان د دربار په تباه کېدونکي حالت او د اشرافو د شخصیت په کمزوریو پټه خوله نهٔ دي پاتې شوي، په دې اړه یې څرګندونې کړې دي. دوی په واکمنو سختې نیوکې کړې او په فساد او د سیسو لړلي اشراف یې په کلکه غندلي دي. ځینې مورخان چې په دربار کې ورته ځای نه و ، نورو ولایتونو ته لاړل او د کامیابو واکمنو دربارونو ته یې ځانونه ورسول چې مالي حمایت تر لاسه کړي . ځینې نور ، خپلو ښارونو ته ستانهٔ شول او د خپلو ښارونو او کورنیو تاریخونه یې وکښل. په دې ډول ، د تاریخ لیکنې ساحه او موضوع پراخه شوه.

له بلې خوا، د منځنۍ طبقې د مورخانو يوه طبقه راڅرګنده شوه چې په
اصل کې صرافان يا مثلا منشيان وو. دوی د ليکلو طرز بدل کړاو د
پخواني پېچلي طرز په ځای يې چې د مورخانو لوړې طبقې يې پيروي
کوله، ساده ژبه خپله کړه. موږ د همدې طبقې د مورخانو له برکته د
هندوستان د اتلسمې پېړۍ په اړه ډېر معلومات لرو.

شاعران هم د خپل عصر په انځورولو کې تر مورخانو وروسته نهٔ وو. د
دوی شاعري د هماغه وخت د اجتماعي، سياسي او کلتوري حالاتو
څرګندويه ده. ميرتقي مير( ۱۸۱۰-۱۷۰۲)، سودا (۸۱-۱۷۱۳) ، درد
(۸۵-۱۷۲۰)، نظير اکبرابادي (۱۸۳۰-۱۷۴۰) او د اردو ژبې نورو
شاعرانو په خپله شاعري کې د همدې دوران په اړه خپل احساسات بيان
کړي دي. د دغو شعرونو غمجن انداز د هغه وخت د خلکو بېوسي او
مايوسي رابښيي. مذهبي عالم، شاه ولي الله ( په ۱۷۶۲ کې مړ) چې د
حالاتو شننه کوي، د بحران د اوارې لپاره د مغولو د قدرت د احيا په فکر
کې لوېږي . البته، د دهٔ اصلي دلچسپي دا وه چې هندوان مات او تابع
شي.

د اوس وخت مورخان هڅه کوي چې د اتلسمې پيړۍ مهم تحولات
وپېژني. مثلا په دې زمانه کې نوي سيمه ايز هويتونه راڅرګند شول. کله
چې جټان ، راجپوت، مرهټه، سيکان او روهيله پخپلو سيمو کې
ځواکمن شول، نو خلک د خپلو سيمو له جنګسالارانو سره ودرېدل او
مغولو واکمنو ته وفاداري يې بس کړه. خو څرنګه چې دغه نوي
حکومتونه د مغولو د حکومت په نقشه جوړ وو او هماغسې استثماري
اداري يې لرلې، نو د خلکو په ژوند کې بهتري رانغله. شمالي هندوستان
د امپراطوري نظام له شړېدو سره مخ شو او د کورنيو جګړو او د مغولو
اشرافو د تربورګلويو په ميدان بدل شو. لېږدېدونکو عسکرو کلي
ويجاړ کړل او په دې ډول کرنې صدمه وليده. له کر، کروندې لاس په سر



شوي بزګر د غلو له ډلو او غديو سره ملهٔ شول. غلو او قطاع الطريقو
لارې نا امنه کړې چې په نتيجه کې يې سوداګري تباه شوه.

اشين داس ګوپتا په خپله مقاله کې چې (د اتلسمې پېړۍ په هندوستان
کې سياست او تجارت) نومېږي، ليکي چې هندوستان په دوو برخو
وويشل شو: ساحلي هند او په وچه کې ايسار هند. په ساحلي هندوستان
کې د تجارت کاروبار وغوړېد خو په وچه کې ايسار هندوستان له
تجارتي فعاليته بې برخې شو. په ا وله مرحله کې سورت او هوګلي مهم
بندرونه وو چې په وچه کې ايسار هندوستان ته ورنه مالونه لېږدېدل. د
سورت سوداګر خورا مشهور وو. په ۱۷۰۰ ميلادي کال کې انګرېز
کونسل په خپل ليک کې انګلستان ته ليکلي دي چې د سورت سوداګر
بېخي ډېرې بېړۍ لري، که د اروپا سوداګر ورسره مقابله ونه کړي نو
اروپايان به په دې وطن کې ميدان پرېښودلو ته مجبور شي.

خو په وچه کې ايسار هندوستان کې چې لارې لازياتې نا امنه شوې، نو
ساحلي سوداګرې هم صدمه وليده. د ساحلي سيمو سوداګرو ته د هند له
شماله د نيلو او ټوکرانو تر لاسه کول مشکل شول. مرهټه غلو په ګجرات
حملې کولې او شتمنۍ يې لوټلې. دغو پېښو د ساحلي ښارونو اهميت وار
په وار کم کړ. دغه وخت د شرقي هند کمپنۍ مدراس، کلکتې او بمبۍ ته
وده ورکړه. دلته چې امنيت و، هندي سوداګرو هم ورمخه کړه او په دې ډول
تجارتي ګټو ځينې هنديان د انګرېزانو ملګري کړل چې وروسته بيا کمپنۍ
له دې ملګرتوبه او ګډو ګټو د سياسي استيلا لپاره هم ګټه واخيسته.

هغه کسان چې پيسې به يې په پور ورکولې ، په دې زمانه کې يوه مهمه طبقه
شوه. د واکمنو او اشرافو چې د عوايدو چينې وچې شوې او د ماليې په
ټولولو کې ورته مشکلات پيدا شول نو د خپلو ورځنيو اړتياوو د پوره
کولو لپاره يې پور ورکوونکو ته لاس ونيو. که څه هم د پور د نه ورکولو خطر
موجود و، خو پور ورکوونکي وار په وار شتمن شول.

مېرمن کرين ليونارد په خپله څېړنه کې چې (د لوی شرکت تيوري) نومېږي، په اتلسمه پېړۍ کې د بانکدارانو د کورنيو په راڅرګندېدا او اهميت خبرې کړې دي. سلطنتي نظام چې د خپلو مالي چينو د وچېدو په وجه له تنګسې سره مخ شو، د پور د اخستلو لپاره يې بانکدارو کورنيو ته مخه کړه. دغو کورنيو هم پورونه ورکول او هم يې د ماليو د ټولولو او د سکو د ضربولو کار په غاړه واخيست. دوی د خزانه دارانو نقش ولوباوۀ. مېرمن کرين ليونارد د يوۀ شرکت خاصه يادونه کوي چې د جن له دين سره اړوند يوۀ سوداګر يې بنسټ کېښود. دغه شرکت په راجپوتانه، پټنه، دکن او بالاخره په مرشد اباد کې پرانيستل شو. په بنګال کې د دې شرکت مشر جګت سيت و چې د خپلو تجارتي ګټو په خاطر يې په پلاسي جګړه کې د سراج الدوله په ځای د انګرېزانو ملا تړ وکړ. د شرقي هند کمپنۍ د خپل کار په لومړي پړاو کې د نورو بانکدارانو مرسته تر لاسه کړه خو د سياسي واک له حصوله وروسته يې له ټولو شرکتونو سره رابطه غوڅه کړه.

که موږ د اتلسمې پېړۍ هندوستان له اوسني پاکستان سره پرتله کړو نو، ځينې مشابهتونه پکې مومو. د پاکستان سياسي حالت د هغه وخت د هندوستان غوندې دی. په اوسني پاکستان کې د اتلسمې پېړۍ د هندوستان په څېر بې نظمي او ګډودي وينو. وضعيت له کنټروله وتلی ښکاري. اداره شړېدلې ده او جګړه مارې ډلې پخپلو منځو کې په نښتو بوختې دي. د دغو حالاتو په نتيجه کې د پاکستان مالي نظام د شړېدو په خوا روان دی. د پاکستان حکومت د مصارفو د پوره کولو لپاره د اوسنۍ زمانې پور ورکوونکو لکه آی، ايم، ايف او نړيوال بانک ته مخه کړې ده. د دې زمانې د شرقي هند کمپنۍ د پاکستان سياسي حالات پخپله ګټه کنټرولوي او د دې ملک چارواکي د ګوډاګيو نقش لوبوي.

البته، د اتلسمې پېړۍ په هندوستان کې مذهبي افراط نه و خو اوسنی پاکستان دا مشکل هم لري.



# د کسات اور

د اتلسمې پېړۍ په هندوستان کې چې مرکزي حکومت کمزوری شو، واکمنو طبقو د خپلو شخصي ګټو په خاطر د سيسو او توطيو ته لاس واچاوۀ چې پای يې نه و. د قادر روهيله جنجالونه د دې زمانې د بې پايه جنجالونو يوه برخه او بېلګه ده چې د ټولنې زوال او فساد ورنه څرګندېږي.

غلام قادر د ضابطه خان زوی و. ضابطه خان د شاه عالم په خلاف بغاوت وکاوۀ او شاه عالم هغه څوک و چې دی يې مير بخشي ټاکلی و. د ضابطه خان په بغاوت کې شاه عالم پخپله د جګړې ميدان ته لاړ. په جګړه کې د ضابطه خان کورنۍ ونيول شوه او اګرې ته واستول شوه.

په بنديانو کې اتۀ کلن غلام قادر هم و. اوازه شوه چې دغه هلک ته ډېره سپکه واوښته او امپراطور پخپله ورسره لواطت وکړ. قادر هغه وخت له بنده خوشې شو چې د ضابطه خان او شاه عالم تر منځ د سولې موافقه وشوه. قادر پلار ته ورغی او چې پلار يې په ۱۷۸۵ کې ومړ، د هغه جاګير دۀ ته پاتې شو.

دغه وخت نو مغول امپراطور شاه عالم ته واک و ځواک نه و ورپاتې. شاه عالم د سيندهيا نومي مرهټه ليډر د متو په زور ځان ساتۀ خو کله چې سيندهيا له خپلو عسکرو سره له ډيلي ووت، امپراطور بې دفاع پاتې شو. غلام قادر له فرصته استفاده وکړه په ډيلي يې يرغل وکړ. شاه عالم هغه ته د ميربخشي لقب او د وياړ چپنه ورکړه او قهر يې ورکښاوۀ. قادر د څه مشکل له جوړولو پرته ستون شو. خو دا د هغه وروستی يرغل نه و.

تر ۱۷۸۸ پورې دهٔ د سرې کلا دننه ځينې ملګري وموندل . ملګرو له
سلطنتي سلاکوټه مرمۍ او باروت ورکړل. د کلا يو مقام منصور علي
خان دروازې ورته پرانيستلې او قادر او د هغه عسکرو ته يې اجازه وکړه
چې په کلا باندې سخته حمله وکړي او ويې نيسي.
کله چې شاه عالم ، غلام قادر ته راوستل شو ، غلام قادر ورنه وغوښتل
چې د شاهي خزانې د پټېدو ځای ورونښيي. شاه عالم منکر شو او غلام
قادر يې د بندي کېدو امر وکړ. شاه عالم، د هغه خدمتګارانو او خواجه
سرايانو ته شکنجه ورکړه شوه. دغه وخت د محمد شاه (۱۷۴۸-۱۷۱۹)
کونډو غلام قادر ته وړانديز وکړ چې که د محمد شاه زوی بيداربخت په
تخت کېنوي ، لس لکه روپۍ به ورکړي. غلام قادر وړانديز ومانهٔ او
بيداربخت يې نوی امپراطور اعلان کړ. (۱۷۸۸) خو کله چې کونډو د لس
لکه روپيو له ورکولو انکار وکړ، نو دوی هم شکنجه او د شاهي کورنۍ
د نورو غړيو په څنګ کې په زندان کې کېنول شوې.
د عبرتنامې د ليکوال فقير خيرالدين محمد په قول، غلام قادر يو رسام
وروغوښت، ورته ويې ويل چې: (انځور مې وباسه چې چاړه مې په لاس
کې وي ، د شاه عالم په سينه ناست يم، سترګې ورنه باسم.) البته، غلام
قادر دغه بوږنوونکې صحنه تر دې دمخه په رشتيا جوړه کړې او عملي
کړې وه. د دهٔ ساتيري دا وه چې د خپلو بنديانو د سپکاوي په باره کې
فکر وکړي. يو ځل يې امر وکړ چې شهزاده ګان دې ورته ونڅېږي او بدلې
دې وبولي خو شهزاده ګانو داسې ونه کړل او دهٔ پخپلو اردليانو د شهزاده
ګانو د پوزو د غوڅولو امر وکړ. شهزاده ګانو چې بله لاره ونه ليده،
نڅېدلو او بدلو ته حاضر شول. وروسته بيا غلام قادر اردليانو ته وويل
چې له کوټې ووځي. هغوی ووتل او دهٔ خپله توره او جمدر يوې خوا ته
کېښودل، سترګې يې پټې کړې، شپېه نيمه پس يې پرانيستلې، شهزاده
ګانو ته يې وويل: (ايا دغسې نامرده کسان د پاچهي په فکر کې دي؟ که



په تاسې کې نوکې غيرت وي، ما به زما پخپله توره، زما په خپل جمدر
ووژنئ.)
غلام قادر د سلطنتي کورنيو د نجونو او مېرمنو د ځورولو او بې عزته
کولو کوشش هم وکړ خو له دې کاره خپل سيک قومندان موير سينګ
راوګرځاوهٔ. مويرسينګ توندې خبرې ورته وکړې. غلام قادر په قهر شو ،
ورته ويې ويل چې امپراطور د دهٔ د پلار د کور له مېرمنو سره همداسې
بد سلوک کړی و. غلام قادر دا هم وويل چې نيت يې دی چې مغولې
شهزادۍ په خپلو افغانو سرتېرو وويشي چې ګوندې غيرتمن زامن ورنه
وزېږي.
د سلطنتي کورنۍ د عذاب عمر هغه وخت پای ته ورسېد چې غلام قادر د
امپراطور د ژغورنې لپاره د مرهټه وو د قومندان رانا خان له راتلو خبر شو.
غلام قادر له لوټ کړې خزانې او څو کسه يرغمل شويو شهزاده ګانو سره له
ډيلي ووت. رانا خان په قادر پسې ورغی، ويې نيو. شاه عالم له رانا خانه
وغوښتل چې هغه ته بې رحمانه سزا ورکړي. رانا همداسې وکړل او د غلام
قادر شونډې، پوزه، سترګې او غوږونه يې په يوه وړه صندوقچه کې شاه
عالم ته د تحفې په توګه واستول د وقايع اذفري ليکوال چې پخپله يو مغول
سردار و ، له څو نورو شهزاده ګانو سره د غلام قادر په محاکمه کې حاضر و.
شايد دوی ټولو به د هغه له ختمېدو سره د کرارۍ ساه ايستلې وي.
د غلام قادر د زمانې ټولنه که د خپل وخت له ټولنې سره پرتله کړو ، ګڼ
مشابهتونه به پکې ووينو. په غلا او په رشوت، په ظلم او په خيانت ، په
هره طريقه د پيسو پيدا کول، د مېرمنو بې عزته کول، زبرزنا ( په زور
زنا )، د مېرمنو لوڅول او لوڅې لغړې په کلي کې ګرځول، په بديو کې د
نجونو ورکول، دا هغه څه دي چې هغه وخت هم وو، اوس هم شته. د
کسات اخيستل کسات پيدا کوي او وحشت و بې رحمي زېږوي.

# د زوال د ورځو غټان

د هندوستان د منځنیو پیړیو ټولنه په ښکاره ډول په دوو طبقو وېشل شوې وه. یوې خوا ته د امتیاز خاوندان وو او بل لوري ته عام خلک. د امتیاز خاوندانو ځان تر نورو زیات او تر قانون برباله. لویو ملاکانو د خپلو جاګیرونو په منځ کې ، په خپلو خدمتګارانو او بزګرو پوره کنټرول درلود او دوی ته به یې په وړو تېروتنو یا سرغړوونو جزاګانې ورکولې. دوی د خپلو لاس لاندې کسانو د ایل ساتلو لپاره له هر ډول وحشیانه طریقو استفاده کوله او دا یې خپل حق ګاڼه چې تر لاس لاندې کسان شکنجه کړي، زندان ته یې واچوي یا یې حتی په دار وځړوي.
داسې څوک نه و چې خواران او نوکران ورشي او د نواب و جاګیردار د ناروا وو په خلاف شکایت ورته وکړي. یو مثال به راوړو. د اود د سیمې نواب وزیر شجاع الدوله یو زورور اشرافي و چې په خپل حرم کې یې ګڼې ښځې لرلې . یو ځل یې د خاترې خلکو یوه ښکلې ښځه وتښتوله، خپلې ماڼې ته یې بوتله، د زور زنا یې ورسره وکړه او له ماڼې یې وشړله. خاترې خلکو د دې بې عزتۍ په خاطر اعتراض وکړ خو اعتراض یې ځای ونه نیو ، ځکه د کمزورو خلکو د اواز د اورېدو ځای نه و.
اشرافو پخپلو کې هم له یو بل سره ستم کاوه. د دوی په خپلو کړیو کې هم زور بالای زور و. د مغول پاچا احمد شاه ( ۱۷۵۴-۱۷۴۸ ) په زمانه کې د دهٔ د خوښې خواجه سرا جاوید خان، د ډېر اثر و رسوخ څښتن



شو. د پاچا د حرم د دغه خصي شوي نوکر دومره ډېر نفوذ د ځینو غټانو طبعه خټه کړې وه. صفدرجنګ نومې اشرافي جاوید خان د مېلمستیا په پلمه بوت او ویې واژهٔ. پاچا په قهر شو خو څرنګه چې د صفدر جنګ زور یې نه دلود ، د جاوید خان د قتل په خبره یې ځان غلی کړ.
چې د نظام اداري وشرېدې او پاچا کمزوری شو، مغولو اشرافو د رقیبانو د وهلو او د ځان د ګټلو لپاره په توطیو او د سیسو تکیه وکړه. د دوی لپاره د رقیبانو امتیازونه او لوړ مقامونه د زغملو نهٔ وو او په هره وسیله یې د رقیبانو مخه نیوله. مثلا د محمد شاه په دوران کې (۱۷۱۹-۱۷۴۹ ) سعادت خان برهان الملک د امیرالاعمارې مقام ته یو کاندید و خو کله چې دغه چوکۍ نظام الملک ته ورکړه شوه، برهان الملک ، نادرشاه افشار ته ځان ورساوهٔ. دا نو داسې وخت و چې مغول پاچا له نادرشاه افشار سره د سولې موافقه کړې وه او نادر دې ته تیار و چې بېرته ستون شي. سعادت خان برهان الملک،نادرشاه ته وویل چې دوه کروړه روپۍ چې پاچا د سولې په مقابل کې درته منلې دي، هیڅ روپۍ نه دي، دا خو زه هم چې یو مغول سردار یم، له خپلې خزانې درکولی شم. برهان الملک په دې ډول نادرشاه افشار د ډیلي نیولو او د سلطنتي خزانې لوټلو ته وهڅاوهٔ. نادرشاه د هغه له خبرو وروسته ډیلی ونیو او د مغولو د عمرونو غونډه کړې خزانه یې ایران ته یووړه.
اشراف او غټان چې هرڅومره د شخصیت په لحاظ راپرېوتل او وارهٔ کېدل هغومره یې زړونو د غټو لقبونو هوا کوله. د دوی له لقبونو سره د خان، بهادر، جنګ، دوله او ملک غوندې کلمې غوټه وې. د لقبونو معنا د دوی له شخصیت سره اړخ نه لګاوهٔ. هغوی چې د امین او اعتماد لقبونه لرل، د خپلو شخصي ګټو لپاره له دولت سره خیانت ته چمتو ناست وو.
جالبه دا ده چې د مغولو د حکومت د کمزورۍ په وخت کې د غټانو

لقبونه لا شانداره او درانهٔ شول او داسې وخت راغی چې په لقبونو کې واقعي اهمیت پاتې نه شو.

که څه هم د اشرافو او غټانو سپکو عملونو په ټولنه کې د هغوی قدر خورا کم کړی و مګر دوی به د خپل زور او ثروت د ښودلو له لارې کوشش کاوهٔ چې خلک ورته په درنه سترګه وګوري.دوی به خپلو جامو ته خاصه توجه کوله. د وربښمو او نورو قیمتي ټوکرانو جامې یې اغوستې. په پګړیو کې به یې الماس ټومبل چې خلکو ته شتمن ښکاره شي او ډول ډول زیورات یې استعمالول چې د خلکو پام ورواوړي. له کورونو چې په وتل په هاتیانو به سپارهٔ وو یا به په تخت روان باندې ناست وو. ګڼ نوکران به یې په مخ کې روان وو چې لار ورته پرانیزي. غټانو دغو خوشامندګرو نوکرانو ته هغه منلې تنخواه هم په منظم ډول نه ورکوله.

د غټانو له دا رنګه چلنده په دې پوهېږو چې هغوی د خپل مقام او حیثیت د ساتلو په مساله کې ډېر حساس وو او په خلکو باندې د اثر غورځولو لپاره یې له ټولو ظاهري وسیلو استفاده کوله.خو خلکو دوی ته په بل نظر کتل، په ثروت او لقبونو یې نه غلطېدل.

شاعر جعفر زټلي به په خپلو شعرونو کې پاچا او نور غټان غندل چې شرمېدلي خویونه لري. دغه شاعر د فرخ سیر (۱۷۱۹-۱۳۱۷) د تاجپوشی په جشن کې د طنزیه او کنایي شعرونو د ویلو په جرم د پاچا په امر اعدام شو.



موږ چې اوس خپلو غټانو ته ګورو د مغولو د زوال د زمانې غټانو ته ورته عادتونه پکې وینو.دوی ځانونه تر قانون بر ګڼي. خپلې کمزورۍ، د خپل ثروت په جامه کې پټوي او د خواصو د کلچر د خپلولو له لارې له عادي خلکو ځان لرې ساتي خو په دې خبر نه دي چې عام خلک ورته درناوی نه کوي او بلکې ذلیل یې ګڼي.



# د یوهٔ مغول شهزاده کیسه

د مغولو امپراطورانو اولاده به په سره کلا کې اوسېدله. دوی ته اجازه نه وه چې کلا پرېږدي. د امپراطورۍ د زوال په زمانه کې د دوی لپاره د کلا ژوند په زړهٔ پورې نه و خو اکثرو یې تقدیر ته غاړه ایښې وه او ټول عمر یې له نورې دنیا لرې، د سرې کلا د دیوالونو په منځ کې تېراوهٔ. البته، ځینو کسانو د کلا د منځ ستومانوونکی ژوند قبول نه کړ او د نوي ژوند د پیل کولو لپاره له کلا وتښتېدل. د تېښتې د مخنیوي لپاره په کلا کې څو چک پوستونه وو چې تګ راتګ وڅاري. د تښتېدلیو د بېرته نیولو او په کلا کې خپل کورته راوستلو لپاره به پوره پوره هڅه کېدله.

خو هغه کسان چې له کلا ووتل او ونه نیول شول، په خپلواکو شویو ولایتونو کې ځایي واکمنو د درنو مېلمنو په توګه ومنل. دا په هغه وخت کې د ځایي واکمن لپاره یو امتیاز و چې په دربار کې یې مغول شهزاده واوسي.

محمد ظهیر الدین علي بخت اذفري ګورګاني یو هغه شهزاده و چې له کلا وتښتېد او د هند مختلفو خپلواکو شویو دربارونو ته ورغی. دهٔ وروسته بیا خپله بیوګرافي ولیکله چې واقعات اذفري نومېږي. په دې بیوګرافي کې د لیکوال د زمانې د مهمو پېښو یادونه هم شوې ده. دغه شهزاده په ۱۷۶۰ کال کې په سره کلا کې دنیا ته راغی، همدلته یې لومړۍ زده کړې وکړې ، همدلته رالوی شو، واده یې وکړ او د اولادونو څښتن شو. دهٔ د غلام قادر روهیله د حملې په وخت کې له شاه عالم سره په دې تمه مرسته وکړه چې له کلا د وتلو اجازه به ورکړي، خو امپراطور د تېښتې اجازه ورنه کړه او دی د تېښتې په فکر کې شو.

دی په ۱۷۸۹ کې په تېښته بریالی شو او کیسه یې جالبه ده. کیسه داسې ده چې شهزاده څو کسه نوکران وموندل چې په دسیسه کې ورسره ملګري شي ، بیا یې له خپلې ارادې خپل وروڼه خبر کړل او له ورځنۍ حاضرۍ د بچېدو په خاطر یې پلمه وکړه چې سخت ناروغ دی، له هیچا سره نه شي لیدلی. د تېښتې په شپه یې په مخ باندې تریاک ومونښل چې تور ښکاره شي او د یوه سقاو جامې یې واغوستې. ورروسته بیا له څو کسه نوکرانو سره یو ځای روان شو، چا ونه پېژاند او له کلا ووت.

دی د ګوجرو په مرسته جیپور ته ورسېد او هورې خبر شو چې د جیپور راجا ته د دهٔ د تېښتې په باره کې یو مکتوب رسېدلی دی. د شهزاده په تېښته باندې د مقاماتو له خبرېدو وروسته د سرې کلا او ډیلي ټولې دروازې بندې شوې وې او ناظر یعنې د کلا د چارو سنبالګر ورپسې ډېره لټه کړې وه چې ویې نیسي.

په جیپور کې شهزاده وقدرول شو او راجا یې په حضور کې د مغولو آداب رعایت کړل. شهزاده ته جیپور یو ښکلی او پاک ښار په نظر ورغی چې اوار او پراخ سړکونه او سترې ماڼۍ لري. دی له جیپوره جودپورته لاړ. د دې ځای راجا یې هم هرکلی وکړ. په واقعات اذفري کې لولو چې د جودپور راجا په خپله سیمه کې امن و نظم راوستی و او لارې خوندي وې. د راجا په قلمرو کې ښکار منع و. شهزاده د سنبهار، اجمیر، رامپور او بریلي په لار کې لکنهو ته ورسېد. په لکنهو کې یې شاندارې ودانۍ ولیدې مګر کوڅې او سړکونه چټل ورښکاره شول.

شهزاده په لکنهو کې کابو اووهٔ کاله دېره و او نواب آصف الدوله چې نور مغول سرداران یې هم پاللي وو، د دهٔ ښه عزت وکړ. دی په ۱۷۹۲ کې د دکن په نیت له لکنهو ووت. په دې سفر کې یې بنارس، سهسرام، عظیم آباد، مرشد آباد، برداون، کلکته او مکچلي پټان ولیدل. بالاخره مدراس ته ورسېد. د مدراس واکمن نواب عمدة الملک والاجاه د هغه رسمي هرکلی وکړاو تنخواه یې ورته وټاکله.





د شهزاده د خاطراتو له کتابه پوهېږو چې د ژورې مشاهدې خاوند و او د مختلفو موضوعاتو په باره کې یې ازادانه نظریات څرګندول. دهٔ چې هم د هندوانو او هم د مسلمانو حاکمانو په دربارونو کې وخت تېر کړ، د هند کابو ټول واکمن عیاش او درغل ولیدل چې بس موسیقي اورې او د نڅاګرو سیل کوي. د جیپور د راجا په باره کې وایي چې د ورځې ویدهٔ وي او شپه یې له یوه ډله ښځو سره وېښه تېرېږي. د آصف الدوله وخت د نویو ودونو په کولو او تفریح تېرېدهٔ. د هند حاکمانو د خپل رعیت د ژوند ښه کولو ته پام نه و.

خو برعکس، کله چې شهزاده انګرېزان لیدلي او د هغوی ادارې ته یې کتلي دي، ډېر اثر یې ورباندې کړی دی. دی وایي په هندوستان باندې مختلفو قامونو لکه افغانانو، مغولو، او مرهټه وو حکومتونه کړي دي او دا دی اوس د انګرېزانو نوبت دی. د دهٔ په نظر انګرېزان تر نورو قامونو ممتاز دي ځکه خو په هندوستان باندې د حکومت کولو حق لري.

په واقعات اذفري کې د مغولو د عصر او په تېره بیا د ابدالي احمد شاه په باره کې ځینې نادر معلومات موندلای شو. ابدالي احمد شاه په هندوستان باندې د دویمې حملې په وخت ډیلی ونیو او د مغول واکمن محمد شاه لور حضرت محل یې په زور ځانته په نکاح کړه او ډېر جهیز یې واخیست. احمد شاه ابدالي نه یوازې ناوې بلکې د هغې مور او څو نورې ښځې هم افغانستان ته ورسره بوتلې. حضرت محل په افغانستان کې نولس کاله ژوند وکړ. کله چې مړه شوه مور یې د لور تابوت ډیلي ته ورساوهٔ او هورې یې خاورو ته وسپارله.

د شهزاده خاطرات د اتلسمې پېړۍ په هندوستان کې د واکمنو طبقو د سیاسي او اجتماعي ژوند په باره کې ډېر څه راته وايي.

موږ له تاریخه دا درس اخلو چې عام خلک سوله او سوکالي غواړي. که د دوی خپل واکمن سوله او سوکالي ورنه کړي، دوی د ځان د ژغورلو لپاره د خارجیانو هرکلی کوي.